# کُلّیاتِ رحمان باباؒ

## قطب الاقطاب ولی کامل

## حضرت عبدالرّحمٰن باباؒ

تحقیق ترتیب او سَمونه

دوست محمد خان کامل مومند او قلندر مومند

خورونکے۔ اداره بلاغ الناس (شعبه تحقیق)

هُوالنّاصِر

○

دَ رحمان بابا دَ دیوان دَ دوباره ترتیب کار ښاغلی صنوبرحسین مومند دَخپل وفات نه څو کاله ا مخکښې شروع کړے وو- هغه وخت دوی سره صرف یوه قلمی نسخه وه چه دَ 'ا' نسخے په حیثیت ئے په نوټونو کښې ذکر شوے دے- دَ مرحوم دَ سیاسی مصروفیاتو له کبله دا کار مکمل نه شو- او دغه نیمګړے کار مرحوم دوست محمد خان کامل مومند دَ ا، ب، ج، د او ه نسخو په مدد په ۱۹۷۴ء کښې مکمل کړو- دیوان ئے دَ حروف تهجی په بنیاد مرتب کړو- په دغه کال دا مرتب شوے نسخه ماته په دے غرض حواله شوه چه پریس ته دَ لیږلو نه مخکښې ئے زه وګورم- ما دا ترتیب شوے نسخه یو ځل بیا دَ ا، ب، ج او د نسخو سره مقابله کړه- په دے دوران کښې دَ و او ز نسخے هم راپیدا شوے- او دا کار نور هم وږد شو- او دَ مرحوم کامل صاحب په اجازت ما دا غوره وګڼله چه دا مسوده ټولو هغو نسخو سره مقابله کړم چه مونږ ته معلوم شوے وے- دا کار په ۱۹۷۵ء (دسمبر) کښې سرته ورسید او د جنوری ۱۹۷۶ء په شلمه نیټه مونږ مسوده کاتب ته د ورکولو دپاره تیاره کړه- دَ مسودے کتابت او دوباره کتلو ډیر وخت واخست- او دَ کامل صاحب دَ شدید خواهش باوجود دا دیوان دَ هغوی په ژوند کښې چاپ نه شو حالانکه هغوی ډیر ځل دے تریخ حقیقت ته واضح اشارے هم کړے وے- خو دا زما په خیال کښې هم نه راتلله چه کامل صاحب به مونږ دومره ژر یوا ځے پریږدی- فانّا لله وانّا الیه راجعون -

زه نه یم خبر چه د کامل صاحب په ذهن کښې څوک وو چه د هغه په نوم ئے دَ دے دیوان انتساب کول غوښتل خو زهٔ دَ رحمان بابا دَ دیوان په سلسله کښې د کامل صاحب

د زیار او د کتاب د چاپولو په سلسله کښې د هغوی د خواهش د شدت په وجه دا کتاب
د هغوی په نامه منسوب کوم۔

د کتاب د طباعت په سلسله کښې دومره ډیل شوے دے چه زه د مفصلے مقدمے
د لیکلو په عذر دا کار نور نه شم ځنډولے۔ مرحوم کامل صاحب د کتاب دپاره سریزه لیکلې وه۔
خو بیا هم د هغوی فیصله دا وه چه دا سریزه دِ مختصره کړے شی۔ او هرکله چه د دے
سریزے په اختصار هم وخت لګی نو زه دا خطره هم نه اخلم۔ دا سریزه زه د رحمان بابا په
حقله د چلې څیړنے سره د چاپ کولو په نیت د ځان سره ساتم۔ هم دغسے د ښاغلی کامل مرحوم
لیکلے د رحمان بابا د دیوان د فرهنګ نظرثانی به هم وخت اخلی او دا به هم انشاءالله تعالیٰ
د رحمان بابا په حقله د تنقیدی مقالو سره چاپ کړے شی۔ وَ بِاللهِ التّوفیق۔

قلندر مومند

۲۷ر جنوری ۱۹۸۳ء

۶ر خوشحال کالونی
پیښور ښار۔

# ترتیب

دَ بیاض ترتیب دَ حروف تهجّی (دَ پښتو دَ پښتی دَ تورو) په بنیاد شوے دے چه دهره پښتی کښے اول غیر مردّف غزلونه او ورپسے مردّف غزلونه نقل شوی دی۔ دَ کوم غزل په سر کښے یا کومو شعرونو ته چه ق لیکلے شوے دے هغه په چاپی دیوانونو کښے نشته۔ دغسے کوم شعرونه چه په قلمی نسخو کښے نه دی موندلی شوی دَ هغو مخے ته تورکه دائره راکښلے شوے ده۔ دَ دیوان نه هغه غزلونه او شعرونه وکیښلی شوی دی چه زمونږ دَ غور او فکر په نتیجه کښے دَ قائمے شوے رائے مطابق دَ رحمان بابا دکلام برخه نه ده۔

مُرتّبین

دَ مطبوعاتو سلسله نمبر ۱۱

چاپونکے : عزیز خان

خورونکے : اداره بلاغ الناس

مطبع : دَ چاپ ځائے کوهاټ روډ پیښور

کتابت : محمود فانی۔ برتاکال

قیمت لائبریری ایډیشن : ۱۲۰ روپئ

۱۹۸۴ء

June 2014

ضروری نوټ

دے کتاب کښے هر چرته چه "چپ و راست" او "زبیوکے" راغلے دے هلته که دَ قافیے او وزن تبدیلی نه راځی نو دا لفظونه دِ "چاپیراس" او "زګیروے" ولوستلے شی۔

بسم الله الرحمٰن الرحیم

۱۴ ۱/۱

ګوره هسے کردګار دے رب زما
چه صاحب دَ کل اختیار دے رب زما

همګی بزرګواران چه څوک ئے وائی
تر همه ؤ بزرګوار دے رب زما

نه ئے هیڅ حاجت په چا باندے موقوف دے
نه دَ هیچا منت بار دے رب زما

له نیستی ئے دَ هستی صورت پیدا که (۱)
هسے رنګ پروردګار دے رب زما

هم صانع دے دَ جمله ؤ مصنوعاتو (۲)
هم سامع دَ هر ګفتار دے رب زما

چه ئے هیچرے نه مثل نه مثال شته (۳)
دَ هغو عطر و عطّار دے رب زما

هر تعمیر چه دَ دنیا او دَ عقبیٰ دے
دَ همه وارو معمار دے رب زما

خوانده دَ نا نویسو صحیفو دے (۴)
دانده دَ هر اسرار دے رب زما

که ظاهر دے که باطن دے که مابین دے[۵]
له همه ؤ خبردار دے رب زما
شریک نه لری پخپله بادشاهی کښے
بے شریکه شهریار دے رب زما
هسے نه چه واحدی ئے ده له عجزه
په واحد وجود بسیار دے رب زما
حاجت نه لری دَ هیچا و یاری ته[۶]
له هغو سره چه یار دے رب زما
څه حاجت دے چه ئے بله خواته غواړم[۷]
په خپل کور کښے همکنار دے رب زما
هیڅ تغیر و تبدیل نه لری رحمانه
تل ترتله برقرار دے رب زما[۸]

۱۳ ۲/۲ ۲۷

که صورت دَ محمدؐ نه وے پیدا
پیدا کړے به خدائے نه وه دا دنیا[۹]
کل جهان دَ محمدؐ په مخ پیدا شه
محمدؐ دے دَ تمام جهان ابا
نبوّت په محمدؐ باندے تمام شه
نشته پس له محمدؐه انبیاء
نوُر هاله دَ محمدؐ وو پیدا شوے
چه نه عرش وو نه کرسی وه نه سما

بُوی هاله دَ محمّدؐ وو په جهان کښے
چه بُوی نه وو دَ آدمؑ او دَحوّاؑ
په صورت که آخرین دے پیدا شوے[10]
په معنیٰ کښے اوّلین دے تر هر چا
که نبی دے که ولی دے که عاصی دے
محمّدؐ دے دَ همه وارو پیشوا
چه ئے دین دَ محمّدؐ دے قبول کړے
جنتی دے که فاسق دے که پارسا
محمّدؐ دَ گمراهانو رهنما دے
محمّدؐ دے دَ رندو دَ لاس عصا[11]
که رښا ده پس روی دَ محمّدؐ ده[12]
گنه نشته په جهان بله رښا
محمّدؐ دَ بیچاره وُ چاره گر دے
محمّدؐ دے هر دردمند لره دوا
خدائے ئے مه گنه بیشکه چه بنده دے[13]
نورئے کل واړه صفات دی په رښتیا
زه رحمان دَ محمّدؐ دَ درخاکروب یم
که مے خدائے نه که له دے دره جُدا[14]

ق ۹ ۳/۳ ۳۶

صاحبان چه دَ ارشاد دی مقتدا[15]
چاریاران دَ پاک رسولؐ دی په رښتیا

لہ اوّلہ ابوبکرؓ چہ صدّیق دے
بهترین دے لہ یارانو پہ هرچا
پس لہ دہ نہ بیا بهتر حضرت عمرؓ دے
چہ ئے حق باطل پہ عدل کڑ جدا
بیا دریم پسے عثمانؓ بن عفان دے
ذوالنّورین ئے نام پہ روغہ پہ رښتیا
څلورم پسے بهتر حضرت علیؓ دے
لہ اصحابو اولیاؤ کبریا
څلور واړہ څلور رُکنہ دَ اسلام دی
دَ اسلام کوټہ بے دوئ دہ بے بقا
اصحابؓ دَ پاک رسولؐ وو لکہ ستوری
همہ واړہ دَ حق لارے رهنما
چہ خلاف دَ دوئ لہ قولہ لہ عمل کہ
دَ هغو خلل پہ دین کښے شو پیدا
ما رحمان دی څلور واړہ قبول کړی
دوئ زما هم مقتدا دی هم پیشوا

۴۶ ۴$\frac{۴}{۴}$۸

عالمان دی روښنائی دَ دے دنیا(۱۶)
عالمان دی دَ تمام جهان پیشوا
کہ څوک لار غواړی وخدائے او و رسولؐ تہ(۱۷)
عالمان دی دَ دے لارے رهنما

کیمیاگر که دَ کیمیا په طلب گرځي
همدمي دَ عـالمانو ده کیمیا
په مجلس دَ عالمانو به سرهٔ زرشي
که خوک کاڼے وي که لوټه دَ صحرا[۱۸]
جاهلان دي په مثال دَ مرده گانو
عالمان دي په مثال دَ مسیحاء
چه مُرده ئے له نفسه ژوندے کیږي
عالمان دي واړه هسے اولیا
هر سړے چه رتبه نه لري دَ علم[۱۹]
سړے نه دے خالي نقش دے گویا
زه رحمان حلقه بگوش دَ هرعالم یم
که عالي دے که اوسط دے که اَدنیٰ[۲۰]

۲۱ ۵/۵ ۶۵

دوباره دے راتله نشته په دنیا
نن دِ وار دے که دروغ کړے که رشتیا[۲۱]
هره چارچه تروقت تیره شي عنقاشي
عنقا نه دے په دام نشتے دَ هیچا
تر ورخ تیرے اوبه بیرته نه جاروځي
نه جاروځي تیرساعت په بیرته بیا
تیر ساعت په مثال مړے دَ لحد دے
مړچا نه دے ژوندے کړے په ژړا[۲۲]

کہ مقصود لرے تلوار کړه وقت کوتاه دے
غره مہ شہ دَ دے عُمر پہ بقا
هره نښہ چہ صحیح ګڼې پہ زړه کښے
پہ غرور بہ دغہ نښہ کړے خطا
پہ امید امید ئے خلق نا امید کړ
دَ ایّام لہ مکره مہ شہ بے پروا
چہ دَ مرګ پہ تماچہ دِ شی خولہ ماتہ
ترو پہ ماتہ خولہ بہ څہ رنګ کړے ثنا (۲۳)
ویره ژلے ارتیزے چہ وینا وائی
تا تہ وائی کہ پوهیږے پہ وینا (۲۴)
هلک نہ ئے چہ پہ زور دِ څوک تعلیم کا
هم عاقل ئے هم بالغ ئے هم دانا
پہ عمل دَ نیکو بدو فهم وکړه
چہ پہ دا کښے دِ بهبود دے کہ پہ دا (۲۵)
سر دننہ پہ ګریوان کړه ستر ګے روغے
دیر پہ پورتہ پورتہ مہ ځہ سرهوا (۲۶)
سرهوا سرهوا مہ ځہ و اسمان تہ
تہ پہ اصل کښے لہ زمکے ئے پیدا
دَ عمل پہ ځائے بہ دا پښتنہ نہ وی (۲۷)
چہ تہ زوئے ئے یا نمسے ئے دَ فلانا
پہ خپل ځان ښیګړه وکړه غره مہ شے (۲۸)
پہ ښیګړه دَ ادے او دَ ابا

هغه ناوے چه په ځان ښائسته نه وی[۲۹]

څوک ئے څه کاندی ښائست دَ موراونیا

دا خبرے زه همه و ځان ته وایم

دلګیر مه شه که مے نوم واخست دَ ستا[۳۰]

نوم دَ ستا او دَ بل اخلم ځان ته وایم

نه مے کار نه مے غرض شته په نورچا[۳۱]

هرچه وایم همه واړه ځان ته وایم

دا همه واړه عیبونه دی زما[۳۲]

که مے ځائے دَ دے غمونو وے په زړه کښے

ما به څه لره کوله دا انشا

چه دَ مرګ سختے خواری دَ ستا په خوا دی

اے رحمانه ولے نه مرے لا پخوا

۱۰۵ ۶/۶ ۴۰

راشه مه کوه له چا سره جفا

لږ ژوندون دِ ضائع کیږی بے وفا[۳۳]

په دُنیا کښے هیڅوک نه دی پاتوشوی[۳۴]

واړه تلونی دی که نن دی که سبا

دا یاران چه نن و[illegible] وته جلوه کا

په دوه ورځے پس به واړه شی فنا

که دیدن دِ دَچا خوښ وی ورته ګوره

چه فنا شی بیا به کله شی پیدا

دَ خزان پا ئے چہ بیلے شی لہ ښاخہ
پہ حکمت بہ ئے پیوند نہ کا حکما[۳۵]
چہ پہ زمکہ څاڅکے پریوځی لہ اسمانہ
بیا لہ زمکے ختے نہ شی پہ سما
کومان مہ کړہ چہ بہ بیا سترګو لہ ورشی[۳۶]
ھغہ او ښے چہ لہ سترګو شی جدا
دا پہ ھرہ ورځ چہ خیژی بیل بیل نمردے[۳۷]
ھرچہ پریوځی ھغہ نہ شی ختے بیا
کہ جنت پہ زُھد نہ دے بے کرمہ
ھر سړے دِ خپلہ غاړہ کا ادا[۳۸]
کہ دَ نفس دپارہ سل محنتہ وکړے[۳۹]
یو محنت بہ دِ پکار نہ شی فردا
کہ تمام جھان پخپلہ ګیډہ وخوړے
یاد بہ نہ شے پہ درود او پہ دُعا
کہ یوہ دانہ دَ وُږی پہ لاس ورکړے
ھم دغہ بہ دِ توښہ شی دَ عقبیٰ[۴۰]
کہ یو څاڅکے اوبہ تږی لرہ ورکړے
دَ دوزخ او ستا ترمیان بہ شی دریا[۴۱]
کہ یو ځلہ سر دَ خدائے پہ لوری ټیټ کړے
پہ قیامت بہ سربلند شے تر ھرچا
بازار دا دے کہ څوک سود و سودا کاندی
پہ ھغہ جھان نہ سود شتہ نہ سودا

اشنایان که څه پوهیږی نن ئے وقت دے [۴۲]
چه ځاریږی یو اشنا تر بل اشنا
که ژوندون دے خو هم دادے په جهان کښے
چه له چا سره تیریږی په خندا
خدائے امان وکړه له هسے زندگیه
چه ته بد وائے له بله بل له تا [۴۳]
زهر ښه دی که په صلح په صلاح وی
نه شکرے په فتنو او په غوغا [۴۴]
نفس په خارو په خس ډک ښه دے بےغمه
نه دَ غم په غوړو وریژو په حلوا [۴۵]
ما ته ملا په مشقت په محنت ښه ده
نه حرامه همیانئ دَ چا تر ملا
ړوند بهتر دے چه څه نه وینی په سترګو [۴۶]
نه چه سترګے په پردی حرام کا وا
ګونګ بهتر دے چه بے کام و بےزبان وی
نه چه ژبه شی په بد ویئیل ګویا
کوڼ بهتر دے چه څه نه اوری په غوږو
نه چه غوږ کاندی دَ بدو په وینا
دیو او دَډ که په خوا دریشی بهتر دے
خدائے دِ بد سړے در نه ولی په خوا [۴۷]
دَ جاهل ترهمدمیه به بهتر وی
که له چا سره همدم وی اژدها

که مشکل دی خو د زړونو رغول دی
سهل کار دے سود و زیان د دے دنیا
سود و زیان د دنیا واړه سهل کار دے
خدائے دِ نه کا څوک په سهل کار رسوا
چه د ورور د عزیز زړه پرِ ازاریږی
حاصل مه شه هغه خپله مدعا [۴۸]
ګاه د نورو رضا بویه ګاهے خپله
په کار نه ده همیشه خپله رضا
ښهٔ خواړه چه یوے خوری بل ورته ګوری
خواړه نه دی هغه زهر دی ګویا
چه ښادی ئے یو زمان وی غم ترتله
دغه هسے چارے نه کاندی دانا [۴۹]
لکه ځان هسے و بل وته نظر کړه [۵۰]
لکه ستا دے هسے ځان دے د هرچا
منصفانو لره بویه چه انصاف کا
نه چه نغوته کا د حرص او د هوا [۵۱]
د سړی په خاطر هرڅه هرڅه ګرځی
نه چه وګڼی همه واړه روا
دینداران دِ وخپل دین وته نظر کا
څوک فکرونه د صواب څوک د خطا [۵۲]
خدائے دِ نه کاند خطا د چا له لاسه
څه نسبت دے د خطا او د عطا

هسے نہ چہ سړی واړہ سرہ سم دی
ځوک عالی دی ځوک اوسط دی ځوک ادنے (۵۳)

دَ هرچا حرمت پخپله اندازہ دے
نہ چہ مومی نفر ځائے دَ امرا (۵۴)

زہ رحمان لہ چا شکوہ شکایت نہ کړم
نشتہ بل دوست و دښمن زما بے ما (۵۵)

۱۱۳ ۸ ۷/۷

هیڅ ثابتہ نہ کړہ چا دَ دے دنیا وفا
واړہ مینے کاندی بیهودہ پہ دا دنیا (۵۶)
هرځوک چہ دعوی پہ دا دنیا کا دَ خپلوبہ
واړہ باطل وائی دنیا نہ دہ دَ هیچا (۵۷)
دا فلک کلال دے سازہ ول او ماتول کا
ډیرے ما او تا غوندے پیدا کړہ هم فنا (۵۸)
هرسنګ وکلوخ چہ څرګند پرِی دَ دے دهر
واړہ کړی دی ځوک دَ شاہ ځوک دَ ګدا
دام دِ هیڅوک نہ یړدی دَ دنیا و رهګذر تہ
ښکار بہ وکړے نہ شی دَ سیمرغ او دَعنقا
هرځوک چہ لہ دے فانی نفسہ وابستګی کړہ (۵۹)
نہ بہ شی تړلے پہ زنځیر سرہ هوا
ماہ دَے کہ افتاب دَے عاقبت واړہ خراب دَے
ګل کہ همیشہ دے هم څہ نہ تر ابدا (۶۰)

مه درومه رحمانه په خلاف دَ دانایانو
مینه دَ دنیا پسند لے نه ده هیڅ دانا

۱۲۲ ۹ ۸/۸

په بنادی بناد شوے نه یم دَ هیچا(۶۱)
تور تپ سوے یم په غم دَ هر اشنا
که زه طمع توقع له بله نه کړم(۶۲)
دَ بل طمع توقع کیږی له ما
که مے وروړ که مے عزیز دے که مے یار دے
واړه غواړی خپله خپله مدعا
په هر کور کښے رنځوران راته زبیږکی کا
لاس مے نه رسی دَ هیچا په دوا(۶۳)
دَ دنیا خبرے واړه په دنیا شی
ما به څه کا څوک چه نه لرم دنیا(۶۴)
که په کلی کښے مے کور دے زه کمان کړم
چه کور نه دے دا مے کور دے په صحرا
چه دِ نه پرِ څه پوره وی نه نیمګړی
څوک به څه کا له هغو سره خندا(۶۵)
چه ئے هیڅ په بنه توبنه وبله نه شی
تر هغه اشنا بهتر دے نا اشنا(۶۶)
په توده زمکه استوګه ده مشکله(۶۷)
څه به زیست شی له رحمان سره دَ چا

۱۳۰ ۹/۹ ۸

که خپل زړه غواړے له چا — ځان صیاد کړه دَ عنقا

دَ حباب کلاه په سر کړه — سور په اس شه دَ هوا

لکه خضر هسے پا څه — اوبه وڅښه دَ بقا

له زمینه قدم کیږده — په اسمان لکه عیسیٰ

دَ هغه استاد شاګرد شه — چه دروښئ کیمیا

ته سرپریکړه وے غواړه — چه مونده شي په بها ق

دا چه ما درته بیان کړه — که حاصل کړے واړه دا

هاله طمع کړه رحمانه — دَ خوبانو له وفا

۱۳۹ ۱۰/۱۰ ۹

ته چه ماته وائے چه په څه کوے ژړا

نه درمعلومیږی دغه خپل جوروجفا

ته جورو جفا کړے زه ژړا کوم دلبره

ستا که دغه نه وے دا به هم نه وے زما[۶۹]

څه ښادی به کاندی طائفه دَ عاشقانو

رسم دَ ښتانو که هم دا وی لکه ستا[۷۰]

دا خصلت چه ستا دے که هم تل په دغه شان وی[۷۱]

نه رامعلومیږی دَ دردمند دَ زړه دوا

خو به دا جفا کړے نه پوهیږم څه بلا شوه

ق

خو به وی ترکومه دا جفا و دا بلا[۷۲]

یو دَ ستا مانئے شه بل غورزی دَ رقیبانو[۷۳]

وار په وارے وژنی کله هغه کله دا

هرچه عاشقي کا که په قطع افلاطون وي
زه خوئے مجنون ګنړم که نن وي که سبا[۷۴]
سپي هم په عذاب دَ جدائ دَ وژلو نه دي
زه خو ګوندے ستا دَ کوڅے سپے شوم په وينا[۷۵]
هيڅ مے پکار نه دي رحمان تا غوارم دلبره
زه په دا راضي يم باقي هرچه ستا رضا[۷۶]

۱۵۲ ۱۳ $\frac{11}{11}$

دا دُنيا ده بے وفا
بے وفا ده بے بقا
نه ئے څښتن نه ئے ځښتن
لکه لوته دَ صحرا
په يوه ګړئ ئے خړ وي
په يوه ګړئ ئے شا
په يوه ګړئ دَ ستا شي[۷۷]
په يوه ګړئ زما
په يوه ګړئ ئے درد وي
په يوه ګړئ دوا
په يوه ګړئ ئے خوف وي
په يوه ګړئ رجا
په ساعت کښے ئے بقا وي
په ساعت کښے ئے فنا
په ساعت کښے ئے سکوت وي
په ساعت کښے ئے غوغا
په ساعت کښے ئے خندا وي
په ساعت کښے ئے ژړا
په ساعت کښے ئے وفا وي
په ساعت کښے ئے جفا
په ساعت کښے ئے افلاس وي
په ساعت کښے ئے غنا
نه څه شان لري نه شکل[۷۸]
کله دا شي کله دا

خُدائے څوک پيبنس مه کړه رحمانه[۷۹]
په دا هسے رنګ بلا

۲۰۸ ۱۲/۱۲ ۵۶

ښه ده ښه ده دا دنیا — چه توښه ده دَ عقبیٰ
مذمت دَ دنیا مه کړه — واوره پند کړه دا وینا [۸۰]
دَ دنیا په بازار کیږی — دَ هغه جهان سودا
په دنیا کښې ډیر حکمت دے — ورشه وپښته حکما
که غلیم لره ئے ورکړے — غلیم دوست کا په هوا
که تر سرئے صدقه کړے — رفع دفع که بلا [۸۱]
که په اور بانده ئے کیږدے — بوی دَ عودو کا پیدا [۸۲]
که ئے تویه په صحرا کړے [۸۳] — ښائسته کاندی صحرا
که ئے نذر کړے و پیر ته — خوشحال درومی په خندا
څو ژوندے په دنیا پائی [۸۴] — یاده وی دِ په دُعا
دَ حاتم په خیر دِ ستائی — خطاب درکا دَ سخا
سخی هر یو دَخدائے دوست دے — وَ لَوْ كَانَ فَاسِقًا
هر بخیل دَخدائے دښمن دے [۸۵] — وَ لَوْ كَانَ زَاهِدًا
دنیا کښت دَ اخرت دے — دا خبره ده رښتیا
دَ دنیا طالبان ډیر دی — که ئے مُومی څوک له ځا [۸۶]
ولے مرد پکښې هغه دے — چه سخی وی هم پارسا
په دنیا کښې بدی نشته — که بدی نه وی له تا
په دنیا کښې خطا نشته — که له تا نه وی خطا [۸۷] ق
دنیا بحر دے بهیږی [۸۸] — آئینې غوندے صفا
خپل خپل مخ پکښې لیده شی — که څوک زشت وی که زیبا
هم خطر پکښې دَ سرشته — هم گوهر دے بے بها

وفادار لره وفا شوه[۸۹] جفاکار لره جفا
له یوه مخه ئے درد وی له یوه مخه دوا
چرته خوند کاندی دَ زهرو[۹۰] چرته خوند کا دَ حلوا
کار همه واړه موقوف دے دَ سړی پر مدعا
سالکان دِ نندارچي شی دَ خپل ځان په تماشا
هرچه کا هغه به مومی[۹۱] دنیا ځائے دے دَ جزا
لکه وی هسے به پاځی[۹۲] که نادان وی که دانا
که دانا یئے وپوهیږه[۹۳] په روا په نا روا
فتوٰی ونسه په مخ کښے پسے مه کړه په تقوٰی
دنیا نه ده هغه دین دے[۹۴] چه له نهی وی سیوا
وطاعت وته ولاړ وی همیشه تړلے ملا
له حرامو ئے پرهیز وی بیا ئے شپول وی پنځ بنا[۹۵]
کلمه ئے وی قبوله هم په جهر هم په خفا[۹۶]
دَ دنیا دَ کار دَ پاره فرض نمونځ نه کاندی قضا
هم صائم دَ رمضان وی هم زکوٰة کاندی ادا
که ئے توان دَ حج رسیږی حج هم وکا پسے بیا
دا پنځه بنا دَ دین دی چه بیان ئے وکړ ما[۹۷]
چه ئے یون په دا طریق دے هغه کس دے اولیا
که ئے مال دَ دنیا ډیر وی[۹۸] هیڅ دِ نه کاندی پروا
دنیا بده دَ هغو ده چه ئے کسب وی ریا
ق یا ئے کسب دَ ریا وی یا ئے وکتي په غلا[۹۹]
یا ئے تول کا په ظلم یا دَ خمرو په سودا

یائے ورکا پہ شرابو — یائے ورکا پہ زنا
یا ناحق خونونہ کاندی — یا مالونہ خوری دَ چا
عبادت کا پہ ځان فرض — دَ بادشاہ دَ امرا(۱۰۰)
حق باطل کا باطل حق کا — پہ سبب دَ روئے ریا
نہ ئے ویرہ وی لہ خدایہ(۱۰۱) — نہ ئے شرم نہ حیا
دَ یوے ګیډے دَ پارہ — هزار خونے کا بیدیا
همیشہ ئے لہ ستمہ — خلقہ وی پہ غوغا
گوش وهوش ئے هرگز نہ وی — دَ مظلومو پہ ژړا
دَ فرعون پہ شیرناست وی(۱۰۲) — بے پروا و کبریا
بت خانے وتہ ئے مخ وی — و مسجد وتہ ئے شا
اختلاط کا لہ بدانو — لہ نیکانو وی جدا(۱۰۳)
هیچ ئے نہ وی پہ خاطر کښے — تَوَلّا و تبرّا(۱۰۴)
و رحمان تہ پیښہ مہ کړے — خدایہ هسے رنگ بلا(۱۰۵)

۲۲۰ ۱۳/۱۳ ۱۲

چہ لہ تا سرہ پہ سر کاندی سودا
بل بہ نہ وی هسے ماغوندے شیدا
نہ بہ ماغوندے شیدا وی پہ جهان کښے
نہ بہ تا غوندے دلبر شی بل پیدا
ما بہ صبر ستا پہ جورو جفا وکړ(۱۰۶)
وے نہ شی دَ ژړا پہ ځائے خندا
بے دَ ستا لہ مخہ کون دے کہ مکان دے
بنہ توبنہ ے نہ پہ دا شی نہ پہ دا(۱۰۷)

جدائی به دِ هیڅ رنګ قبول نه کړم
څوک نه وی روح کالبوت سره جُدا[۱۰۸]
لکه وروستو مقتدیان وړاندے امام وی[۱۰۹]
ما په تا پسے ده کړے اقتدا
زه یو نه یم درست جهان په تا مئین دے
که بادشاه دے که وزیر دے که ګدا[۱۱۰]
کشکے خط دَ امانیه و ما راکړے
چه له ما سره وعده کړے دَ فردا[۱۱۱]
زه پخپله په تا نه یم مئین شوے
ستا له لوریه په ما شوے ده ندا[۱۱۲]
زه په تا باندے مئین یم له ازله[۱۱۳]
نه چه کړے مے نن ورځ ده ابتدا
چه دَ ستا دَ عاشقئ په تیغ اداشی
دَ رحمان غاړه به هله شی ادا[۱۱۴]
دَ رحمان و زیړی مخ وته نظر کړه
چه مدام کاندی په تا پسے ژړا[۱۱۵]

۲۲۹ ۹ $\frac{۱۴}{۱۴}$

چه ئے لوئے کاندی په ډول او په سُرنا[۱۱۶]
بیا پرے وائی زمانه دَ ویر وینا
که هر څوک دِ دلبری او دلجوئی کا[۱۱۷]
زه پوهیږم دَ خپل یار په استغنا

په یوه کړی مے یار هم مے اشنا وی (۱۱۸)
بیا مے بله کړی نه کښی اشنا
دا زه خپلے تسلے کړم یارۓ بولم
څه یاری ده دَ ناتوان او دَ توانا (۱۱۹)
یو زمان او یو دم بے خپله صنمه (۱۲۰)
زه بهتره تر بقا کښم فنا
هر سړے په یوے چارے خدائے مشغول کړ
زه مشغول کړم خدائے دَ ترکو په ثنا
ما بے عشقه بل هنر نه زده ناصحه (۱۲۱)
بخښنده شه که نادان یم که دانا
چه مے غوږ په نارو نه باسی حیران یم
پروا نه لری که وورِ دے که برنا (۱۲۲)
بے دَ یار له ښه دید نه دِ خدائے نه کا
دَ رحمان په زړه کښے بله تمنا

۲۳۸ ۹ ۱۵/۱۵

که نماښنام تر ستونی کښته کړے حلوا (۱۲۳)
سبا خواست کوے له خدایه دَ ښوروا
په هیڅ حال کښے دِ قرار و صبر نه شی
لیونے کړے دیر حرص و دیر هوا (۱۲۴)
تمامی عمر تر یار تر عزیز پورے
لوئے کیده ے مختورن کړے هم رسوا (۱۲۵)

چہ پہ خپلے رسوایی دِ پروا نہ شی
نور بہ څہ کړے پہ جہان دَ چا پروا[۱۲۶]
چہ دَ نفس دپارہ لاس وخدائے تہ نسے
دا زحمت لہ خدایہ غواړے کہ دَوا[۱۲۷]
نفس بے شمارہ عالم پرے یست وکوھی تہ
خدائے دِ نہ کا نابینا دَ چا پیشوا
پہ روا پہ نا روا کلہ پوھیږی
وچارپائے تہ څہ روا څہ ناروا
چارپایان کہ غوړ او سترګے لری څہ شو
پہ معنیٰ کښے نابینا دی ناشنوا
زہ رحمان لہ ھغہ علمہ پناہ غواړم
چہ لہ دینہ لہ مذھبہ وی سیوا

۸ ۱۶/۱۶ ۲۴۶

دل و دین مے ھغہ ترک کړ رھا[۱۲۸]
لائے نہ حسابوی دَ ځان بھا
دَ ښائست صفت ئے څوکوم حیران یم
پہ ھیڅ رنګ ئے موندے نہ شی انتھا[۱۲۹]
دَ صورت لہ عیبہ ھسے پاکیزہ دہ
لکہ ذات دَ ویښتو نشتہ دے پہ ھا[۱۳۰]
کہ ئے مخ پہ زلفو پټ دے باک ئے نشتہ[۱۳۱]
تل پہ ګنج باندے پراتہ وی اژدھا

لکه نمر هسے جلوه کا په شفق کښے
چه په سرکاندی اوړنی دَ سُها
نه پوهیږم چه په کومه لار وردرومم
چاپیراست ئے رقیبان دی هزارها
خدائے دِ هسے تنها نه کا څوک په غم کښے
لکه زهٔ دَ یار په غم کښے یم تنها (۱۳۲)
همیشه دَ بیلتانه په غم کښے لولم
زه رحمان اَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْهَا (۱۳۳)

۲۵۸ ۱۷/۱۷ ۱۲

که مئین ئے په خپل یار باندے رښتیا
آواره کړه اول دین پسے دنیا
په وفا دَ دلبرانو غلط مه شه
دغه قوم دے بے وفا وکبریا
دَ خوبانو طائفه ده هسے شوخه
چه غوږ نه باسی دَ چا په واویلا (۱۳۴)
دَ ډیر ناز او دَ ډیر کبر له سببه
عمل نه کا په گفتار دَ اولیا
دِل و دین په نیم نگاه دَ سرې یوسی
نه ئے ویره له چا کیږی نه حیا
بل به هسے سرگردان په جهان نه وی
یا عاشق دے یا اسمان دے یا آسیا (۱۳۵)

نه چه ژغورے سرو مال په عاشقئ کښے (۱۳۶)
عاشقي دا هسے چرے ده ویریا
دَ جنت تر حورو تیر شه که یارغوارے
خدائے دِ نقد ده دَ چا نه کاندی نسیا
دَ ساقی له لاسه هسے باده نوش کړه (۱۳۷)
چه دِ غوږ کړه له زړه خیرے دَ ریا
چه ئے کسب عاشقي شي دَ دلبرو (۱۳۸)
نظر نه کاندی په کسب دَ کیمیا
عشق هنر دَ مخلصانو دے رحمانه
نه حصلیږی مخلصی په رُو ریا (۱۳۹)
یو گفتار درلره بس کاندی رحمانه
څه په هر ساعت پښتنه کړے بیا بیا

ق

۲۶۹ ۱۸/۱۸ ۱۱

بادشاهی لری هر یو غلام دستا
دَ خاصانو په ځائے ناست وی عام دستا
پخته کله وی چه لاف دَ پختګی کا
پختګان دی په دا خم کښے خام دستا (۱۴۰)
خو هم هومره ئے په ننګ و نام نظر وی
څو چا نه وی اوریدلے نام دستا (۱۴۱)
همیشه به له مقامه بے مقام وی
هغه څوک چه لټوی مقام دستا

خو په خپلو وينو ګل غوند ے غرق نه وی[۱۴۲]
وبه نه وينی رخسار ګل فام د ستا
صبح وشام په هغو خلقو باند ے يو وی[۱۴۳]
چه ارزو لری هر صبح وشام د ستا
بل کلام ئے په زړه کله اثر کاندی
چه ترغوږ ئے شی شيرين کلام دستا
فراموش کاندی همه نور ے مستی[۱۴۴]
هرچه نوش کاندی باده په جام دستا
دام د ستا د تورو زلفو عالمګير د ے[۱۴۵]
تنها نه يم نښتے زه په دام دستا
هسے نه چه زه رحمان يوائے بند يم
ټول عالم د ے بنديوان په دام دستا[۱۴۶] ق
زه رحمان دُعا سلام په هغو وايم
هرچه ما لره راوړی سلام دستا[۱۴۷]

۲۸۱ ۱۲ $\frac{۱۹}{۱۹}$

هرچه ووينی په سترګو روئے دستا[۱۴۸]
ځ ئے کوږ وی هميشه په سوئے دستا
بے دماغه به تر سرو ماله تير شی
چه ئے تير شی تر دماغه بوئے دستا
که لوئي کړے څه بے ځايه خوئے نه کړے[۱۴۹]
چه په دا رنګه قامت د ے لوئے دستا

نوبهار شه عالم سیر دَ بوستان کا[۱۵۰]
خدائے و ما وته بوستان کړکوئے دستا
دَ عیسیٰ له دمه دم وهلے نه شم
چه خوله بیرته شی په گفتگوئے دستا
هم په داغ له چشمانو جوئے بهیږی[۱۵۱]
چه یادیږی مے قامت دلجوئے دَستا
همیشه ئے زړه په اوربا ندے سپندوی
وهغو ته چه څرګند شی خوئے دستا[۱۵۲]
دَ لړم لاشهٔ ئے ماته وی په زړه کښے
چه ئے نقش وی په زړه ابروئے دستا
وزنځیر وته ئے څه لره راکاږے
لیونیو لره بس دے موئے دستا
وګرنګ وته پخپله ځان پریباسی
چه و زړه وته پریباسی ووئے دستا
که ته سل ځله زمائے زه د ستا یم[۱۵۳]
تلوئے نه دے له ما جستجوئے دستا
ګل لمبه شهٔ دَ بلبل په آه رحمانه
نه ګروهیږی یار په هائے هوئے دستا

۱۵ $\frac{۲۰}{۲۰}$ ۲۹۶

خوئ که په دا شان وی دل آزار ستا[۱۵۴]
څه بنادی به کاندی طلبګار ستا

حیف چه اوریده شی لیده نه شی
حسن لطافت دے پری وار ستا(۱۵۵)
بیا دوباره نه گوری و بل ته(۱۵۶)
هرچا چه لیدلی دی رخسار ستا
خدائے زده چه به ته د کوم یو یارئے(۱۵۷)
هر طرف یاران دی صد هزار ستا
ځائے دَ پښو ینبوے مونده نه شی
هومره عاشقان دی په دربار ستا
بل به هسے نه وی که ئے خدائے کا
ما غوندے خاکسار او هوا دار ستا(۱۵۸)
بل گمان دا هسے بد په ما مه کړه(۱۵۹)
عمر واړه زه او انتظار ستا
عشق دے له حسن او حسن دے له عشق(۱۶۰)
ته نګار زما ئے زه نګار ستا
ته زما مطلوب زه دِ طالب یُم
ته زما طبیب ئے زه بیمار ستا
ته که تازه گل دَ نوبهارئے
زه یم عندلیب په لاله زار ستا
جور که جفا ده که ستم دے
واړه مے منلی دی یکبار ستا
جور د چا څوک په بها پیری(۱۶۱)
زه یم دَ جورونو خریدار ستا

یو تار که ضائع شی ستا دَ زلفو
ځان به صدقه کړم تر هر تار ستا (۱۶۲)
سل اُزمائښتونه دِ را وکړه
حیف دے چه لا نه شی اعتبار ستا
تیر یم زه رحمان تر نوره کاره (۱۶۳)
اوس مے ملا تړلے ده په کار ستا

۳۰۵ ۹ ۲۱/۲۱

که څوک یار په جهان غواړی یار دے دا
یار دے دا که دجهان سنګار دے دا (۱۶۴)
خیال دَ زلفوئے زما تر زړه چاپیر شه
یا تر ګنجه چاپیر شوے مار دے دا (۱۶۵)
دا جهان دے خدائے له عشقه پیدا کړے
دَ جمله وُ مخلوقاتو پلار دے دا
تر عشق غوره بل څه کار په جهان نشته
تر همه کارونو غوره کار دے دا (۱۶۶)
بے له عشقه روزګارونه واړه پوچ دی
ق که روزګار دے خو بهتر روزګار دے دا (۱۶۷)
هیڅ بلبل به دَ ګل نوم اخستے نه وو
که خبر وے چه ګل نه دے خار دے دا
بیا راتله ودے جهان ته بل وار نشته (۱۶۸)
بل وار نشته بل وار نشته وار دے دا

دَ حباب عمر دِ وګوری چه څو دے
که څوک شمارکاندی دَعمرشمار دے دا [۱۶۹]
دَ مجنون صورت په زړه کا رحمان ګوره
ستا په عشق کښے هسے خوار و زار دے دا

۳۲۶ ۲۱ $\frac{۲۲}{۲۲}$

چه امید په عمارت دَ دے دنیا کا
دَ کاغذ په کشتئ سیر دَ دریا کا
دَ اسمان توسن هیڅا نه دے تیز لے [۱۷۰]
څوک به څه رنګه سورلی دَ بادپه شا کا
نه لیوه په ادمیت اموخته کیږی
نه امید دَ مروت شی له افلاکا
له فلکه دَ وفا امید باطل دے
کله دیو له ادم زاد سره وفا کا
زمانه په اسلام کفر سمه ګرځی
فرق دَ تور و دَ سپین کله نابینا کا
ما دَ دهر علامت په سترګو ولید
چه هر دم هزار پیدا هزار فنا کا
هیڅ امید ے دَ ایام په ګردش نه شی [۱۷۱]
چه فرصت به په خپل دَور وَ ما را کا
په خپل عمر به هیڅا لید لے نه وی
هغه چارے چه ئے هر ساعت په ما کا [۱۷۲]

که دَ ګلو غنچه کیږدم په دستار کښې
شوم طالع مې هلته خار ځنې پیدا کا
که و زړو وته لاس کړم خاورې کیږي
که دَ خاورو په آرزو شم استغنا کا [۱۷۳]
جدائي دَ خدائې بلا شوه نه توانیږم
خوشې زړه مې په دیدن پسې بلا کا [۱۷۴]
دَ دیدن تږي به څه رنګه سهیږي
ق چه دَ حسن ابر هر لوري بریښنا کا [۱۷۵]
هومره صبر دې عاشق څخه لهٔ کومه
چه دَ نن وعده موقوفه په فردا کا
که دَ اور جامه راواغوندې دلبره
په نظر زما جلوه لکه دیبا کا [۱۷۶]
په خپل عشق کښې که څوک بد راباندې وائي
زهٔ ګمان کړم چه همه زما ثنا کا
ملامت په عاشق ښائي دا دستور دې
چه روغ خلق په رنځور پورې خندا کا
عاشقي او ننګ و نام دي وبله لرې [۱۷۷]
په روښانه ورځ به څه رنګه څوک غلا کا
که زهٔ طمع کړم دَ ګلو له طالع نه [۱۷۸]
ما عاجز لره دَ ګل په ځائې خار را کا
که زهٔ ځان ژغورم په عشق کښې له عالمه
زمانه مې په جهان باندې رسوا کا

همیشه به په عالم کښې وی سُرخرویه
چه ثنا لکه بلبل دَ خپل اشنا کا
دا خُواب رحمان هغه کا چه دولت وے
"که دلبر دَ دیدن مئے پیاپے راکا"

۳۴۳ ۱۷ $\frac{۲۳}{۲۳}$

هرچه ستا کوخه ماویٰ کا — ځائے ئے بر شی ترافلاکا
ځان هاله ورته بادشاه شی — چه ئے ستا دَ درګدا کا(۱۷۹)
چه دَ ستا دَ درګدا شی — بادشاهیه وته شا کا(۱۸۰)
نظر بے دَ ستا له رویه(۱۸۱) — نه په ارض نه په سما کا
مینه بے دَ ستا له مخه — نه په دین نه په دنیا کا
ستا په مهر محبت کښې(۱۸۲) — ځان جهان واړه فنا کا
دَ دنیا کور او کوډلے(۱۸۳) — ستا په مینه کښې تالا کا
رضا ستا په رضا کیږدی — ترکه خپله مدّعا کا
په هرخوا چه دستا مخ وی(۱۸۴) — دے هم مخ په هغه خوا کا
که له چا سره جفا کړے — له هغه سره جفا کا(۱۸۵)
که له چا سره وفا کړے — له هغه سره وفا کا(۱۸۶)
که په عمر چرے خاندی — خوله تا سره خندا کا
که په عمر چرے ژاړی — خو په تا پسے ژړا کا
که مطلب ئے دَ دیدار وی — ستا دَ حسن تماشا کا
که مطلب ئے دَ ګفتار وی — ستا په ذکر مشغولا کا
دَ رښتینیو مقام دا دے — که څوک مینه په رښتیا کا

عاشقان په عاشقئ کښے چه رحمان وائی هم دا کا

۳۴۸ ۵ ۲۴/۲۴

هسے نه چه زما یار واړه جفا کا (۱۸۷)
صد چندان لکه جفا هومره وفا کا
لکه زه چه په خپل یار باندے میئن یم
یو په سله هومره مینه یار په ما کا
زړه ئے وړے په احسان دے نه په جور (۱۸۸)
مجنون څکه په لیلیٰ پسے ژړا کا
درست جهان دَ خوبرویانو نازپرورد ے (۱۸۹)
نه یوائے دغه ناز په ما او تا کا
خشکل نه کوری رحمان وهغه مخ ته
چه فرښتے ئے هم دَ حسن تماشا کا (۱۹۰)

۳۵۶ ۸ ۲۵/۲۵

چه په سترګو کښے ئے خاروی څه به خوب کا
چه په زړه ئے غم دَ یار وی څه به خوب کا
خوب له یاره سره هم دَ عاشق نه شی
چه ئے یار په بل دیار وی څه به خوب کا
په دنیا کښے خوب هغه کا چه نادان وی
هغه ژوی چه هوښیار وی څه به خوب کا (۱۹۱)
کوم طالب مطلوب موندلے دے په خوب کښے (۱۹۲)
هغه څوک چه طلبکار وی څه به خوب کا

دیدار نه دے چا په پټو سترګو کړے [۱۹۳]
چه مطلب ئے دَ دیدار وی څه به خوب کا
بله لار دَ مرګ تر لارے ګرانه نشته
چه په خوائے هسے لار وی څه به خوب کا
هر نګاه دَ دلبرانو ذوالفقار دے
هر چه غوږ په ذوالفقار وی څه به خوب کا
زه رحمان دَ یار بنده او خدمتګار یم
چه بنده او خدمتګار وی څه به خوب کا [۱۹۴]

۳۶۳ ‹۲۶/۲۶›

هغه ژوی چه مئین وی څه به خوب کا
چه مجنون او کوهکن وی څه به خوب کا [۱۹۵]
هر نفس دَ سړی تله دی له جهانه [۱۹۶]
چه ئے هر نفس رفتن وی څه به خوب کا
چه سبا له خپله یاره جدا کیږی
که دَ سلوشپو کرمن وی څه به خوب کا
عاشقی ده خدائے له اوره پیدا کړے
چه په اور کښے ئے وطن وی څه به خوب کا
دَ اوبو تږی هم خوب کولے نه شی
ترو چه تږے دَ دیدن وی څه به خوب کا [۱۹۷]
دَ رقیب له جوره خوب دَ عاشق نه شی
دَ هغو چه دیو دشمن وی څه به خوب کا

خوب خندا له بے غمبیه شی رحمانه
ځوک چه ستا په ځیر غمژن وی څه به خوب کا (۱۹۸)

۸ $\frac{۲۷}{۲۷}$ ۳۷۱

هغه ژوی چه بے خدایه محبت کا
همګی واړه بے ځایه محبت کا (۱۹۹)
محبت بے خدایه واړه دَ زړه رنځ دے
که مدام له چنګ و نایه محبت کا (۲۰۰)
خرخاری ده چه ئے یو ځبله کاندی
هرخود رائے چه له خود رایه محبت کا
نتیجه ئے ریش کنده جامه پاره وی (۲۰۱)
ادم زاد چه له چارپایه محبت کا
هغه سرائے لره به تله وربانده ګران وی
هر سړے چه له دے سرایه محبت کا
بوالهوس به نه پتنګ نه پروانه شی
دَ مګس په ځیر له ورایه محبت کا
چه دَ تورو زلفو سیورے په چا وشی
هغه کله له همایه محبت کا
رحمان ځکه دَ ریبار متابعت کړم
چه رهرو له رهنمایه محبت کا

۵ ۲۸/۲۸ ۳۷۶ (۲۰۲)

دَ بے دردو همدمی به دِ بے دردکا
دَ نامردو همدمی به دِ نامردکا
صحبت بے تاثیره نه دے داحدیث دے
کونګو نمری دَ کونګو په ځیرزردکا
هرکالے چه څوک په زمکه باندے کیږدِی
هغه زمکه ئے له جنسه دَ خپل ګردکا
په مجلس دَ ویره ژلیو څوک ورمه شه
که صحیح وسلامت وی اه سرد کا (۲۰۳)
چه دوئی له میانه لرے شی رحمانه
معشوقے عاشق پخپله نازپروردکا

۱۲ ۲۹/۲۹ ۳۸۸

که په ګنج دَ شاهی فخر شهریارکا
عاشقان ئے دَ دلبرو په رخسارکا (۲۰۴)
خرقه پوشو په خرقه کښے دے موندلے
هغه حظ چه په دنیا کښے دنیا دارکا
پتنګانو لره ورکړ خدائے په اور کښے
هغه عیش چه بلبل ئے په ګلزارکا (۲۰۵)
نیک ساعت په بد بدل دَ هیچا مه شه (۲۰۶)
په وصال کښے غم دَ هجر وردوخارکا
نفس دَ ګورو دَ موریو دے په معنیٰ کښے (۲۰۷)
خو په چا ئے تور لحد په چا بازارکا

دَ بیړۍ په ډوبیده چه خدائے راضی شي
یکانکیه دَ ماڼکیانو کله کار کا[۲۰۸]
هغه مخ چه مادرزاد ښائسته نه وي
مشقت دَ مشاطے واړه مردار کا
یار دَ ناز له خوبه پاڅي پسے کرځی[۲۰۹]
چه فلک دَ عاشقانو بخت بیدار کا
نیمه شپه ئے یار ترسره پورے کښېني[۲۱۰]
لکه شمع چه څوک بله په مزار کا
دَ مستۍ دَ هوښیارۍ یون څرګند دے
په هرچا کښے چه څه وي هغه رفتار کا[۲۱۱]
دَ بلبلو نغمه زاغ کولے نه شي
هر سرود اواز په طور دَ خپل تار کا
رحمان هسے بے وقوف سوداګر نه دے
چه دَ دین متاع بدله په دینار کا

ق ۳۹۷ ۹ $\frac{۳۰}{۳۰}$

هر ګفتار هره وینا چه څوک عبث کا
تر عبث ویئل دا بهٔ دي چه ئے بس کا[۲۱۲]
په وروستو پښیمانیږي
له اوله دِ ئے نه کا ترخولے هسکه[۲۱۳]
هره چار چه له اختیاره وي وتلے
بے هوده به ئے څوک لا فے دَ دسترس کا[۲۱۴]

فقیری دَخدائے پہ مهرمونده کیږی
دَ هنر په کبر نه شي چه ئے نفس کا (۲۱۵)
آدم زاد په معنیٰ واړه یو وجود دے
یو وجود دے هم ئے پاک هم ئے نجس کا
که ئے اصل له یوه جویه دے څه شو
دَ گلونو هنر کله خار و خس کا
معتقد له اعتقاده مقصود بیاموند
دَ هغو طاعت غلط دے چه وسوس کا
په اخلاص دَ نمازگذارو دے جنب دے
هر نمازی چه په ریا مونځ او اودس کا (۲۱۶)
ته به ئے څه کوے رحمانه (۲۱۷)
دَ خود بینو سزا خپله خودی بس کا

۴۰۶ ۹ ۳۱/۳۱

چه امید په عمارت دَ دے جهان کا
لکه کربنه په اوبو هسے نبنان کا
دَ اوبو په مخ دَ کربنے بقا نشته (۲۱۸)
په نابود باندے ناحق دَ بود گمان کا
نادانانو هسے دین په دنیا بایلو
لکه ډوکے دُر بدل په پارچه نان کا (۲۱۹)
دَ دنیا دَ دین نسبت وبله نه شی (۲۲۰)
اور اوبه سره استوکه په څه شان کا

په خپل ځائے دِ سرے غواړی هرچه غواړی
نه چه بے وریځے طمع دَ باران[۲۲۱] کا

عشق دَ نفس له خاصیته منزّه دے
کار دَ سترګو به څوک څه رنګ په دهان کا

لکه چشم وګوش په کار کښے وبله بیل دی
هسے دین او دنیا حکم په ځان ځان[۲۲۲] کا

په پیری کښے دَ ځوانیه خیال دے هسے
لکه څوک چه دَ باغ سَیر په خزان کا

بے درګاهه ئے بل ځائے دَ رحمان نشته
په سفر استوګه څو مسافران کا

ق ۴۱۶ ۳۲/۳۲ ۱۰

دلربا که دَ خپل حسن مخ عیان کا
ډیر بے غمه جمع زړونه به لرزان[۲۲۳] کا

په کشور دَ صابری به قیامت شی[۲۲۴]
اسرافیلؑ غوندے اواز یه هر نالان کا

چه ئے جام دَ لعلو لبو وی نوشلے
پیمانه دَ ځیګرخون په دا تاوان کا

دَ جبین په چین ئے هسے رنګ پوهیږم
چه محراب به دَ کاڼلو زړونو وران کا

دَ پریشان ګیسو دلیل ئے عین داد ے
چه وابست زړونه په دا رنګه پریشان کا

که جلوه ئے دَ جمال شی معیّنه
په شعله به نمر سپوږمیه سوے نان کا
که دَ باد گذرئے وی وخاکِ پائی ته[۲۲۵]
د هندو سترگو دارو به خدائے اسان کا
که شانه په تورو زلفو باندے کیږدی
مشک عنبر به دَ یوے پیسے ډیران کا
تورے زلفے ئے هم مشک دی هم عنبر دی
خو زما له کم بختی ئے خدائے ماران کا
که پلو له مخه لرے کا رحمانه
په دیدن به هندو واړه مسلمان کا[۲۲۶]

۴۲۳ $7\frac{۳۳}{۳۴}$

زما اوښے چه دا هسے شُست و شو کا
دا محنت واړه زما دَ مخ په ولو کا[۲۲۷]
تل ئے مخ وی ترخوبانو پورے ولے
عاشقی چه دَ چا اوښے په شیبو کا
دَ عاشق دَ سینے چاک به ورځ گندشی[۲۲۸]
که څوک سر وخپل گریوان وته فرو کا
دَ عشق اور چه شمع خود په سر قبول کړ
پروانه به څه حجت دَ ځان په سو کا
گل څه نه وائی چه غرق په وینو ناست دے
بلبل څه لره بے ځایه گفتگو کا

زه که مرګ غواړم بې یاره ګرم خو نه یم (۲۲۹)
جدائي سرې په ځان پورې په کو کا
معشوقې په محنت نه دي چا موندلي
مګر خدائې په رحمان باندې پیرزو کا

۴۲۹ $\frac{۳۴}{۳۴}$ ۶

ورځ چه بده شي عاقل او دانا څه کا (۲۳۰)
چه قضا شي ورد وځاره حکما څه کا
مور او پلار خو نیک فرزند له خدایه غواړي
چه بدبخت شي ادې څه کا ابا څه کا (۲۳۱)
یار له یاره په لوئې لاس کله بیلیږي
چه لاس نه رسي یار څه کا اشنا څه کا
په ښیرو په دُعا څه شي کړونې خدائې دې (۲۳۲)
چه خدائې نه کا ښیرې څه کا دُعا څه کا
بخت په زور او په زر نه دې چا چپل کړې
په دا کار کښې ناتوان څه کا توانا څه کا
اې رحمانه پتنګ عذر شو چه وسوو
اوس دَ شمع خندا څه کا ژړا څه کا

۴۴۴ $\frac{۳۵}{۳۵}$ ۱۵

عاشقان دَ ناصحانو وینا نه کا
مست هاتیان دَ مهوتانو پروا نه کا

(۲۳۳) وارہ جور دَ دے دور مے قبول دے
کہ خدائے ما لہ خپلہ یارہ جدا نہ کا
چہ دَ گلو پریشانی شوہ ورڅرگندہ
غنچے سر پہ زانو کښیښوو خندا نہ کا
وسیلاب تہ دَ ډنډوکی څہ استاد دے
زړہ چہ ژاړی سترگے څرنگ ژړا نہ کا
(۲۳۴) دنیا کل پہ احمقانو دہ ودانہ
دانا ځکہ وابستگی دَ دنیا نہ کا
خود پرست تر بُت پرست پہ ھغہ خوار دے ق
(۲۳۵) سالک ځکہ کار پہ خپلہ رضا نہ کا
چہ ئے زړہ وی پہ ھوا پورے تړلے
دَ حباب عمارت ځکہ بقا نہ کا
بے ھنردی چہ څوک دین پہ دنیا پلوری
ھنرمند سړے دا ھسے سودا نہ کا
کہ څوک وائی ھوښیار کوم دے وایہ دا دے
چہ بے خدایہ نورہ مینہ پہ چا نہ کا
گدائی کہ وړپیښیږی دا ئے ځائے دے
(۲۳۶) ھر بادشاہ چہ دلجوئی دَ گدا نہ کا
(۲۳۷) ھر چہ زړہ ئے وی پہ یار باندے بائیلوے
نورہ مینہ پہ چا بے لہ اشنا نہ کا
چہ ترغوږ ئے وی وینا دَ اشنا شوے
ھغہ غوږ ھرگز پہ نورہ وینا نہ کا

و به نه رسی دَ یار تر بلند بامه
چه دَ زړه غوځ روشن په ژړانه کا
چه بیدل ئے په یوه نګاه رغیږی
څه انصاف دے چه دلبر ئے دوانه کا(۲۳۸)
زه رحمان دَ هغه یار په جفا خوښ یم
که اغیار مے خدائے له میانه پیدا نه کا(۲۳۹)

۴۵۱ $\frac{۳۶}{۳۲}$ ۷

څوئے یو ځله تاراج په جفا نه کا
یار له یاره سره مهر وفا نه کا(۲۴۰)
که ئے سر په بوسه ورکړم زه پوهیږم
چه قبول به دغه عجز زما نه کا(۲۴۱)
چه پخپله رضا تللے مادرزاد وی
هغه هیچرے دَ نورو رضا نه کا
څوئے خپله مدعا حاصله نه شی
مهرویان په خوله دَ خضر سودا نه کا
که ئے سل ځله دُعا کوم په عمر
ګوش وهوش دَ دعا کوئ په دُعا نه کا
که اهونه اتشین پسے وکاږم
لکه سروه له خزانه پروا نه کا(۲۴۲)
که ارام غواړی رحمان په عاشقئ کښے(۲۴۳)
دغه واړه ناروا کا روا نه کا

۱۶ $\frac{۳۷}{۳۷}$ ۴۶۷

کہ سرے لہ خپلے پوھے تقصیر نہ کا (۲۴۴)
دَ خدائے کرہ بہ څوک پہ پوھہ تغییر نہ کا

خواہ ناخواہ بہ دَ تقدیر شوی ورپیښی شی (۲۴۵)
کہ څوک ھیچرے نظر پہ تقدیر نہ کا

دَ ھغو چہ بخت بیدار شہ غم ئے نشتہ
کہ ھیچرے بیداری و شبګیر نہ کا (۲۴۶)

دا لہ خپلے کم فھمیہ مونږہ وایو
چہ فلانا سړے تالاش وتدبیر نہ کا (۲۴۷)

دلګیری او خوشحالی کہ پہ خپل لاس وے
پہ خپل لاس بہ خپسر ھیڅوک دلګیر نہ کا

معرفت دَ خدائے څرګند دے پہ ھرڅہ کښے
سترګے وخورہ چہ څوک ھومرہ نظیر نہ کا

دا نفس پہ مثال برق صورت فانوس دے (۲۴۸)
برق بہ ھیڅوک پہ فانوس کښے اسیر نہ کا

دَ دنیا سړی ھمہ وارہ درماند دی (۲۴۹)
کوم بادشاہ دے چہ منت دَ وزیر نہ کا

کوم وادہ کومہ کوژدن دہ پہ جھان کښے (۲۵۰)
چہ فلک ئے و آخر وتہ ویر نہ کا

پہ خولہ ھریو سړے اسم دَ پیر اخلی
بارے څہ پکار چہ نغوتہ دَ پیر نہ کا

دغه نښې دَ قیامت نه دی نور څه دی
چه دَ پلار وئیل په زویه تاثیر نه کا (۲۵۱)
هسې چارې له ناصحه واقع کیږی (۲۵۲)
چه له شرمه ئې هیڅ غل اوکا سیر نه کا
په مرده پسې تکبیر وکا روان شی
هیڅ گمان په ځان دَ هسې تکبیر نه کا
په دنیا پسې درست عمر زهیریږی
ځان یو دم دَ خدائے دپاره زهیر نه کا
دَ عیال دپاره تیر تر سر و مال شی
دلجوئی په یوه ټوک دَ فقیر نه کا
رحمان کرم دے چه نارے دَ هجران اوری
و اشنا وته کاته په ځیر ځیر نه کا

۴۸۰ ۱۳ $\frac{۳۸}{۳۸}$

زړه مے بے خپله نګاره ارام نه کا
کامرانی راڅخه غواړی ناکام نه کا (۲۵۳)
بے ناکامه زیست محال دے په جهان کښې
دَ کوم اس په خوله کښې دخل لغام نه کا (۲۵۴)
دَ اسمان ماڼی هم په قرار نه شوے
سالک څکه خیال دَ قصر و دَ بام نه کا (۲۵۵)
کاه ئے کښینوی په تخت کله په خاورو
زمانه رضا دَ هیچا مدام نه کا

بے لہ سروے چہ ازادہ خدائے پیدا کا
ترکے ځکہ وهیچا تہ سلام نہ کا[۲۵۶]

کوہ و دشت هم دَ خزان لہ غمہ زیړ دی
زرکہ ځکہ وچمن تہ خرام نہ کا

چا چہ سر وی پہ سجدہ و یار تہ ایښے
دوبارہ لہ دے سجودہ قیام نہ کا

چہ ئے کړہ وی دَ یار پہ لوری لښلے
لکہ بحر هسے دروی مقام نہ کا

نشستن دَ عاشق نشتہ لکہ شمع
څو صورت دَ عشق پہ اور کښے تمام نہ کا

چہ محظوظ وی پہ تش بوئی دَ مهرویانو
هغہ فکر دَ بوسے دَ پیغام نہ کا

چہ لذت ئے دَ سرو شونړو وی موندلے
نورہ مینہ دَ شرابو پہ جام نہ کا

پہ هغو دَ لعلو لبو مئے حرام دی
چہ دا نور لذت پخپسر حرام نہ کا

رحمان هسے وخپل یار تہ بے حجت دے
لکہ عذر وصاحب تہ غلام نہ کا[۲۵۷]

۴۸۷ $\frac{۳۹}{۳۹}$ ۷

ترحد تیرہ شوہ پہ یار پسے ژړا زما
نہ کړو هیڅ پہ ژړا زما اشنا زما[۲۵۸]

کہ ے ھرہ وینا دُر او مرغلر شی
ستا دَ غوږ لائقت نہ لری وینا ژما (۲۵۹)
پہ نارو بہ ما بیدار کړِکہ خوب وړے وے (۲۶۰)
بارے ویبنِ راتہ وُودہ شہ دلربا ژما
زہ مکتوب غوندے پہ پټہ خولہ خبرکړم
خاموشی زما تیرے کا تر غوغا ژما
گبنت دَ عشق پہ تودہ زمکہ اسان چیرے (۲۶۱)
سمندر بویہ چہ زیست کا پہ صحرا ژما
دا یار نہ دے چہ هجران لہ ما نہ بیل کړ
روح زما دے چہ لہ تنہ دے جدا ژما
زہ رحمان بے خپلہ یارہ هیڅ نہ غواړم (۲۶۲)
کہ قبولہ وی دَ خدائے پہ در دُعا ژما

۴۹۵ ۴۰/۴۰ ۸

هر چا چہ لیدلے نہ وی یار زما
څہ شو کہ بد وائی پہ کار زما (۲۶۳)
هر چا چہ زما دلبر لیدلے دے
نہ بہ کا انشاء اللہ انکار زما
سر ژما او درگاہ دَ هغہ یار عزیز (۲۶۴)
بے دے لارے نشتہ بلہ لار زما
ما بے عاشقیہ نور هیڅ زدہ نہ دی
هرچہ دے هم دا دے وارہ کار زما (۲۶۵)

هیڅوک دِ خدائے یو ځبله ازار نه کا
اے دلبره مهٔ اخله ازار زما
ستا دَ جدائیه په غمونو کښې
سیند دَ اوښیو دروی په رخسار زما
لوئے او هلک واړه ستا خبرے کا
بل ګفتګوئے نشته په دیار زما
زه رحمان به لاف په عشق کښې څه وهم
خود په ځان څرګند کا انتظار زما

۵۰۶ ۴۱/۴۱ ۱۱

سل ځله که وخوری ناصحان ځیګر زما
بیل به ځبله نه کا در دَ ستا او سر زما (۲۶۶)
تیرشه په دا طمع په درستا عمر زما ق
ګونډے چرے کیږ دے به قدم په سر زما
تا وے چه دَ عشق پیاله خوږه ده ترشکرو ق
وسوه په هجران کښے دے پیالے ځیګر زما
سل جفاکه ووینم په سترګو ستاله لاسه ق
ستا په جفا نه کیږی هرګز باور زما
صبر ستا په عشق کښے دا خبره څوک او زه څوک
نشته دَ دے چارے توان یو موئے قدر زما
ستاله محبته جار واته وما ته عار دے (۲۶۷)
ولے خاورے نه شی په دا لار بشر زما

وارہ معشوقے دَ عاشقانو خبر اخلی
بے لہ تا چہ نہ اخلےیو دم خبر زما
هیڅ اندوه مے نشته بے دَ ستا لہ جدائیہ
نور اندوه بہ څہ وی تر دغہ بتر زما
خوب دَ کورو کلی پہ نارو زما برهم شہ[۲۶۸]
څہ چار دہ چہ نہ شی ستا پہ زړہ اثر زما
یا لہ ما رحمان سره جفا مہ کړه دلبره
یا بے تا راوښیہ یو بل دلبر زما ق
درست جهان کہ وارہ ما رحمان لره دلبر شی[۲۶۹]
چرے دے دلبره بے تا بل دلبر زما

۵۱۵ ۹ $\frac{۴۲}{۴۲}$

هسے یاد یئے همیشه مدام زما
چہ اوراد یئے پہ هر صبح و شام زما
هر کلام چہ بے دَ ستا لہ یادہ وکړم
سل توبے دی پہ هغہ کلام زما
کہ بے تا دَ زړه ارام کړم پہ سل رنگہ[۲۷۰]
نہ شی نہ شی پہ هیڅ رنگ ارام زما
ننگ و نام کہ ستا پہ مینہ لہ مادرومی
ځار شہ ستا تر مینے ننگ و نام زما
چہ قائم شوم پہ مقام دَ عاشقیہ
هیر شہ دلے وتہ بل مقام زما[۲۷۱]

څو دَ عشق پہ خم خانہ ے داخل نہ کړ
پخته نه شه دغه عقل خام زما
نن دِ وقت دے که ے اه وِ فریاد اورے
څو لا نه دے خاورے هراندام زما (۲۷۲)
هزار جام و صراحي دے فلک مات کړه
څو به گرځي په دا دور جام زما
زه رحمان به دا ناکام کوم ترکومه
وایه کله به حاصل کړے کام زما

۵۲۵ ۱۰ $\frac{۴۴۳}{۴۴۳}$

سر زما سامان زما ځارشه ترجانان زما
ځارشه ترجانان زما سر زما سامان زما
زیان زما نقصان زما واړه دَ یار هجر دے
واړه دَ یار هجر دے زیان زما نقصان زما
گل زما ریحان زما ستارخسار او زلفے دی
ستارخسار او زلفے دی گل زما ریحان زما
مشک زما زعفران زما ستا دَ کوڅے خاورے دی
ستا دَ کوڅے خاورے دی مشک زما زعفران زما
فکر زما توان زما ستا په غم کښے نه رسی
ستا په غم کښے نه رسی فکر زما توان زما
اه زما افغان زما هیڅ په تا اثر نه کا
هیڅ په تا اثر نه کا اه زما افغان زما

پیران زما شیخان زما ستا په غم را نه رسي (۲۷۳)
ستا په غم را نه رسي پیران زما شیخان زما
زړه زما چشمان زما بې تا هیڅ حال نه لري
بې تا هیڅ حال نه لري زړه زما چشمان زما
باغ زما بستان زما بې تا میوه نه نسي
بې تا میوه نه نسي باغ زما بستان زما
وصال زما هجران زما رحمانه واړه خیر دے
رحمانه واړه خیر دے وصال زما هجران زما (۲۷۴)

۵۳۲ $\frac{۴۴}{۴۴}$ ۷

(۲۷۵)
نور خوبان دَ ستا په خیر نه دي لیدلي ما
نه لیدلي نه په غوږو اوریدلي ما
هیڅ وفا دَ عاشقانو سره نه کا
دلبران دَ زمانې دي ازمائیلي ما
چه مې ستا وښکلي مخ وته نظر شه
نور بیا نه دي وبل مخ وته کتلي ما
دَ زړه غولې مې نیولې ستا غمونو
نور غمونه له خاطره دي یستلي ما
چه مې کار دَ عاشقۍ په لاس اخستے دے
نور کارونه دي له لاسه اچولي ما
هم په دا مې نور غمونه له زړه وویست
چه په زړه کښې ستا غمونه دي کرلي ما

زه رحمان بے یاره خوب وخندا نه کړم
خوب خندا بے یاره کله دی پسند لی ما

۱۰ ۴۵/۴۵ ۵۴۲

چه ئے نقش په زړه خیال شی دَ اشنا [۲۷۶]
صدقه ئے سرو مال شی دَ اشنا
پس له مرګ به ئے دَتیغ په خیر ځی روڼ وی [۲۷۷]
چه اشنا په تیغ حلال شی دَ اشنا
په اسمان دَ اشنایئ به ئے مکان وی [۲۷۸]
چه زمین غونده پائمال شی دَ اشنا
تر ابده به ئے بخره ملالی وی
ق
له هغه چه زړه ملال شی دَ اشنا [۲۷۹]
خوشحالی زما دَ زړه په هغه دم وی
په هر دم چه زړه خوشحال شی د اشنا
روح هغه ساعت داخل کړم په تن کښے
چه مے دخل په وصال شی دَ اشنا
نور دَ هیچا قیل و قال مے پکار نه دے
چه تر غوږ مے قیل وقال شی دَاشنا
دم هغه یوه ګړی رابانده کال شی
چه یوه ګړی محال شی دَ اشنا
نه بل څوک زما طبیب بے اشنا شته دے
نه به بل څوک په مثال شی دَ اشنا [۲۸۰]

دَ رحمان نظر پہ ھیچا باندے نہ وی
چہ نظرئے پہ جمال شی دَ اشنا

## ۵۵۱ ۹ ۴۶/۴۶

عاشقیہ مے پہ زړہ وکړ اثر بیا [۲۸۱]
بیلتانہ مے لمبے بلے کړے پہ سر بیا
کہ دفتر دخپل قسمت مے پہ خپل لاس وے
ما بہ ستا لہ غمہ وران کړ دا دفتر بیا [۲۸۲]
ما بہ نوم دَ عاشقئ اخستے نہ وو [۲۸۳]
جدائیہ راتہ جمع کړ لښکر بیا
پس لہ مرګہ بہ ئے بیا لہ تا قربان کړم [۲۸۴]
کہ صورت مے خدائے پیدا کړ پہ محشر بیا
دَ ھجران محنت مے وا ړہ لہ زړہ ھیر شہ
چہ مے ولیدہ پہ سترګو ستا بشر بیا
چہ اسمان ئے مخ پټ کړے پہ سحاب وو
خدائے وما وتہ ښکارہ کړ ھغہ نمر بیا [۲۸۵]
چہ رقیب راتہ تړلے پہ زنځیر وو
خپل حبیب راباندے پرانت ھغہ در بیا
پہ یوہ نظرئے زړہ راځخہ یوړ
ترو لا ګورہ کہ راوکا بل نظر بیا [۲۸۶]
پہ وصال ئے منت بار وسہ رحمانہ
پہ صدف کښے دخل نہ وی دَ ګوھر بیا

۳۷ ۴۷/۴۷ ۵۸۸

هغه بیاموند سعادت په دا دنیا
چه ئے بیاموند قناعت په دا دنیا[۲۸۷]
نه ملکونه دَ شلیمانؑ په هزار کاله[۲۸۸]
نه یوه کړې طاعت په دا دنیا
یو نفس دَ خدائے په یادو اولیٰ تر دے
نه دَ درست جهان دولت په دا دنیا
په دنیا کښے لوې هغو عالمو وکړ
چه ئے وکړ عبادت په دا دنیا[۲۸۹]
که نعمت دے خو طاعت او عبادت دے
گنه نشته بل نعمت په دا دنیا
که محنت که مشقت دے خو دَ دین دے
پکار نه دے بل محنت په دا دنیا
بے له خدایه هرچه دی واړه فانی دی
که لذت دے که زینت په دا دنیا
که بادشاه وی اخر خاورو لره درومی
څه عزت دے څه حرمت په دا دنیا
تر هغه به بل نادان په جهان نه وی[۲۹۰]
هرچه غواړی فراغت په دا دنیا
نه چه چندګاهه فرصت په دنیا غواړے
چا موندلے دے فرصت په دا دنیا

عمارت په سر دَ ریگِ روان کاندی[۲۹۱]
هر چه کاندی عمارت په دا دنیا
دَ مستانو ترلغزشه څه کم نه دے
دَ سړی استقامت په دا دنیا
هر ژوندے چه دَ مرده په قبر ورشی
بس کا هومره نصیحت په دا دنیا
په روانو اوبو ورشه عمر گوره[۲۹۲]
ډیر دے هومره اشارت په دادنیا
دا پاخه پاخه سرایونه محلونه
خو به وران شی عاقبت په دا دنیا
وړے سترګے د اسمان څه هسے نه دی
چه څوک پریږدی سلامت په دا دنیا
هر چه راشی همه وارِه ځنے دروی
مسافر دے هرصورت په دا دنیا
ریاضت په قیامت نه شی مرد هغه دے
چه ئے وکړ ریاضت په دا دنیا
هم په دا خوی او خصلت به سبا پاڅی
خدائے څوک مه کړه بدخصلت په دادنیا
هم هغه به ئے خرمن وی پس له مرګه[۲۹۳]
هر چه کاندی زراعت په دا دنیا
که هغه جهان په دا کښے لیده نه شی
زه ئے وینم علامت په دا دنیا

(۲۹۴)
په قیامت کښې بنه توبنه وبله نه شي
مالیدلے دے قیامت په دا دُنیا
امانت به دَ لحد په میان کښې پروت وي
هرچه وُسي امانت په دا دنیا
(۲۹۵)
نیک عمل حضور جنت دے طالع بوُیه
چه حاصل کاڅوک جنت په دا دنیا
(۲۹۶)
نیک کردار نیک عملونه نیک خویونه
هم جنت دے هم راحت په دا دنیا
ضدیت دَ سړی عمر په عذاب کا
پکار نه دے ضدیت په دا دنیا
لاس په سر په سینه یښې وهرچاته
هم دغه دے شرافت په دا دنیا
که بلنده مرتبه دَ چا په کار وي
لوئے مقام دے عدالت په دا دنیا
بل ارمان به له جهانه یو وړ نه شي
مګر مهرو محبت په دا دنیا
دَ هغه جهان سودا واړه دلے ده
که څوک کاندي تجارت په دا دنیا
که طالع دَ سړي نه وي جاروتلے
هیڅ پیټ نه دے حقیقت په دا دنیا
نیک له نیکو سره بویه بد له بدو
که څوک غواړي ولایت په دا دنیا

ولایت دے خدائے هغو لره ورکړے
چه ئے ورکړو سکونت په دا دنیا [(۲۹۷)]
که تمامه دنیا واړه سره یو شی
نور به نه کا خپل قسمت په دا دنیا [(۲۹۸)]
که څوک مرد دے خو هغه دے په دنیا کښے
هرچه نه لری حاجت په دا دنیا [(۲۹۹)]
چه رغبت ئے دَ جمله خطاؤ سردے
څوک به څه کاندی رغبت په دا دنیا [(۳۰۰)]
په رحمان باندے داعمر هسے تیرشه
لکه تیر شی یو ساعت په دا دنیا

۶۳۲ ۴۴ $\frac{۴۸}{۴۸}$

هوښیار مه گڼه هوښیار دَ دے دنیا
بے وقوف دے وقوف دار دَ دے دنیا
روښنائی په هغو زړونو ده حرامه
چه پرے کښینی گرد غبار دَ دے دنیا [(۳۰۱)]
پوچ گوئ ده چه ئے اهل دَ دنیا کا
هر کلام او هر گفتار دَ دے دنیا [(۳۰۲)]
دَ طفلانو په څیر واړه خاکبازی کا
هرچه کاندی کاروبار دَ دے دنیا
واړه ډکے خولے دَ پیو هلکان دی
کاردیده او پخته کار دَ دے دنیا

همیشه به بے وقوف او بے شعور وی
چه مخمور وی په خمار دَ دے دنیا
دَ شرابو هم لا هومره مستی نه وی
لکه مست وی خمرخوار دَ دے دنیا
(۳۰۳)
هر بیمار لره دارو په جهان شته دے
دارو نه لری بیمار دَ دے دنیا
(۳۰۴)
دَ هر سوی علاج وشی په جهان کښے
مګر سوے په شرار دَ دے دنیا
لکه څوک چه سرو لمبو کښے دَ اور سوزی
(۳۰۵)
هسے سوزی طلبګار دَ دے دنیا ق
(۳۰۶)
هرچه اچوے و اور ته هغه سوزی
موړ به نه شی طلبګار دَ دے دنیا
(۳۰۷)
ګرفتار ئے همیشه په غم کښے ډوب وی
هیڅوک مه شه ګرفتار دَ دے دنیا
تل به پروت وی په ظلمت او په تورتم کښے
(۳۰۸)
چه اسیر وی په کفار دَ دے دنیا
څه وَ بُت وته سجده څه و دنیا ته
(۳۰۹)
بُت پرست دے پرستار دَ دے دنیا ق
په مسلمو کښے خاصه مسلم هغه دے
چه ئے وشلاوه زنار دَ دے دنیا
(۳۱۰)
تن ئے پاتو شی بے سره سرئے لاړ شی
سردار کله دے سردار دَ دے دنیا

زویه لونه یتیمان کا ځنې دروي
بې وفا دی مور او پلار دَ دے دنیا
همیشه به ئې یو پښه دَ غم په سروی
چه په سرئې وی دستار دَ دے دنیا
واړه غم دے که ئې پیرے یائې پلورے [۳۱۱]
نور څه نشته په بازار دَ دے دنیا
هسکې واړه ټکان دی ټکی کاندی
فروشنده او خریدار دَ دے دنیا [۳۱۲]
په دنیا به مینه نه کاندی هیڅرے
چه خبر وی په اسرار دَ دے دنیا
چه نظر دَ چا په دین او په ایمان وی
هغه نه کا انتظار د دے دنیا [۳۱۳]
چه ویریږی له کوهیه له کړنګه
هغه نه دروي په لار دَ دے دنیا
هر سړی لره چه ورشی ځنې دروي
ما لیدلے دے رفتار دَ دے دنیا [۳۱۴] ق
اشنایان ئې همه واړه مکاران دی
څه ویسا دہ په مکار دَ دے دنیا
لوئې هلک ئې همه واړه اغیاران دی [۳۱۵]
یار دے چرے په دیار دَ دے دنیا
چه پیدا شی هسکې واړه فنا شی
راشه وګوره ناتار دَ دے دنیا

په یوه ګړۍ بهار بیا ئے خزان شی
بقا نه لری بهار دَ دے دنیا
که هزار هزار پښتیه ورته کیږدے
بے بنیاده دے دیوار دَ دے دنیا
که دَ اوسپنو حصار ترځان چاپیر کړے
بنیښنه وګڼه حصار دَ دے دنیا (۳۱۶)
لکه سیورے دَ افتاب په مخ کښے ګرځی
نشته هیچرے قرار دَ دے دنیا
هیڅ ګمان دَ بهتریه پرے و مکړه
کهتری ده وار په وار دَ دے دنیا
بے مقراضه غوځوی دَ سړی عمر (۳۱۷)
هم دا لیل او هم نهار دَ دے دنیا
پس له مرګه به حساب له سړی غوښت شی
په انداز او په مقدار دَ دے دنیا
عاقبت خو به یو موټے شی دَ خاورو (۳۱۸)
ګل عذار و ګل رخسار دَ دے دنیا
برابر به له ګدایه سره پاځی
شهزاده او شهریار دَ دے دنیا
پاس به داغ وی دَ لئیم په سینه باندے
هر درم و هر دینار دَ دے دنیا (۳۱۹)
دَ قانع تر قناعته صدقه شه
هم دنیا هم دنیادار دَ دے دنیا

پس له مرګه به همه واړه مظلوم وی
ظالمان و ستمکار دَ دے دنیا
تر قیامت به دغه شل او دغه لس وی (۳۲۰)
پوره نه کړ هیچا شمار دَ دے دنیا
چه ایام پرِ دَ کفن دَ غسل ورشی
بے پردے شی پرده دار دَ دے دنیا
په تخته باندے بیرون شی له حجابه
شرمناک و شرمسار دَ دے دنیا
تر هرچا به پیغمبرٌ څخه وه ډیره
که څه قرب وے یا وقار دَ دے دنیا
یو فساد به ئے بیان په رحمٰان نه شی (۳۲۱)
فسادونه دی بسیار دَ دے دنیا

# ب

۶۴۳ ۱/۴۹ ۱۱

زه په سل رنګه راغب
ته په سل رنګه غائب
دا به څه رنګ شی دلبره
چه زه مست یم ته تائب
که له جوره دِ فریاد کړم
دا هم نه دی مناسب
که څه وایم نه مے رسی
زه مغلوب یم ته غالب
څه سیالی برابری ده
دَ مطلوب او دَ طالب
دَ ستا مهر محبت کړ (۱)
خدائے په ما باندے واجب
درد وغم دِ هومره نه دے
چه ئے وکښم په کاتب

جدائی دہ ډیرہ سختہ ‏ دَ ارواح او دَ قالب
چہ مجنون پہ ځنکدن شہ ‏ زہ ئے پریښووم نائب[۲]
وصیت ئے راتہ وکړ ‏ پہ څو رنګہ عجائب
چہ روزی دِ شہ رحمانہ ‏ زما وارہ مراتب

۶۵۶ ‏ ۱۳ $\frac{۲}{۵۰}$

هسے مست یم ستا دَ شونډو پہ شراب
چہ بہ نہ وی بل دا هسے مست خراب
لاس دَ ستا لہ مینے اچوم و کل تہ[۳]
لکہ بوتی تہ لاس اچوی غرقاب
دا سُرخی او سفیدی دَ ستا دَ مخ دہ
کہ زما پہ مخ باران دے دَ خوناب
څہ اثر بہ زما اوښے پہ تا کاندی
لا تازہ شی اور پہ اوښیو دَ کباب
عاشقان دِ سترګے روښے کا پہ عشق کښے
دا خوب نہ دے دا منزل دے دَ سیلاب[۴]
ما چہ خال دَ ستا دَ وروځو پہ میان ولید
نہ بل هسے رنګ امام شتہ نہ محراب[۵]
ښاپیری چہ لیدہ نہ شی سبب دا دے
مخ دَ ستا لہ شرمہ نغاړی پہ حجاب[۶]
چہ سبا شی ستا ترمخ پورے شرمیږی
ځکہ زیست پہ تورہ شپہ کاندی مهتاب

حجاب واخله مخ کړه تور دَ هغو خلقو[٧]
چه تحسين کا ستا په دور دَ افتاب
هسے نه چه زه دلبر وايم وتاته[٨]
خدائے دے تالره درکړے دا خطاب
ستا دَ مخ په ورق باندے خط وخال دی
دَ مصحف په صحيفو باندے اعراب
ستا دَ حسن حساب هيڅ په رحمان نه شی[٩]
هم په دا چه بے حساب دے بے حساب
يو کتاب په سره بن کښے چا ونه کړ
بے رحمانه چه ئے کړے دے کتاب[١٠]

١٠ ٣/٥١ ٦٦٦

لاس مے وتړی دَ زلفو په طناب
بيا مے وپلوری دَ سترګو په قصاب
هسے اب ئے دے دَ دوو سترګو په تيغ کښے
چه بے سره په سر نه لری حباب
له فراقه چه ئے اه کړم سوک په سترګو
ق يو لستونی مے ګرد بادوی بل ګرداب[١١]
چه توسن دَ فلک زين کاندی له نازه
دَ هلال په ځائے را وبنئی رکاب
په درګاه ئے درويزه کاندی دَ حسن
کندولے په لاس سپوږمیه هم افتاب

چه رایادے ئے سرے شونډے سوځیږوان کړم
ترچشمانو مے بهیږی سره شهاب
چه دَ مخ واٰب و تاب ته ئے نظر کړم
راته هیڅ شی دَ ګلونو اٰب و تاب
چه نسیم ئے دَ زلفینو راپیدا شی
درست مے ډوب کاندی په مشک او په ګلاب
ما وے ګوندے مخ ئے ووینم په خوب کښے[12]
بارے چرے شی بے یاره دَ چا خواب
په غزل کښے خو دوه بیته انتخاب وی
دَ رحمان تمام غزل دے انتخاب[13]

۶۷۸ ۱۲ $\frac{۴}{۵۲}$

هر مطرب چه غوږے تاؤ کا دَ رباب
په دا تاؤ کښے زما زړه کاندی کباب
چه سامع ئے په نغمه په ترانه شم
دیوانه شم ګریوان څیرے مست خراب
هم ئے تار هم ئے ګفتار هسے اثر کا
چه هیڅوک ئے نه طاقت لری نه تاب
یو ئے ساز بل ئے اواز وی دَ لبنتیو
دریم شعر پر آغاز کا انتخاب
څلورم ئے یو ساقی دَ څښکه کښینی[14]
چه مخ ئے نه افتاب وی نه مهتاب

دا څلور واړه فتنې په څلور کنجه
او پینځمه صراحی دَ میو ناب
شپېږم وقت دَ نوبهار او دَ ځوانیه
اووم شغل دَ بیاض او دَ کتاب
چه دا هومره افتونه سره ټول شی
ترو څوک څرنګ ځنې کاندی اجتناب
چه دا هسې دلبران پر اثر نه کا (۱۵)
یا به دیو یا به دیوار وی یا دواب
ق مرد هغه چه ترسود تیر شی ثواب وکا
نه هغه چه ډیرې سود وی لږ ثواب (۱۶)
را څرګند به شی پرهیز دَ پرهیزګارو
که قادر شی په شاهد او په شراب (۱۷)
زه رحمان له ریا زهده پناه غواړم
دَ ریا زهد عذاب دے هم عتاب (۱۸)

٦٨٦ ۸ ۵/۵۳

ورقونه لټوم دَ هر مکتوب
پکښې غواړم خال و خط دَ خپل مطلوب (۱۹)
یا تنور دے یا دکان دَ اهنګرو
چه په عشق کښې تصور کړم خپل قلوب
په خندا خندا ځان اچوی و اور ته (۲۰)
خدائے څوک مه کړه په جذبه دَ عشق مجذوب

زه چه غم دَ مهرویانو را په زړه کړم
له دے غمه لاړ شي زړه راڅخه ډوب[۲۱]
کوره څه رنګ عشق اسان کړه وعاشق ته
دا مشکل مشقتونه دَ ایوبؑ[۲۲]
عشق دے داچه معشوقه شوه وعاشق ته
بنه رخسار دَ مهرویانو په اسلوب[۲۳]
هغه څه پښتے له هجره له وصاله
چه پخپله هم محب شي هم محبوب
چه نظرئے له صورته په معنو کړ
و رحمان وته یکسان شو زشت وخوب[۲۴]

۶۹۳ $\frac{۶}{۵۴}$ ۷

چه نظر کړم په قسمت او په نصیب
را ته هیڅ شي خپل تالاش او خپل ترتیب
مګر خود پخپله خدائے دَ چا طبیب شي
ګنه نشته په جهان کښے بل طبیب
راڅرګند دی پښور وړده دَ رقیبانو
که خدائے نه کاندے خپل یار زما رقیب[۲۵]
چه خپل یار دَ چا رقیب شي دلیل دا دے
لکه څوک چه په وطن کښے شي غریب
چه غریب شي په وطن کښے فرق ئے نه وی
که فرسنګ ئے وی ترمیانه که جریب

ما په عشق کښې هيڅ حاصل نه کړه بې غمه
هرچه وائې واړه ښه وائې اديب
د ښمن هم د سړي کله کله دوست شي [۲۶]
دوستي نه کا له رحمان سره حبيب

## ت

۷۰۵ $\frac{1}{55}$ ۱۲

افرين د عاشقانو په همت
چه په عشق کښې يک اندازوي يک جهت
نه ئې هيچرې تغير نه ئې تبديل وي [۱]
که تمام جهان پر وائې ملامت
که څوک سل نصيحتونه ورته کاندي
غوږ ئې نه وي د هيچا په نصيحت
چه په يار پسې ترڅان ترجهان تير شي
څوک کوې شي دا هسې مشقت
که تمام عمر ئې يار په سترګو ناست وي
تمام عمر وربنکاريږي يو ساعت
که يو دم شي هغه يار ورڅخه لرې [۲]
هغه دم شي ورته عمر د قيامت
که دوزخ لره د يار په مينه درومي
دوزخ هم ورته جلوه کا د جنت [۳]
د عشق لار د توکل په پښو غوځيږي
نه په پښو د رياضت و ديانت [۴]

په تدبیر او په تلاش کله مونده شي
چه موقوف وي هغه کار په عنایت[۵]
دَ عاشق خاطر له غیرو پاکیزه وي
دَ دریاب په مخ کښې نه وي نجاست[۶]
حق حرمت دَ هغه یار په ما لازم دے
نه په یار باندے زما حق وحرمت[۷] ق
چه خدائے زړه دَ مطلوب کاځے کړ رحمانه
کاځے پریوت دَ طالب په عمارت

۷۱٦ ۲/۵٦ ۱۱

که مے وشي له دلبره ملاقات
پا به نه څم له دے دره په حیات[۹]
پس له دے مے دِ استوګه خدائے نصیب کا
په دا در کښې که حیات وي که ممات[۱۰]
ځائے لری که زه ویار وته سجده کړم
هغه یار زما قبله دے دَ حاجات
دَ خپل یار تر لعلو لبو به ئے ځار کړم
که شکرے وي که قند وي که نبات
دا زما دَ یار جلوه ده چه لیده شي
لکه نمر په صومعه د سومنات
تر ما لا په دلبرانو ډیر مین دي[۱۱]
چه خبرے کا دَ کشف وکرامات

دَ ریا له زاهدیٔ زما توبه ده
چه ئے کاندی څوک په رسم او په عادات
په ورځ پند و نصیحت وائی و بل ته[۱۲]
په شپه ناست وی دَ مغان په خرابات
دین ئے دام وی دَ دنیا په لار کښے ینبے
پر را اړوی وحشیان دَ مخلوقات[۱۳]
دَ هغو په لور ئے سترګے وی ختلے
چه په لاس ئے سرسایه وی یا زکوٰة
زه رحمان له هسے اهله پناه غواړم
هر چه لاف کا په خلاف دَ مقامات

## ث

۷۲۶ ۱۰ $\frac{۱}{۵۷}$

یار یاری راسره نه که الغیاث
نه ئے ترس شی نه ئے کړکه الغیاث
سرو مال واړه زما و دل ارام ته[۱]
نه ارزیږی په کنجکه الغیاث
په حملو مے زړه وړی نه پوهیږم[۲]
اپریدیٔ ده که ختکه الغیاث
بیلتانه ئے پیبنور راته تنور کړ
له خیبره تر اټکه الغیاث[۳]
خو چه راکاږی چوګان په مخ دَ زلفو
ګوے زما دا خراب زړه که الغیاث

هیڅ سبب ئے لیدہ نہ شی جفا کاندی
نه پوهیږم چه په څه که الغیاث
په اخلاص او په راستئ ورته ولاړیم
یار جفا هومره په څه که الغیاث(۴)
سل خبرے که له صدقه ورته وکړم
یار یوه راسره نه که الغیاث
چه مے وینی له رقیبه سره خاندی
په ژړا مے لیمه سره که الغیاث
زه رحمان مدام د یار په رضا درومم
یار په خپله رضا تله که الغیاث

۷۳۲ ۶ ۲/۵۸

د وصال شپه مے بدله په بیلتون شوه الغیاث
د قیامت خواری را پیښه په ژوندون شوه الغیاث
ما لا طمع د وصال د نعمتونو تر کوله
ناګهان کاسه نسکوره د ګردون شوه الغیاث(۵)
هغه چار چه مے په لاس وه زه پر نه وم پوهیدلے(۶)
اوس چه پوه شوم له اختیاره مے بیرون شوه الغیاث
د وصال په طمع طوق د جد ایئ شو راپه غاړه
هغه طمع چه زماوه اوس طاعون شوه الغیاث
په حکمت په عقل پیتے د عشق څوک اخستے نه شی(۷)
په دا کار کښے ماته ملا د افلاطون شوه الغیاث

ما رحمان دَ يار وصال په اسانئ موند لے نه دے[۸]
زرد روئ مے سرخروئ په جگر خون شوه الغياث

۹ ۳/۵۹ ۷۴۱

چه ویئلے مے له تا دے دا حدیث
سرنامه دَ هر انشا دے دا حدیث
چه اغاز مے کړ په مدح دَ خوبانو[۹]
ځکه گنج بے بها دے دا حدیث
په ثنا دَ دلپسندو دلربأو
دل پسند و دل ربا دے دا حدیث[۱۰]
لکه باد دَ صبحدم چه غنچه وا کا
هسے رنگه دلکشا دے دا حدیث
چه اوصاف مے دَ سرو شونډو وېښے راوړه
خوږ ترقند و ترحلوا دے دا حدیث
نه پوهيږم چه اوبه دی دَ حياتو
که نفس دَ مسيحا دے دا حديث
دَ غونډ ژبيو شاعرانو دَ خولے نه دے[۱۱]
ځکه هسے رنگ صفا دے دا حدیث
ستا وَ مخ ته که څوک شمس و قمر وائ
دروغ نه دی په رښتيا دے دا حديث
که څوک وائ چه چا کړے دا حدیث دے
رحمان وائ چه زما دے دا حديث

# ج

چه برهم کا عاشقی دَ چا مزاج
حکیمان ئے درمانده شی په علاج[۱]
په اشنا پسے تل ژاړی په دوه سترګو[۲]
دَ اوبو په ځائے خوناب کاندی اخراج
دواړه لاس ئے وی له دواړه کونه وللی
ډوب وی تل دَ عاشقیه په امواج
په هغو کښے چه څه بوی دَ عاشقۍ وی
پکښے نه وی بوی دَ رسم و دَ رواج
ابراهیم ادهمؒ څه هسے نادان نه وو
چه نظر ئے یا په تخت وو یا په تاج
مجنون هسے رنګ میئن په لیلیٰ نه وو
چه په نورو ئے موقوف وو احتیاج
لیونتوب دَ لیونیو تلونے نه دے
که ئے راج په خونه ورشی که تاراج
که ئے سر لکه منصور غوندے په دارشی[۳]
دغه دار دے و رحمان و ته معراج

۷۵۸ ۹ ۱/۶۱

# ح

ستا وصال دے رابخښلے زما روح
ستا هجران دے راپرودلے زما روح[۱]
ستا په مخ پسے ئے مخ ونیو راهی شه
له صورته دے وتلے زما روح
چه هرګز ملک الموت پر نه پوهیږی[۲]
هسے شان دے تا وکښلے زما روح
ځان مے هسے ستا په مینه پسے ورک کړ
چه هیچا نه دے لیدلے زما روح
که وی هم به تا څخه وی که ئے خدائے کا
نه دے بلے خوا ته تللے زما روح
بلبل نه دے دا چه الوزی په ګلو
ستا په لور دے الوتلے زما روح[۳]
چه ئے خاورے کړ صورت دَ ستا په درکښے[۴]
سر تر عرشه دے وکښلے زما روح
ته ئے پیژنے چه څه دے یا څه نه دے
نور چا نه دے پیژندلے زما روح
زه رحمان له خپله ځانه خبر نه یم
چه په څه رنګ دِ وکښلے زما روح[۵]

۸ ۲/۶۲ ۷۶۶

په طلب دَ مهرویانو سرګردان دے زما روح
لکه باد دَ ګل په بوی پسے پریشان دے زما روح
ستا دَ حُسن و افتاب ته ځان سپاری په تبسّم کښے[٦]
لکه صبح دَ ژړا په ځائے خندان دے زما روح
چه ئے ولیده دَ ستا دَجمال عکس په خپل ځان کښے
هم په دا دَ آئینے په شیر حیران دے زما روح
ستا دَ مخ له آئینے له برکته زما جانه
همیشه لکه طوطا هسے ګویان دے زما روح[٧]
لکه رنګ دَ میوٗنابو چه لیده شی په بنیبنه کښے
هسے رنګ په ضعیف تن کښے نمایان دے زما روح
منتظر دِ دَ وصال دَګلستان یم تل تر تله
سر تر پایه دَ شبنم په شیر چشمان دے زما روح[٨]
چه حاصله ئے له حسنه روښنائی شوه په طلب کښے[٩]
شپه او ورځ لکه افتاب په لار روان دے زما روح
ستا په زلفو په رخسار پسے رحمان یم بےوطنه
مسافر دَهندوستان و خراسان دے زما روح

# خ

۱۰ ۱/۶۳ ۷۷۶

ما سحر سبا لیدلے وو دَ چا مخ
چه مے درسته ورځ و نه لیده دَستا مخ[١٠]

دا خو مخ زما وتا وته خدائے هیڅ کړ
ګنه سریو اشنا ګوری دَ اشنا مخ
ډیر مخونه دَ جفا دِ راخڑکند کړه
(۲) لا به کله راخڑکند کړے دَ وفا مخ
څو دَ مرګ په تماچه اوښتے نه دے
(۳) اوښتونے له تا مه ګنه زما مخ
زه په تا پسے راغلے په دا مخ یم
که ته نه وے ما به څه کول په دا مخ
ما به څه لره په تا پسے ژړا کړه
(۴) که مونده شوے بل دَ ستا په څیر زیبا مخ
دَ رقیب طمع مے نه وه ستا په درکښے
(۵) دا دِ وښوو په جنت کښے دَ بلا مخ
زه به څه رنګ دَ رقیب و مخ ته ګورم
کله اهل سنت ګوری دَ ترسا مخ
دَ چکنا چکنی بیلتون په نیمه شپه وی
(۶) ستا زما په حال غماز شه دَ سبا مخ
رحمان ستا په مخ دا ورانه دنیا ګوری
(۷) خدائے بے تا راخڑکند مه کړه دَ دنیا مخ

۷۸۳ ۲/۶۱۴ ۷

کله شو لا کله خریدار یم ستا دَ مخ
تیر ترسرو مال په بازار یم ستا دَ مخ

بے دَ ستا له مخه مے نور هیڅ په مخکښے نشته[8]
هسے رنګ نتلے په ناتار یم ستا دَ مخ
هیڅ په سترګو نه وینم داخپل صورت چه کوم دے
ډوب تر هسے حده په بازار یم ستا دَ مخ
دُود دَ اه وکاږم په بانه دَ تماکوو
سوے لوغړن مدام په نار یم ستا دَ مخ
نور وګرځے واړه همګی دَ دنیا کار کا
زه همیشه غرق په انتظار یم ستا دَ مخ
شکر چه ئے خلاص کړمه دَ خلقوله منته[9]
سر په سجده ږدمه منت بار یم ستا دَ مخ
هره خواچه دروځم زه رحمان دَ زړه په سیر[10]
بل مطلب مے نشته طلبګار یم ستا دَ مخ

۷۹۱ ۳/۶۵ ۸

چه پیدا شو ستا چشمان دا هسے شوخ
نور به نه وی مردمان دا هسے شوخ
لکه کږے وروځے کږے زلفے ستا دی[11]
نه لړم شته نه ماران دا هسے شوخ
ډیر غمونه شوخ شوخ شته دے په دنیاکښے[12]
ولے نه لکه هجران دا هسے شوخ
مګر دیو وی چه بے غم وی په هجران کښے
ګنه نه به وی انسان دا هسے شوخ[13]

دا فتنے او فسادونه به وو چرے[۱۴]

که پیدا نه وے اسمان دا هسے شوخ

دَ اشنا له هجره زړه دَ اشنا چَوی

افریده کړ خدائے جهان دا هسے شوخ[۱۵]

چه یوسفؑ به دَ دنیا په متاع پلوری[۱۶]

پیدا مه شه بل کاروان دا هسے شوخ

چه بوسه له یاره غواړی بے ادبه[۱۷]

خدائے دِ نه کاندے رحمان دا هسے شوخ

۸۰۱ ۱/۶۶ ۱۱

## د

بادشاهانو که قصرونه کړه اباد[۱]

ما دَ عشق عمارتونه کړه بُنیاد

نوم دَ کوم یوه بادشاه هسے یادیږی

لکه نوم دے دَ مجنون او دَ فرهاد[۲]

عشق عاشق لره یو هسے پیر استاد دے

چه به نه وی بل دا هسے پیر استاد

دغه واړه کرامات دَ عاشقئ دی

چه څوک قطب کا څوک غوث کا څوک اوتاد[۳]

دَ دنیا چارے همه واړه فانی دی

څوک به څه کا په دا چارو اعتماد[۴]

لکه سیورے چه دَ نمر په مخکښے ګرځی[۵]

نه استوګه چرته کاندی نه اِستاد

هیڅ وفا ئے له هیچا سره و نه کړه
که جمشید وو که بهمن وو که قباد[۶]
که جمشید وو که بهمن وو که قباد وو[۷]
که نمرود وو که فرعون وو که شداد
رسولی ئے تر مراده هیڅوک نه دی
همه واړه هسے یا تو شو نامراد
نه چاختم نه دُعا ورپسے وکړه[۸]
که ئے آل که ئے عیال وو که اولاد
زه رحمان دَ زمانے له جوره دروم
خپل صاحب لره په داد او په فریاد

۸۱۸ ۱۶ $\frac{۲}{۶۷}$

زه که لاف دَ وفا کوم هرچند
هغه یار مے باور نه کړه په سوګند
زه بے یاره هسے زیست کړم په جهان کښے
لکه زیست وی په مجمر کښے دَ سپند
آبروی دَ طالبانو خپل مطلوب وی[۹]
آبروی دَ غلامانو خپل خاوند
لکه یار مے سربلند دے په جهان کښے[۱۰]
په تاثیر ئے هسے زه شوم سربلند
لکه یار مے چه څرګند دے په دا دور[۱۱]
زه هم هسے په دا دور شوم څرګند

چہ مے مدحہ دَ خوبانو کړه اغازه
هر کلام مے دِلپذیر شو دِل پسند
لکه خوند لری زما خوږے خبرے [۱۲]
په شکرو کښے هم نشته هسے خوند
هغه قند چہ خدائے زما په خوله کښے کیښوو
حلوایانو څخه نشته هسے قند [۱۳]
لکه زه چه سخندان و هنرمند یم
بل به نه وی سخندان و هنرمند
په اشعار کښے قوت ناک لکه مزرے یم [۱۴]
ولے نه یم دَ مزری په شیر ګزند
هم په مدحه بنه پوهیږم هم په هجوه
ولے نه یم په داچارو ډیرخورسند
بے له عشقه کړے عیب که هنردے
ما غوخ کړے دے له ځانه بل پیوند [۱۵]
زه عاشق یم سریکارے دے له عشقه
نه خلیل نه داوُدزے یم نه مومند
چه وما ته نصیحت کاڅوک په عشق کښے [۱۶]
ګویا پلار ته نصیحت کاندی فرزند
هر سړے چہ اٗئینه په لاس کښے خاندی [۱۷]
ګویا کاندی په خپل ځان پورے رشخند
رنګریزان دِ اول خپلے ږیرے رنګ کا
بیا هاله دِ و رحمان ته وائی پند

۲۰ $\frac{۳}{۶۸}$ ۸۳۸

که قاصد ئې دَ مقصود[۱۸] اواره کړه زیان و سُود
هر چه درېشی په مخکښې واړه وګڼه بهبود
هر چه دی سوا له خدایه واړه وګڼه نا بود
رضا پاسله وقضا ته مدام خوښ وسه خوشنود
و هستې وته جلوه کا[۱۹] لکه ابر هسې دود
ته وځان وته نظر کړه چه قبول ئې که مردود
نندارچي دَ خپل صورت شه چه مسلم ئې که جهود
امتی دَ ابراهیم ؑ شه تابع مه شه دَ نمرود
دَ غفلت له خوبه پاڅه ځو به وسې خواب آلود
مقید او مشغول وسه[۲۰] په دُعا او په درود
اسمان طوره په رکوع شه زمین طوره په سجود
هر اشیا دَ حق ثنا کا په نغمه لکه داؤد
که بیدار شې خوبه اورې په هر لوری دا سرود[۲۱]
که ایاز شې په بندګی کښې نور به ناز کړې په محمود
هر اسباب دَ ښو دَ بدو مهيّا دی هم موجود
که دانائې وبله بیل کړه فرموده و نا فرمود
ځو سپند نه شې په اور کښې نه وی خوند دَ بوی دَ عود[۲۲]
ځان له خبثه پاکیزه کړه[۲۳] لکه بحر نامعدود
هلاک ځکه شه رحمانه چه پاک نه شه دا وجود

رحمان بې دَ یار له ذکره
نه زده بل ګفت وشنود

۸۴۹ ۱/۶۹ ۱۱

چه مے یار ولید په سیمه دَ اغیارکړ
له غیرته مے لیمه شوه په خونبارکړ
زه په یار پسے له خلقه هسے بیل یم
ق لکه نشته ناپیدا په دا بازارکړ(۱)
دغه حق دَ بلبلانو په جانب دے
خدائے دِ نه کا مبنکیرک په لاله زارکړ
زه په وصل کښے هجران هسے بیخمه(۲)
لکه څوک چه خالی لاس وی په بازارکړ
زړه مے بے خپله نګاره ارام نه کا
که هرڅوئے کړم په نقش اوپه نګارکړ
په امید دَ زلفو ونښتم په دام کښے
روهیلے وم ساده دل په هندوبارکړ
دَ دیدن په ګدائی کښے مے ننګ نه شی
درویزه کړم دَ بتانو په دربارکړ(۳)
سخت سفر دَ عاشقی څوک او زه څوک
ق خدائے ناڅاپه پر راکړه کړم په دالارکړ(۴)
دَ وفا دَ ګلو پاڼے پکښے نشته
کشکے مه وے دَ دے دهر په ګلزارکړ
که پخوا تر اشنائی بیلتون لیده شوے
هیڅ بنده دَ خدائے به نه وو په دا کارکړ(۵)

زه رحمان ئې دَ فردوس له غمه خلاص کړم[6]
چې په کلي په کوڅه شوم دَ خپل یار کړه

# ر

۸۶۲ ۱۳ ۱/۷۰

دا څه مخ دے منور — چې هم شمس دے هم قمر
دا څه زلفې دي مښکینې — چې هم مښک دي هم عنبر
دا څه پیوسته ابروئې دي[1] — چې هم نیش دي هم نشتر
دا څه سترګې دي قاتلې — چې هم سیف دے هم خنجر
دا څه شونډې دي میکونې — چې هم مے دي هم شکر
دا څه سپین سپیځلي غابش دي — چې هم دُر دي هم ګوهر
دا څه سیب زنخدان دے[2] — چې هم سیم دے هم ثمر
دا څه قد او څه قامت دے[3] — چې هم ګل دے هم عرعر
دا څه ملا ده باریک وضعه — چې هم موئے دے هم کمر
دا څه زړه دے دَ خوبانو — چې هم موم دے هم حجر
دا څه یار دے نه پوهیږم — چې هم دل دے هم دلبر
دا څه بت دے زما ربه! — چې هم بت دے هم بشر
دا څه شعر دے رحمانه! — چې هم ګنج دے هم هنر[4]

۸۷۹ ۱۷ ۲/۷۱

زه تیر شوے یم ترسر — په طلب دَ خپل دلبر
څو ژوندے یم په دنیا کښې — پرے به نه ږدم دغه در

دَ اشنا په طلب ګرځم   وچې شونډې ليمه تر
يو قدم مې دې په بحر   بل قدم مې دې په بر
د واړه لاس مې دي نيولي   هم په شام هم په سحر
مناجات مې دي وخدائې ته   که ئې ووينم بشر
هميشه له خپله بخته   ګيله مند يم مرور
چې په مائې پير زونه کړ   دَ خوبانو يو نظر
هم ئې و نه ښو وماته (۵)   بې له عشقه بل هنر
عاشقي مې خدائې رسوا کړه (۶)   په جهان کښې لکه نمر
نصيحت زاباندې نه کا   لکه موئې هومره اثر
واوره غوږ باسه ناصحه   کوتاه وايم مختصر
په مولیٰ مې دِ سوګند وی   هم په روح دَ پيغمبرؐ
جاروا ته مې بيرته نشته   چه عالم شه راخبر (۷)
تر مئينه بهٔ ئې ځار کړم   که مې سيم وی که مې زر
که مې سيم وی که مې زر وی   که مې دُر وی که ګوهر (۸)
زه رحمان ترهرڅه تيريم (۹)   تير به نهٔ شم تر دلبر

۹۳ $\frac{۳}{۷۲}$ ۹۱/۲

په نظر دَ بې بصر   لکه شام هسې سحر
لکه شام هسې سحر   لکه سنګ هسې ګوهر
لکه سنګ هسې ګوهر   لکه خاورې هسې زر
لکه خاورې هسې زر   لکه خير هسې شر
په نظر ئې معلوميږی (۱۰)   همه واړه برابر

که څوک ښه ورسره وکا — تر بد یه وی بد تر
که څوک بد ورسره وکا — تر نیکیه وی بهتر
نه په بد وئیل زهیر وی[۱۱] — نه پر ښه وی دَچا زبر
په صواب او په خطا ئے — نه دلیل وی نه نظر
نه اګاه په خپل بهبودوی — نه اګاه په خپل ضرر
نه په عیب څه پوهیږی — نه پوهیږی په هنر
لکه ړوند او کوڼ چه ګوری[۱۲] — هسے هیڅ نه وی خبر
له طاعته له ګناهه — څه خبر وی څناور[۱۳]
څناورو نور څه نه زده — یا ئے خوب وی یا ئے څر[۱۴]
دا خو ته ئے زما نفسه — چه دِ زده کړم کوروکر
تمام ووتے له عقله — په دنیا پسے اوتر[۱۵]
نه دِ فرض دَ خدائے اداکړه — نه سُنت دَ پیغمبرؐ
نه دِ مرګ په زړه کښے یاد دے — نه خواری دَ محشر
وُوده پروت ئے دا دِ نه زده — چه په خوا لرم سفر
په هر دم در څخه دروی — که پوهیږے دا بشر
هغه تور ویښته دِ څه شو — چه هم مښک وو هم عنبر
هغه قد دِ مجنون بید شه — چه چنار وو هم نښتر[۱۶]
تن دِ درست زیر و زبر شه — زړه دِ نه شه لرو بر
تر پنجاه تر پنځه تیر شوے — ته لا ځان بولے پسر
نه دِ ترس شی نه دِ ویره — نه په زړه باندے اثر[۱۷]
بل به نه وی لکه ته ئے — هسے شوخ او ځیګرور
په غفلت دِ عمر تیر کړ — نه رهرو شوے نه رهبر

عبادت دِ دَ ریا شه[18]     لکه ډک په لاکو زر
لکه قلب نا سره مهر[19]     پټ په زرو کښې حجر
لکه پټ وی په دانه کښې     سل اغزیه دَ شجر[20]
لکه سحر چه برپائے کا     سحر کر و جادوګر[21]
لکه تش صورت بے روحه     چه تصویر کا مصور
لکه تش کدو بے مغزه     میان خالی و تن پرور[22]
لکه زړے په میوه کښې[23]     درون سنګ بیرون ثمر
لکه بے لاسه لستوڼے[24]     سرترپایه پائے ترسر
لکه ټګ او دغاباز وی     په مرغانو کښې دګر[25]
لکه بے نمکه ناوے     چه په سرکاندی میزر
ترمیزر لاندے چاځه زده[26]     چه دختر وی که مادر
نه ئے حسن نه جمال وی[27]     غولوی خلق په زیور
هائے له هسے فریبیانو[28]     لکه زوړند چاؤد کمر
نیم په زمکه کښې دننه     نیم برخیره لکه غر[29]
په دستار کښې ئے مسواک وی     تر بغل لاندے خنجر
په ایرو کښې پټ بګرے     په وښو کښې پټ ژور
په شپه وینے دَ مظلوم خوری     سبا کښینی په منبر
په زړه تور لکه تبے وی[30]     په مخ سپین لکه قمر
دَ دنیا په طلب ګرځی     خپسر بولی قلندر[31]
کلمه په ژبه وائی     په زړه نه لری باور
په مثال دَ منافقو[32]     نه مسلم وی نه کافر
نه مسلم وی نه کافر وی     نه پُخلا نه مرور

پریشان ګرځي سر وهلے
کوځے په کوځے او در په در [۳۳]

همیشه رفت و آمد کا [۳۴]
دَ زردارو په ګذر

په کوڅه دَ دنیا دارو
ګوره خوړګی کا لکه خر [۳۵]

اورنګ زیب هم یو فقیر وو
چه ټوپۍ ئے وه په سر [۳۶]

و ټوپۍ وته ئے شا کړه
چه قادر شه په افسر

خو ئے هومره فقیري وه
چه څه نه وو میسّر

چه فلک ئے یاري وکړه
نور ئے ملک کړ مسخّر [۳۷]

ګوره څه چارے ئے وکړے
په عیال دَ خپل پدر

وار په وار ئے تر تیغ تیر کړ [۳۸]
دَ خرم تمام ټبر

یو ټبر دَ خرم څه وو
ډیر عالم ئے کړ ډبر

تمامي جهان ئے ونغړد [۳۹]
چه ئے لاس شه باندے بر

په فریب فریب ئے خپل کړه
بیجاپور او باک نګر

بیجاپور باک نګر څه وو
لاجنجي او جینجاور

هم ئے هند په ډکه واخست
هم کابل هم پېښاور

بیا ئے ذکر شوه په زړه کښے
بادشاهي دَ هفت کشور

له حرصه ورته هیڅ شو
هم دارا هم اسکندر [۴۰]

خیال ئے دا وو په خاطر کښے
چه به خپل کړم بحر و بر

بارے ورځ ورڅخه لاړه [۴۱]
وقت پر راغے نماز دیګر

نه ئے مراد دَ زړه حاصل شه
نه ئے یخ کړ خپل ټټر [۴۲]

همګي شو ځنے پاتو
که ئے ملک وو که لښکر

خالي لاس له دنیا ووت
لکه عین درویزه ګر [۴۳]

له دنیا ئے هیڅ یو نه وړه
مګر شوځے یو څادر

خوار حیران په زمکه پریوت ۔۔۔ بے بالین و بے بستر[۴۴]

نه پوزی شوه تر دَ لاندے[۴۵] ۔۔۔ نه تر لاندے شه تغر

دَ بنے په خیر خفیف شه[۴۶] ۔۔۔ چه ثقیل وو لکه غر

دَ سیلاب په مخکښے لاړ شه[۴۷] ۔۔۔ لکه خس وی یا وزر

حق ئے پاتو په گردن شه ۔۔۔ دَ سپائی او دَ چاکر

اوس ئے زه په روح دعا کړم ۔۔۔ که ئے خدائے کا بهره ور

حق تعالیٰ ئے په نصیب کړه[۴۸] ۔۔۔ شیرین حوض دَ کوثر

دَجنت په خوشبوی ئے[۴۹] ۔۔۔ خدائے دماغ کړه معطّر

په درست هند باندے ئے حق وو ۔۔۔ هند یو شپه وه دے ئے نمر

دَ دے نمر په روښنائیه ۔۔۔ تمام هند وو منور

په رڼا ئے خلقو زیست کړ ۔۔۔ نه څه خوف وو نه خطر

خو چه مخ ئے په غروب کړ ۔۔۔ نور پیدا شه شور و شر

چه په نام دَ اورنگ زیب وو ۔۔۔ وخوړ گاؤ هغه دفتر[۵۰]

اوس نوبت دَ شاه عالم دے ۔۔۔ دور طور شه دگر[۵۱]

خدائے زده څه بازی شی پسینه ۔۔۔ عاشوره شی که اختر[۵۲]

رنگارنگ بازی کاندے ۔۔۔ دا اسمان دے بازیگر

کله تلخ شی لکه زهر[۵۳] ۔۔۔ کله شیرین لکه شکر

څه چه وشو هغه وشو ۔۔۔ لا به کیږی مقدر[۵۴]

ما خو نوم دَ اورنگ واخست ۔۔۔ دا احوال دے دَ هر هر

هر سرے دَ خپلے خونے ۔۔۔ هم بادشاه دے هم سرور

هر چه اهل دَ دنیا دی ۔۔۔ واړه هسے دی اکثر

دا بیان دور و دراز وو ۔۔۔ رحمان وکړ مختصر[۵۵]

۱۶ $\frac{۴}{۷۳}$ ۹۸۸

چه په زور ورسره نه ئے برابر
دَ هغو له ځنګه مه کښینه زړه ور (۵۶)
زور آور اور او اوبه دی فهم وکړه
چه ډوب نه شے یا و نه سیزے بشر
ژندګی که بے اوبو بے اوره نه شی
تل هم ئینبی هیڅ‌یا نه دی په تمتر (۵۷)
خدائے ورمه وله سیلاب دَچا په خونه
که په قطع هم اوبه وی دَ کوثر (۵۸)
و ذِ نه لګیږی اور په کور دَ هیچا
که رڼا ئے وی دَ شمس او دَ قمر
چه دِ درست صورت غلبیل شی په اغزیو
وخوره مه شه دَ هغے ونے ثمر
دَ هغه دیوال په سیوری څوک کښینی مه نه
چه ولاړ وی لګه زوړند چاؤد کمر
چه په ګیډه دِ ځرخیږی مخ ئے ورک شه
که دَ سرو زرو چاړه وی یا خنجر (۵۹)
ناکرده سودونه ډیر دی په دنیا کښے (۶۰)
سود هغه وی چه دَ خیر وی نه دَ شر
و اوبو ته اچوه نه شی ځان خوړ دے (۶۱)
ګنه ډیر دی په دریاب کښے دُر ګوهر

چه له ابه له حرمته سره نه وی
خدائے ورمه کړه وچا هسےسیم و زر
زور اور که رسوی وچا ته فیض
له دے فیض سره وکړه ضرر (۶۲)
په یاری دَ زوراورو غلط مه شه
مګر دا چه تر ده ته ئے زوراور
په هر ګاه چه دے مغلوب وی ته غالب ئے (۶۳)
ترو هاله ئے قدمونه ږده په سر
یا خو دا چه که قدم ئے په در نه ږدے
دغه پسه ئے ځان وکړه پدر (۶۴)
چه هنر کنی یاری دَ زوراورو
بول وکړم زه رحمان په دا هنر (۶۵)

۹۹۹ ۵/۷۴ ۱۱

پورته بدر را خر ګند شه ښکته نمر
ښکته پورته وارہ مخ دے دَ دلبر
نمر سپوږمی مے دَ پالنګ د پاسه رغړی
چه مے یار په بالښت ولګوی سر (۶۶)
په سرو سپینو درو لعلوئے غوږ ډک شی
چه مے غوږ کاندی دَ اوښیو په دردر
چه ئے ووینم په مخ مے اوښے دروی
لکه موم چه په افتاب شی برابر

بل مذکور ئے سخن گویو سترگو نہ زدہ (۶۷)
بے لہ دے ذکرہ چہ اللہ اکبر
ضد دی اور او اوبہ بے دَ یار لہ شونڈو
چہ هم اور دی هم اوبہ دی دَ کوثر
پہ شرابو کښے خوند نشتہ دَ شکرو
دَ یار شونډے هم شراب دی هم شکر
کہ سل ځلہ پټ ترشونډو لاندے خاندے
نہ پټیږی اب دَ لعل او دَ گوهر (۶۸)
دا خو ما لرہ خدائے راکړ گنہ نشتہ
هسے بُت پہ بت خانہ کښے دَ آزر
پس لہ دے بہ دِ پہ نام دَ فرښتو بولم (۶۹)
هم پہ دا چہ نشتہ دا رنگ بشر
کہ رحمان صاحب نظر بالہ شی ښائی (۷۰)
چہ مدام دَ یار پہ مخ لری نظر

۱۰۰۹ ۱۰ $\frac{۶}{۷۵}$

هومرہ اوښے مے بهیږی پہ رخسار (۷۱)
چہ غرقاب مے هم گریوان دے هم کنار
هغہ یار مے هسے ناست دَ زړہ پہ سر دے
لکہ ښیے چہ چا گل وی پہ دستار
کہ څوک وائی چہ مار کلہ پہ کټ خیژی
زہ خوړلے یم پہ کټ دَ زلفو مار

خو دَ یار بیمارے سترگے خدائے خونی کړے (۷۲)
گنیه خون کله کولے شی بیمار
که په دار شم زه دَ یار له لاسه خوښ یم
سرو قد دے زما یار و زما دار (۷۳)
بس کا دا چه زه په یار پسے غوځ غوځ یم
خدائے دِ نه کا لکه زه یم هسے یار
هومره جور لکه یار له ماسره (۷۴) کا
یاد مے نه دے هومره جور دَ اغیار
دلبری خو کوڈکر هم په کوډو وکا
هغه وایه چه بے کوډو شی دلدار (۷۵)
چه دَ زړونو دَ نماځځے بے پروا دی (۷۶)
ترو که زړه دَ سړی یوسی څه په کار
په کریوان ئے تل دَ اوښیو باران وورِی (۷۷)
نه ورکیږی دَ رحمان دَ زړه غبار

۱۰۱۹ ۱۰ ۷/۷۶

چه دِ زړه پورے تړلے استوار
دا جهان دِ دَ نیکه دے که دَ پلار
ته خپل پلار او نیکه وګوره چه څه شو
هسے ستا دے په هغو پسے رفتار
تل وړومبے دَ وروستی پول دے پر تیریږی
کړے نه دے چا په پله باندے قرار (۷۸)

هسے نه چه زه تنها و تا ته وایم
راغله لاړه ستا په طور صد[۷۹] هزار
دعوی مه کړه په ناحق به ئے خپل نه کړے
پردے ښهر پردے ملک پردے[۸۰] دیار
چه استوګه په پردی وطن کښے کاندی
هغه نه لری هیڅ واک او اختیار[۸۱]
که هزار قسمه وخوری په معامله کښے[۸۲]
نه کا څوک په مسافر و اعتبار
چه په صبح شګفته شی په شام ریږی
څه امید دے په ګلونو د ګلزار
که د ورور که د عزیز وی که د یار وی
مه ئے ورور مه ئے عزیز ګڼه مه یار
چه پیدا شی هګی واړه فنا شی[۸۳]
اے رحمانه دا جهان دے دائے کار

۱۰۳۵ ۶ $\frac{8}{77}$

څو جفا قبوله نه کړے د اغیار
و به نه وینے په سترګو مخ د یار
چه اول ئے خار زرغون شی په پهلو کښے
غنچه هله شګفته شی په ګلزار
جنت چا په ریاضت موندلے نه دے[۸۴]
وے بویه هر بنده لره خپل کار

که موندۀ شوے خوشبوی په خوشخوی
پروت به نه وو دَ چندڼ د پاسه مار (۸۵)
اب تر لعلو دَ لاله دَ گلو ډیر دے
بخت دے داچه څوک عزیز کاندی څوک خوار
هسے زیب کا په بیاض دَ رحمان شعر
لکه زلفے دَ خوبانو په رخسار

۱۰۳۶ ۱۱ $\frac{۹}{۷۸}$

څوک دِ راکاندی قسم په کردگار
که درم لرم په کور کښے یا دینار (۸۶)
زه دینار و درم نه لرم په کور کښے
ولے نور خلق مے بولی دنیا دار (۸۷)
هم په دا چه نه له ځایه چرته خوځم (۸۸)
نه دَ هیڅ یوه مخلوق یم منت بار
نه مے بنکته ملک لیدلے دے نه پورته
خبر نه یم په یمین او په یسار (۸۹)
اُب وخور لکه اسیا په ځائے را رسی
په خپل کور کښے مے سکون دے هم رفتار (۹۰)
لکه ونه مستقیم په خپل مقام یم (۹۱)
که خزان راباندے راشی که بهار
توکل مے لاس و پښے کړے په نکریځو (۹۲)
چه په ځائے ئے کښینولے یم قرار

چه زما په باب ئې کښلي دي رارسي (۹۳)
که راحت دے که زحمت دے وار په وار
چه هژده هزار قومونه ئې پيدا کړه
مربّي ے دے هغه پروردګار (۹۴)
کار همه په اراده دَخدائے موقوف دے
هيڅ موقوف نه دے زما په انتظار (۹۵)
غم به هيچرے و نه کا په دنيا کښے
که څه کيږي دَ رحمان په اختيار (۹۶)

۱۰۴۴ ۱۰/۷۹ ۸

دغه يار دے دا اغيار
دغه ګل دے دغه خار (۹۷)

دغه ګل دے دغه خار دے (۹۸)
دا منصور دے دغه دار

دا رقيب دے دا حبيب دے
دغه ګنج دے دغه مار (۹۹)

دغه عقل دغه عشق دے
دغه غم دے دا غم خوار (۱۰۰)

دا هجران دے دا وصال دے
دا خزان دے دا بهار

دا طاعت دا معصيت دے
دغه نور دے دغه نار

دا عالم دے دا جاهل دے
دا خفته دے دا بيدار

دا رحمان دے دا جانان دے
دا طبيب دے دا بيمار

۱۰۵۱ ۱۱/۸۰ ۷

هر چه نه وي خوار وزار
په طلب دَ خپل دلدار

تر پړوني صدقه شه
دَ هغه عاشق دستار

هزارحیف دے هزارحیف دے — هزار څه لا صد هزار
چه عاشق په عاشقی کښې — نه حلال وی نه مردار (۱۰۱)
نه پتنګ دَ خپل څراغ وی (۱۰۲) — نه بلبل دَ خپل ګلزار
نه مجنون غوندے رسوا وی (۱۰۳) — نه منصور غوندے په دار

دواړه نه کیږی رحمانه
یا به یار شے یا ویزار

۱۰۶۰ $\frac{۱۲}{۸۱}$ ۹

په بزرګۍ دَ هغه پاک پروردګار
موقوف مه شه په سړی دَ سړی کار
په سړی چه دَ سړی غرض موقوف شی
نور بے آبه بے حرمته شی روزګار
احتیاج هسے بلا ده په جهان کښې
چه پلار زویه کا دَ زویه زویه (۱۰۴) پلار
که دَ پیر په خپل مرید باندے غرض وی (۱۰۵)
هیڅ ئے نه وی په مرید باندے وقار
زمانه هسے بے مخه ده بے رویه
چه غالب کا په اسلام باندے کفار (۱۰۶)
په ساعت کښې شاه ګدائے کا ګدائے شه کا (۱۰۷)
دا فلک ځکه باله شی کج رفتار
چه همه عمر ئے تاج وی په سر ایښے
ور په سر کاندی ګیدړے دَ خس وخار

ق

چه قادر نه په درم نه په دینار وی[۱۰۸]
په هغو باندے گنجونه کا انبار
زمانے دَ رحمان زړه دے کباب کړے
له احواله ئے خوک نه دی خبردار[۱۰۹]

۱۰۶۹ ۹ $\frac{۱۳}{۸۲}$

که دَ عشق لاره اغزنه ده هرګور[۱۱۰]
دَ عاشق په پښو ښپلی دی دَ اور
که دیدن دِ دَ ګلزار په انتظار شی[۱۱۱]
زما سترګے دی شبنم غونده ښلور
تیغ دَ او سپینے محتاج دَ نرم اب وی
قرب و حلم یو په سله وی تر زور
له لوئی له سرکښئ زما توبه ده
خدائے خوک مه کړه دَ اسمان په ځیرنسکور
خدائے زده څه سودا به پیښه په بازار شی
دَ بازار خبرے نه شی په خپل کور[۱۱۲]
دا همه واړه عاشق لره پیدا شو
که تهمت که ملامت دے که پیغور
جفا جور ناز او کبر دَ خوبانو
ما په ځان دی قبول کړی لکه پور
راحت بے زحمته نه دے چاموندلے[۱۱۳]
غم بنادی دی دَ دے دهر خوراو ورور

رحمان هسے په خپل یار پسے غوخ غوخ یم (۱۱۴)
لکه غوخ په خپل اولاد وی پلار ومور

۱۰۹۰ ۲۱ ۱۴/۸۳

پس له مرګه که ځوک ارت غواړی خپل ګور (۱۱۵)
که حق وایم هومره ارت ئے بوبه کور
ترځان زیاته کمه چار ځد په کار نه ده (۱۱۶)
ځان په لوبیشت کړه چه ډخودی ووړ ده پسوړ
چه جامه دَ چا کوتاهه یا ووړ ده شی (۱۱۷)
ورکاوه شی هنرمند لره پیغور
هر سړے چه په حساب کښے تیروبیرشی
ملامت پر وایه کیږی لور په لور (۱۱۸)
چه لائق دَ ملامت او دَ تهمت شی
ځائے لری که بے عزت شی هم سرتور
چه عزت حرمت ئے نه وی په جهان کښے
هغه هسے ژوندون وسوزه په اور
بے عزت سړے به خوبښ دَ هیچا نه وی
مګر هسے بے عزت وی ځنے نور
خپل مجلس ئے له جمله مجلسه خوبښ وی
په هرځائے چه وبله وریځشی خسور
هر هم جنس له خپل هم جنسه سره جوړوی
زیب کا هره کشیده په خپل انځور

نابینا په خپله سیمه کښې بینا وی
بینایان په پردی ملک شی کور وکوړ (۱۲۰)
که ته نه ئے بدکردار دِ بدکردار کا
کښیناسته له بد کردار سره پیغور (۱۲۱)
درست صورت دَیوه نوک په درد دردمند شی
وران شی ښهر دَ یوه سړی په تور (۱۲۲)
چه یوغابښ په خوله کښې زوړند شی یا ووځی
درسته خوله پر بد نمایه شی هرګور
یو سړے چه په کوړمه کښې دَ چا ګرم شی
واړهٔ ګرم کا که پینځه وی که څلور (۱۲۴)
بدکردار زویه پیدا مه شه له موره
حبطه کاندی ناموس دَ پلار و مور
هرخوک خپله خوشحالی له خدایه غواړی (۱۲۵)
بارے نه شی دغه کار په زر و زور
خدائے په خپل قدرت څوک لوئے څوک ئے هلک کړه
نه چه هر ښهر دِ یلے شی یا لاهور
دَ ټنګو پوورونه هرڅوک وبله کاندی
بخت هیچا ورکړے نه دے وبله پور (۱۲۶)
دَ چا تاج په سر زرین خنجر تر ملا وی
دَ چا پنړ په سر په ملا ټومبلے لور
څوک په اس د پاسه سوروی توغ دَوړاندے
څوک بزیر کلے ګرځاوه شی په خرهٔ سور (۱۲۷)

اے رحمانہ دَخدائے نوم بہ چا وانہ خست
کہ دَخدائے چارے پہ پلارشوے یا پہ مور (۱۲۸)

۱۰۹۷ ۷ $\frac{۱۵}{۸۴}$

هسے تلہ کاندی وگور تہ یاران ژر ژر
لکہ تلہ کا وخپل کور تہ کاروان ژر ژر (۱۲۹)
هسے ژر ژر مرگ پہ مونږہ شتابی کا
لکہ لو دَ پاخہ کښت کا دهقان ژر ژر (۱۳۰)
هسے ژر ژر دا دنیا وبلہ اوړی
لکہ اوړی وبلہ ریگ روان ژر ژر (۱۳۱)
هسے ژر ژر صورتونہ دی ماتیږی (۱۳۲)
لکہ ریژی لالہ زار پہ خزان ژر ژر
هسے ژر ژر دا شیرین عمر تیریږی
لکہ بحرچہ بهیږی روان ژر ژر
هسے ژر ژر اشنایان سرہ بیلیږی
ق لکہ سا اخلی سنړی ستومان ژر ژر (۱۳۳)
دَ بنو حُسبل هم هسے ژر ژر نہ وی (۱۳۴)
لکہ دروی لہ جهانہ رحمان ژر ژر

۱۱۰۷ ۱۰ $\frac{۱۶}{۸۵}$

تل بہ نہ وی شگفتہ گلزار دَعمر
نہ بہ جوړ وی همیشہ بازار دَعمر (۱۳۵)

لکه سیند دَ اباسیند په غورزی درومی
هسے یون دے په تلوار تلوار دَ عمر
لکه برق چه مخ څرګند کاندی بیا نه وی
هسے تیز دے په پلشکون رفتار دَ عمر [۱۳۶]
سرکښی لری تر هسے حده پورے
چه نیوے نه شی هیڅوک مهار دَ عمر
چه سمند ئے نه جلب لری نه واګے
خو به پریوځی عاقبت شهسوار دَ عمر
په ساعت دَ سلوکالو یاری پرے کا
بے وفا دے هسے رنګے یار دَ عمر [۱۳۷]
خپل صورت به دَ حباب په سترګو ګوری
که څوک وکاندی په زړه کښے شمار دَ عمر
نه ووځم چرته له کوره نه سفر کړم
بے سفره ـے غوځیږی لار دَ عمر [۱۳۸]
عاقبت به دَ اجل په مقراض غوځ شی
پیوسته به مدام نه وی تار دَ عمر
بیا ئے وار په دا دنیا نشته رحمانه [۱۳۹]
په هر چا باندے چه تیر شه وار دَ عمر

۹ $\frac{۱}{۸۶}$ ۱۱۱۶ ل

خراب دل ـے دَ دلبرو هوا یوړ [۱]
دَ هوا له وړیوچا زده چه چا یوړ

ګوښه ګوښه ښاٸسته مے زړه راکاږی
زه وکوم یوه ته وایم چه تا یووړ
چه مے زړه لره دَ تورو زلفوځاٸے غوښت
هغه زړه راځخه تورے بلا یووړ
دَ سیلاب په مخکښے کله دَ چا خوب شی
شیرین خوب راځخه ډیرے ژړا یووړ [۲]
هغه عقل چه مے لاف دَ خود راٸۍ کړ
په یوه پیاله دَ میٶ مینا یووړ
هغه رخت چه مے دَ صبر دَ سکون وو
هیڅ رانه کړه مهوشانو ویړیا یووړ [۳]
څو ئے وړے فراغت له درست جهانه
هغه هومره ئے یواځے له ما یووړ [۴] ق
که ئے یووړ خسته دل مے ترقربان شه
نا اشناؤ وړے نه دے اشنا یووړ [۵]
هیڅ ناحق پرشوی نه دی که حق وایم
معشوقو دَ رحمان زړه په رضا یووړ [۶]

۸ ۲/۸۷ ۱۱۲۴

ستا دے خواب الود و سترګو خواب راځخه یووړ
لبو دِ لذت دَ میٶ ناب راځخه یووړ
نه مے اوښے پاتو شوے نه صبر په صورت کښے
ډیرے بے صبریه دَ مخ اب راځخه یووړ

زړه مې په نغمو نغمو سوري کړ مطربانو
عقل ساقیانو په شراب راشخه یووړ
یو ساقي بل یار دریم مطرب سره یو ځائې شول
زړه ئې له کوګله په شتاب راشخه یووړ
څه شو که ئې یووړ خراب دل مې تر قربان شه (۷)
نور چا وړې نه دې خپل احباب راشخه یووړ
خط دِ تور حرفونه مخ دِ پاڼې دَ کتاب دی (۸)
شغل دَ کتاب دِ بل کتاب راشخه یووړ
هر اسباب چه ماسره دَ زهد دَ تقوىٰ وو (۹)
واړه تا دَ حسن په اسباب راشخه یووړ
کړې ما رحمان په زړه کښې نقش دَ محراب وو
ستا ابرویو نقش دَ محراب راشخه یووړ

## ز

۱۱۳۶ ۱۲ $\frac{۱}{۸۸}$

لکه کاندی په کوترو نظرباز
هسې زه یم دَ دلبرو نظرباز
زه و نور چا ته خبرې دراز نه کړم
بې هغو چه موئې مژګان لری دراز (۱)
بل بادشاه لره محال دې ملک دَ زړونو
مګر مخ دَ چا محمود شي خال ایاز
ستا دَ زنې تر سیب پورې راښکاریږی
نورې زنې دَ خوبانو لکه پیاز

دَ تصویر له ګلو طمع دَبوی مه کړه[۲]
بے وفا دی واړه نرکے دَ مجاز
هغه یار که په خپل ناز خوښ وخرم دے
زه هم خوښ یم همیشه دَ یار په ناز
همیشه مے لاس نیولی وی داخواست کړم[۳]
چه مدام دِ دَ یار ناز وی زما نیاز
که څوک آه و فریاد ښه ګڼی په عشق کښے
زه په عشق کښے دغه کار ګڼم غماز
ښادی هرچرے دَ غم په اندازه وی
هسے غم دے دَ ښادیه په انداز
نیستی واړه دَ هستئ په دنبال ګرځی[۴]
نه ډوبیږی په اوبو کښے تش جهاز
دا قاعده ده لکه لوړ هومره دِ ژوړ وی[۵]
یوصورت دے هم نشیب شی هم فراز
چه یکسان ګوری و شاهو وګدائے ته
هسے یار دے دَ رحمان غریب نواز

۸ ۲/۸۹ ۱۱۴۴

که بے ځایه زرکے نه وکښے اواز[۶]
نه صیاد ځنے خبر وو نه شهباز
سکه له دے خبرے هسے معلومیږی
چه خپل صوت دے هر سړی لره غماز

دَ منصور وحال تہ گورہ حال ئے څه شه
خدائے دِ فاش دَ هیچا نه کاندے پټ راز
دریغه دریغه که وروستے عقل وړومبے وے
دَ انجام خبرے نه شي په اغاز
نیک عمل دَ عاملانو نیک فرزند دے[۷]
خدائے ځوک مه کړه شراب خوار وقمارباز
چه فرزند ئے شراب خوار وقمارباز شي
نور ئے کانې شي دَ پلار په خونه ساز
خدائے له هسے زاهو زاده امان وکړه
چه بے دین بے دیانت شي بے نمااز[۸]
چه منکر پرے اعتراض کولے نه شي
دا دِ شعر دے رحمانه که اعجاز

۷ $\frac{۳}{۹۰}$ ۱۱۵۱

بد اختر به نیک اختر نه شي هرگز
مرغ هیچ به درگوهر نه شي هرگز
که مکان ئے یو اسمان دے غزا وشوه[۹]
ستاره به شمس قمر نه شي هرگز
که ئے اصل له یوے زمکے دے څه شو[۱۰]
بید به سرو صنوبر نه شي هرگز
که همه عمر باران ورباندے ووری
خس به گل دَ پیغمبر نه شي هرگز

له نااهلو دَ وفا طمع و مه کړه
گنده نل به نیشکر نه شي هرګز (۱۱)
که تور غر له ځایه خوځي و به خوځي
ولې نور به مقدر نه شي هرګز
دَ رحمان په باب چه وشو هغه وشو
مکرّر به دا دفتر نه شي هرګز (۱۳)

## س

۱۱۶۰ ۹ $\frac{1}{91}$

تیر شه درست عمر زما په دا هوس
که مې وپوښتې چه څوک ئې یا څه کس (۱)
یو پرسش دَ هغه یار ما لره بس کا
که څه کس وي خو یو اوئې ورلره بس
هزار حیف دې چه په هر نفس ترتښتم
هغه لور ته چه مې تله دي هر نفس
چه ئې زه په هر نفس له خدایه غواړم (۲)
هغه کله کله وینم په دیر پس
که یو خس وي په محتاجو لک او کروړ شي (۳)
خدائې دِ نه کا څوک محتاج دَ یوه خس
هر مارغه په خپله ځاله کښې همائې دې
که قارغه که مښکیرک دې که ققنس (۴)
که شهباز لره سینه ده دَ تنځري (۵)
عنکبوت لره سینه ده دَ مګس

خو چه خاورو لره ورشي برابر شي
که چا غُنډے وي اغوستے يا اطلس (٦)
هم هغه ئے ژړوي چه خندوي (٧) ئے
نور څوک نشته دَ رحمان فرياد رس

۱۱۷۵ ۱۵ ۲/۹۲

ويښته سپين ستر کے تاريکے غابښ کنډاس
نه وکاږے دَ دنيا له چارو لاس
په هر طور چه ئے موے پسے دروے
نه په چپ لوری صرفه کړے نه په راس
يو ويښته دَ عقيدے دِ په تن نشته
سر تر پايه هسے ډوب ئے په وسواس
خدائے رازق بولے او رزق ګڼے له کسبه
په دا شناخت وځان ته وائے حق شناس
هسے رنګ په مذبذب صفت موصوف شوے
نه پوهيږه مه چه ناس ئے که خناس (٨)
په دوي ګښے به ورنه شے تر توحيده
که پيشوا کړے مهتر خضرؑ مهتر الياسؑ
واړه زهر قاتل نغرے که پوهيږے
که سوا له خدايه نغرے هر انفاس (٩)
امر دا دے چه له نهي لاس کوتاه کړے (١٠)
او که نه وي خپسر وګڼه مواس

خیر دا دے چه له شره وچاروځے[11]
په دا چاره کښے هیڅ نشته کوز او پاس
که زما وئیل دروغ یا کوز او پاس وی
ته پخپله په خپل زړه کښے وکړه قیاس
له سړیه غرض واړه سړی هوښ دے
نه چه پټ وی مس دَ زرو په لباس[12]
څه په دا به عراقی او ترکی نه شی
که دَ خره په سر سرائے کړ دَ اس[13]
دَ تشنه خو له اوبو سره مطلب وی
نه تش بے اوبه دَ سیم و زر و طاس[14]
هر زاهد چه په ریا زهد نازیږی
دَ څر ببنت ګمان ئے کیږی په اماس
اے رحمانه که څه کار دے خو دَ دین دے
نور کارونه بے وفا دی بے اساس

۱۱۸۶ ۱۱ ۳/۹۳

که څوک فخر کا په ننګ او په ناموس[15]
دا په عشق کښے نه ارزیږی یو فلوس
که اغوستی ئے زری جامے وی څه شو[16]
ګنه یا مرغ زرین دے یا طاؤس
که ئے تاج وی په سر ږینے غزا وشوه
په نظر زما هدهد دے یا خروس

نه ئے فهم فراست وی نه ئے علم[۱۷]
خالی نقش لکه عکس دَ معکوس
نه ئے مغز نه دانه وی په خرمن کښے
عبث هسے په سر لونی واړه بوُس[۱۸]
دَ مجاز له اهله طمع دَ خیر مه کړه
همګی شر و شدت دے دا الوس[۱۹]
ودانی ئے همه واړه ویرانه دی
راشه وګوره مانئ دَ کیکاؤس[۲۰]
که زما په ګفتګوی کښے زیات وکم وی
څوک دِ ګڼه کا په دَا ښهر کښے جاسوس
ساقی جام وباده راوړه چه بے خود شم
خدائے څوک مه کړه په خودیه کښے محبوس[۲۱]
که څوک وغواړی تمامه دنیا واړه
زما یار غوندے به نه وی بل عروس
رحمان حسن دَ یار وینم په پرده کښے
نه پټیږی نور دَ شمع په فانوس[۲۲]

# ص

۱۱۹۵ ۹ $\frac{۱}{۹۴}$

څه عجب بلند مقام دے دَ اخلاص
چه جهان واړه غلام دے دَ اخلاص
که له زمکے واسمان ته خاته ګران دی
دا سفر په یوه ګام دے دَ اخلاص

چہ خبر کا مخلصان لہ غیبہ علمہ
دا ھمہ وارہ الھام دے دَ اخلاص[۱]
دَ رواج او رسم عمر مدام نہ وی
لکہ عمر چہ مدام دے دَ اخلاص[۲]
بے اخلاصہ دَ اسلام حلاوت نشتہ[۳]
کہ اسلام دے خو اسلام دے دَ اخلاص
څہ عجب دے کہ ھمائے ئے پہ دام نښلی[۴]
ھر صیّاد څخہ چہ دام دے دَ اخلاص
څہ عجب دے کہ مستان وی ترِ چاپیرہ[۵]
ھر ساقی څخہ چہ جام دے دَ اخلاص
پس لہ مرګہ بہ دا مھر اخلاص نہ وی
کہ اخلاص کړے نن ھنګام دے دَ اخلاص[۶]
دَ رحمان کلام پہ دا سبب شیرین دے[۷]
چہ ئے ھر کلام کلام دے دَ اخلاص

## ض

۱۲۰۱ ۶ $\frac{۱}{۹۵}$

کہ تہ نہ کړے پہ بل چا باندے غرض
بل بہ ھم نہ کا پہ تا باندے غرض[۱]
کہ ګدائے دَ بل پہ غولی غرض نہ کړی
سپے بہ نہ کا پہ ګدا باندے غرض[۲]
پہ ساحل کشتی دَ ھیچا نہ ډوبیږی
کہ څوک نہ کا پہ دریا باندے غرض

خلوتیان په خپل خلوت کښے فراغت وی
دَ رسوا دے په رسوا باندے غرض[۳]
دا دنیا په احمقانو ده ودانه[۴]
دانا نه کا په دنیا باندے غرض
زه رحمان دَ عشق په درد کښے هسے خوښ یم[۵]
چه مے نشته په دوا باندے غرض

## ط

۱۲۰۸ ۷ ۱/۹۶

طمع مه کړه په دنیا کښے دَ نشاط
بیا به نه مومے نشاط په دا بساط[۱]
لکه راغلے بیا به هسے ځئے دروے
دا جهان دے دَ رهرویو یو رباط[۲]
تر هر کام لاندے کوهے دے دَ دے دهر
ږدے بویه هر قدم په احتیاط
و دانا وته په دا جهان ښکاریږی[۳]
هم جنت او هم دوزخ او هم صراط
په عاشق به هیڅ دهشت دَ رقیب نه وو
که ئے نه کړے له خوبانو اختلاط
له کم اصله بے دیانته بے نمازه
طمع مه کړه دَ نیکئ دَ یو قیراط[۴]
غم دَ ترکو تر رحمان هسے چاپیر شه
لکه وسکښے جامه په چا خیاط[۵]

# ظ

۱۲۱۷ ۹ ۱/۹۷

اومه کله دی پاخه وائی واعظ
هرچه وائی واړه ښه وائی واعظ[۱]
چه دے ما له خپله یاره لرے باسی
نور به څه راته اومه وائی واعظ
جارواته زما له یاره ډیر مشکل دی
زیاتی څه له دوباره وائی واعظ
په خوږو پښتو خبروئے غلط شوے
دا خواږه خواږه تراخه وائی واعظ
څوک به څه باورډ ده په نصیحت کا
چه له یاره جاروانه وائی واعظ
یو ساعت مے بے له ناستوارام نه شی
تل له ښکلیو پاڅیده وائی واعظ[۲]
زه بے عشقه بل یوکارکولے نه شم
ډیر له عشقه تښتیده وائی واعظ
اعتبارئے په نرمی په ګرمی مه کړه
دا تاوده تاوده ساړه وائی واعظ
اروید وئے د رحمان د وئیل نه یم
بهتر دا دے چه نور نه وائی واعظ

ق

# ع

۱۲۲۲ ۵ $\frac{1}{98}$

په تندی چه اتش بل کا مدام شمع
ځکه بیامومی له خلقه اکرام شمع[1]
په انوار دِ منوّر اهل ابصار شی
لا به کله شی ښکاره دَ انعام شمع
پتنګان ئے لور په لور په مخ ځرخیږی
ځکه نه کوی په سول کښے ارام شمع
وسیزه ته ځان زما په شعله باندے
کړه پتنګ ته په رموز کښے کلام شمع
ستا مجلس دَ خاص الخاصو صرافانو[2]
دَ رحمان په شیر نه مومی هر عام شمع

# غ

۱۲۲۷ ۵ $\frac{1}{99}$

هر یو ګل دَ ستا دَ باغ روشن تر دے ترچراغ
روشن تر دے ترچراغ هر یو ګل دَ ستا دَ باغ
ستا دَ باغ او دَ بڼ زاغ په نظر زما هما ئے دے
په نظر زما هما ئے دے ستا دَ باغ او دَ بڼ زاغ
دَ درد منو په دماغ ستا دَ درخاورے عنبر دی
ستا دَ درخاورے عنبر دی دَ درد منو په دماغ[1]
دَ عاشق دَ تهتر داغ په اسمان دَعشق افتاب دے
په اسمان دَعشق افتاب دے دَعاشق دَ تهتر داغ

دَ رحمان دَ زړه فراغ نه شي نه شي بې خوبانو
نه شي نه شي بې خوبانو دَ رحمان دَ زړه فراغ

۱۵ $\frac{1}{100}$ ۱۲۴۲

# ف

اورنګ زیب و شاهجهان غونډے اشراف[1]
صدقه شه تر منصور غونډے نداف
که دَ تن په لوئي لوئے دے به ئے څه کړے[2]
مه کړه خدائے چه کوه طور شي کوه قاف
بوالهوس دِ عاشقئ ته هوس نه کا
دا دروغ دی چه زردوز شي بوریا باف
دَ مکے په بزرګئ کښے هیڅ شک نشته
ولے خرئے حاجي نه شي په طواف[3]
که په سل دریابه غسل وځان ورکا[4]
ګمان مه کړه چه به سپے شي پاک وصاف
کشتئ هم چه ډیره ډکه شي ډوبیږی
دَ مسرف په ځان بلا شه خپل اسراف
صابرانو صبر پریښوو حریصان شو
نه څه عدل شته په چا کښے نه انصاف
دا څلور مذهبه واړه سره یو دی
ما او تا پکښے پیدا کړ اختلاف
دَ همه واړو ملکونو څښتن یو دے[5]
که دوزخ دے که جنت دے که اعراف

شهیدان نہ دی هغہ خون فروشان دی
چہ خونی تہ خون بها نہ کا معاف
دَ کاذب ژبہ پہ خولہ کښې وچہ نہ دہ
لکہ تورہ دَ لړکیو پہ غلاف[۶]
دَ دیوال پہ سربہ څو زغلی ترکومہ
دروغژن چہ پہ دروغہ کاندی لاف
آب وتاب دَ ناسرہ مهر وی هومرہ[۷]
څو نظر پرے شوی نہ وی دَ صراف
دَ دنیا پہ دولت ناز مہ کړہ رحمانہ
دا یو موئے دے پہ نظر دَ موشګاف
مدحہ هجوہ دَ حبیب او دَ رقیب کړم
رحمان نہ زدہ بلہ هجوہ نور اوصاف[۸]

۱۷ $\frac{۱}{۱۰۱}$ ۱۲۵۹

# ق

چہ پائے بند شہ دَ لیلیٰ پہ اشتیاق
مجنون واچول و نورو تہ طلاق[۱]
چہ دَ میئو دَ مطرب پہ خوند خبرشہ
فراموش کړہ صوفی نفل دَ اشراق
داځلمی پہ مثال باغ مړګ ئے خزان دے
چہ خزان پرے باندے راشی[۲] ق
جام دَ میئو دے یا رقص دَ خوبانو
پہ هرځائے چہ وبلہ جمع شی عشاق

پہ نسیاؤ نظر نہ کاندی بے نقدہ[۳]
کہ څوک حورے ورتہ ستائی یا براق
چہ حاصل ئے دَ دلبرو یکانگی شی
دَ دوئی خبرے نہ کاندی مشتاق
حرکت لہ ځایہ نہ کا لکہ شمع
کہ ئے اور دَ عشق بلیږی پہ تاړاق
هسے خوښ وی دَ خپل یار پہ دردوغم کښے
تہ بہ وائے چہ بادشاہ دے دَ آفاق
هسے محوہ وی دَ عشق پہ میئو ناب کښے[۴]
چہ خبر نہ وی پہ وصل پہ فراق
چہ روان ئے دَ سفر پہ لویہ لار تہ
راشہ پریکړہ لہ هر چا نہ اشتیاق[۵]
کہ ظاهر پہ صورت وی پہ معنیٰ نہ وی
لکہ کښلے دَ لا لفظ پہ اوراق[۶]
څو ئے تن پہ کار و زار کښے فنا نہ شی[۷]
نہ جارباسی مخ اسونہ دَ عراق
دَ عراق اسونہ کار پہ اشارت کا
پہ وهل پہ کوتل کار دے دَ الاق[۸]
چہ خدائے پوہ کړہ دَ ښو پہ ځمبل پوہ شو[۹]
چہ پوہ نہ شو نہ پوهیږی پہ شلاق
کہ ئے سر ځی کہ ئے مال ځی خدائے دِ نہ کا
دَ طالب او دَ مطلوب ترمیان نفاق[۱۰]

دَ قسمت پاسے پہ لاس نیولے ناست یم[۱۱]
نہ پوهیږم چہ بہ جفت شی کہ بہ طاق
تہ چہ پند وائے ناصحہ و رحمان تہ
کشکے نور کړے هغہ کښلی دَ میثاق[۱۲]

۱۲۶۶ $\frac{۲}{۱۰۲}$ ۷

خدایہ څہ شہ هغہ ښکلے ښکلے خلق
پہ ظاهر پہ باطن سپین سپیځلے خلق
هیڅ خنداے لہ دے خلقہ سرہ نہ شی[۱۳]
ژړوی ےمے هغہ تللے تللے خلق
خبر نہ یم چہ وکومہ خوا تہ لاړشہ[۱۴]
لیدہ نہ شی هغہ ما لیدلے خلق
لکہ نمر چہ دَ اورو پہ څوکہ درومی[۱۵]
هسے دروحی پہ دنیا راغلے خلق
دریغہ یو ځلہ خو بیا پہ جهان راغے
لہ جهانہ پہ ارمان و تلے خلق[۱۶]
هزار حیف دے چہ پہ خاورو کښے لاړہ شی
پہ چووہ او پہ چندن لړلے خلق
رحمان هسے کوښے خوند لہ خلقہ بیاموند
چہ هرګز نہ دے داخوند موندلے خلق[۱۷]

# ک

۱۴ ۱/۱۰۳ ۱۲۸۰

چه په زړه مې تور لحد شي د خپل خاک
بې مزه شي هم مې خوب هم مې خوراک
چه د خوب او د خوراک مزه شي ورکه
نور له مرګه برابر شي هغه ژواک
غلط وائي چه څوک عمر ورته وائي
هغه عمر چه تيريږي په پخساک
تن سپيره په خاورو ډکه خوله بهتر يم [۱]
چه آخر مې دا خوراک دې دا پوشاک
ځائې لري که ژوندې ځان په زمکه ښخ کړم
چه مې پس له مرګه ځائې دې يو مغاک
ګويا شوې دې هغه چه شدني دې
زه پخوا تر هلاکته يم هلاک [۲]
زړه چه روغ وي ګريوان کله څيراوه شي
له ګريوانه معلوميږي د زړه چاک
تن و ځائې جامه هاله پاکه پکار ده
چه ورومې شي د چا زړه له غيره پاک [۳]
سړې بويه چه درون بيرون ئې يو وي [۴]
نه هغه چه بيرون زر وي درون لاک
له سړيه غرض واړه سړي هوښ دې
که په سر کښې ئې طره وي يا مسواک

دَ دنیا چارے ھمہ وارہ فانی دی
څوک یو دوہ ورځے خوشحال وی څوک غمناک[۵]
پہ ساعت کښے څوک خوشحال کا څوک ملال کا
دا خویونہ لرغونی دی دَ افلاک[۶]
رضا پاسلہ و قضا تہ فراغت شہ
اے رحمانہ څہ بندہ او څہ ئے واک[۷] ق
چہ څہ کاندے وارہ خدائے دے نور څوک نشتہ[۸]
رحمان څہ دے څہ ئے واک څہ ئے ادراک

۱۲۸۸ ۲/۱۰۴ ۸

ماتوی مے خولہ پہ سُوک     خراشی مے زړہ پہ نوک[۹]
کہ نارے وھم کہ ژاړم     پروا نہ لری یو چُوک
راشئ گورئ منصفانو     دَ دلبرو دا سلوک
لکہ گل پہ لاس دَ طفل     زما زړہ کړی شوک پہ شوک[۱۰]
دَ چشمانو پہ غمزہ ئے     ژوبل ژوبل یم ټوک ټوک
پہ توسن دَ فلک سورشی     دستارکیږدی پہ سر ھُوک[۱۱]
ھیڅ اثر وربانڈے نہ کا     دَ درد منو درد او دُوک
اے رحمانہ چہ عاشق شی     ځان دِ ژاړی کوک پہ کوک

۱۲۹۸ ۳/۱۰۵ ۱۰

زړہ مے تراشی دَ بنو پہ تیرہ نوک
ماتوی مے دوہ دیرش غابښ وارہ پہ سُوک

په غمزو دَ تورو سترګو مے ورژنی
ژوبل ژوبل پروکے یم ټوک ټوک
که نارے وهم که خاورے په سر لونم
ناروا شه که پروا لری یو چُوک
لکه ګل چه خوک دَ طفل په لاس ورګا [۱۲]
هسے رنګ ئے زما زړه کړ شوک په شوک
که له ډیره درده غمه مے زړه چوی [۱۳]
ورته هیڅ دی زما درد او زما دُوک
درست جهان ئے په غم ډوب کړ سر تر پایه
که ګدائے دے دَ دے دهر که ملوک [۱۴]
دَ اسمان په نیلی سور لکه افتاب شی
دَ زربفتو دستار کیږدی په سر هُوک
که انصاف لرئ په زړه کښے منصفانو
راشئ ګورئ دَ دلبرو دا سلوک
زه به ولے دَ خپل یار ثنا نه وایم
هر سحر سحر نارے وهی تل غوک [۱۵]
چه عاشق دَ دلبرانو په جمال شی [۱۶]
اے رحمانه ځان دِ ژاړی کوک په کوک

۱۳۰۶ $\frac{۴}{۱۰۶}$ ۸

چه علاج کولے نه شی دَ قسمت څوک
ترو به څه وائ وچاته نصیحت څوک [۱۷]

هغه چاره چه موقوفه په تقدیر وی[۱۸]
کړے ئے نه شی په محنت په مشقت څوک
که نظر کا و قضا و ‌وَ رضا ته[۱۹]
په هیڅا باندے به نه کا ملامت څوک
دَ مطلوب جفا وفا واړه هنر دے
چه پوهیږی دَ حکماؤ په حکمت څوک[۲۰]
غم په ځان دَ چا پیر زو دے بارے څه کا
چه دَ خدائے په کړه کښے نه لری قدرت څوک[۲۱]
دَ ابلیس و ریاضت ته دِ نظر کا
چه غرور کا په طاعت په ریاضت څوک
علت لاړ شی عادت نه ځی له سریه[۲۲]
خدائے دِ نه کاندے په بده چار عادت څوک
زه رحمان دَ بیلتانه سیلاب یم وړے
که لاس راکاندئ دَ خدائے په محبت څوک[۲۳]

۱۳۲۳ $\frac{۵}{۱۰۷}$ ۱۷

په ښائست زما دَ یار نه دی خبر څوک
که خبر شی پرے به نه بږدی دغه در څوک[۲۴]
چه دلے ئے ښه توښه وبله نه شی
څه امید به له چا کاندی په محشر څوک[۲۵] ق
دَ دنیا چارے همه واړه فانی دی
نه ناحقه خاورے لونی په خپل سر څوک[۲۶]

چه قبول شي په درګاه دَ مهرويانو
دَ هغو په څير به نه وي بختور څوک[۲۷]
که زما دَ يار په مخ دَ چا نظر شي
وبه نه کا و بل مخ وته نظر څوک
که هر څو دلبران ډير دي په جهان کښې
بل به نه وي زما يار غوندے دلبر څوک[۲۸]
دَ ديدن طاقت ئے هيڅ ځغه نشته
وافتاب ته کتے نه شي برابر څوک
عاشقي لويه پايه ده عجائبه
دغه کار کولے نه شي هر څوک هر څوک[۲۹]
له هجرانه بله سخته بلا نشته[۳۰]
خدائے دِ نه کاندے زخمي په دا نشتر څوک
مخ به بل خواته هرګز و نه جار باسي
چه شي ستا په خماري سترګو ابتر څوک
وبه نه رسيږي تاته په اسانه
چه په غم ستا خاورے نه کاندي په سر څوک
ارمانونه به کوي زار زار به ژاړي
چه حاصله کونته نه کا په شش در څوک
هومره نوم دَ عاشقۍ ورباندے مه يږده
چه دَ يار په غم کښې نه شي قلندر څوک
هغه نه کوي نظر و سيم و زر ته
چه په لور دَ خپل اشنا کاندي نظر څوک

په ګلونو دَ ګلزار به سیر کاندی
چه خوبو نه کا دَ یار په خاکسترڅوک
بے رهبره یون په لار دَ هرچا ګران دے (۳۱)
دلته بویه چه پیدا کاندی رهبرڅوک
چه بیلتون په سترګو وینی اشنائی کا
دَ رحمان په څیر به نه وی بے هنرڅوک (۳۲)

۱۳۳۷ ۱۱۴ $\frac{۶}{۱۰۸}$

چه مشغول نه وی دَ ترکو په جمال څوک
نور به څه کا په دنیا کښے اشتغال څوک (۳۳)
دَ بل خط په عبارت به څه نظر کا (۳۴)
چه نظر کاندی دَ ستا په خط وخال څوک
نور خوبان دَ ستا ترمخ پورے دی هسے
لکه بل کا دَ افتاب په مخ مشال څوک
چه عنقا شو اهل دل په دا دنیا کښے
ترو به څه وائی وچا وته احوال څوک (۳۵)
که عاشق په عشق کښے ژاړی هیڅ ګرم نه دے
په دا هسے درد کښے نه لری مجال څوک
چه ئے قیل وقال له یاره سره وشی
نور له چا سره به څه کا قیل وقال څوک
چه په اصل کښے خدائے نه دے پیدا کړے (۳۶)
ترو به څه غواړی دَ ستا دَ مخ مثال څوک

(۳۷)
سرخروئي دَ هر سړی په ځګرخون ده
نه هغه چه ئې په سرکاندی سورشال ځوک
(۳۸)
مخ روښی ده دَ هرچا په خپلو اوښیو
په دا نه شي چه ئې مږی په رومال ځوک
ق بې ښه خوی به مخ روښی دَ هیچا نه شي
(۳۹)
که هرځوئې پاکیزه کړی په رومال ځوک
سړے بویه چه په نیک عمل نازیږی
نه چه ناز کا دَ دنیا په ملک ومال ځوک
دَ دنیا چارے فانی دی مرد هغه دے
(۴۰)
چه نظر کا په حرام او په حلال ځوک
هرچه کر کا دَ وربشو غنم غواړی
له خاطره دِ بیرون کا دغه خیال ځوک
(۴۱)
که ئې شعر دَ رحمان مومند ترغوږ شي
غوږ به نه باسی په شعر دَ خوشحال ځوک

۱۳۴۹ $\frac{۷}{۱۰۹}$ ۱۲

ق

که په بخت کم بخته نه وے سوخته دل ځوک
(۴۲)
بې حضور به له تا وے بیلیدل ځوک
ودیدن ته ئې دَ هرچا رضا کیږی
(۴۳)
وے حکم ئې بے تا نه لری بل ځوک
که ئې لاس دَ خدائے په چارو رسید لے
(۴۴)
بے مقصوده به یو دم نه سهیدل ځوک

دا همه زما شامیت دے چه رارسی
ګنه ته او دَ چا زړونه بدول څوک
دَ دیدن په طمع وغلیدم بندی شوم
ګنه زه او دَ هجران خواری زغمل څوک
زه لارغه دَ ستا په مینه کښے شهره یم
نه چه نن ګانده خبریږی پردی خپل څوک (۴۵)
ما دا یو سر دے دَ ستا شکرانه کړے
که دَ سر ماغزه مے خوری په داکبل څوک (۴۶)
په هیڅ رنګ به دِ له مینے منکر نه شم
هر شان قصد چه مے کوی په قتلول څوک
که مے زړه ستا مینے نه وی راپرودلے (۴۷)
په رضا له سره کله تیریدل څوک
که اثر دَ محبت ورسره نه وے
روغ صورت داهومره زړه زهیریدل څوک
که په مینه دَ لیلے مبتلا نه وے
خوار مجنون بیدی بیدیا غرونه ځنګل څوک (۴۸)
مینه هره بلا کا په عاشقانو
ګنه زه غریب رحمان هومره وئیل څوک (۴۹)

۱۳۵۹ ۱۰ $\frac{۱}{۱۱۰}$

زغره واغونده ملا وتړه په جنګ
دغه پسه معرکه کوه دَ ننګ

و بے ننګ و ته دَ ننګ خبرے مه کړه
یا ځان وګڼه په خپلو وینو رنګ
ننګیالے چه یو ځل مخ په هغه لور کا
نور هیڅ نه وینی کوهے وی که ګړنګ[۱]
هیڅ له ځانه له جهانه خبر نه وی
چه چراغ په نظرکښیوځی دَ پتنګ[۲]
دَ بلبلو وچمن وته پرواز وی
دَ اورپښتی و اتش وته غورځنګ[۳]
که جهان و بے هنرو ته فراخ دے
یو لحد دے هنرمندو لره تنګ
هغه ښهر جوهری لره زندان وی[۴]
چه یکسان وی پکښے لعل ومردارسنګ
اسمان زمکه دواړه ژامنے دَ نهنګ دی
څه به زیست کاڅوک په خوله کښے دَ نهنګ
په ښادی ئے هیڅ ښاد مه شه که دانا ئے[۵]
غم ښادی دی دَ دے دهر څنګ په څنګ
که رحمان دَ هغو تلليو وصال غواړی
تیر به نه کا په دا دور کښے یو درنګ

۷ $\frac{1}{111}$ ۱۳۶۶

ل

هیڅ ے نه کړه په دا عمر کښےحاصل
هسے پاتو شوم مردود و ناقابل[۱]

ما لا بوی هم دَ وصال موندلے نہ دے
تش پہ تورہ مے خدائے نوم کړ دَ واصل
هسے ډوب یم دَ ګناه پہ ګردابونو
چہ پہ سترګو مے و نہ لیدہ ساحل
لہ وطنہ مے پہ هر زمان وباسی
راپسے کړه حاکمانو محاصل
کہ بلا دہ کہ جفا دہ کہ وفا دہ
دا همه وارہ پہ ما کړه خدائے نازل
دَ دنیا پہ پلیتۍ مے ځان پلیت کړ
حیف دے دا چہ نہ عالم شوم نہ عامل[2]
تورہ بزیرہ مے شوہ سپینہ زہ حیران یم
چہ رحمان لا نہ بالغ شوم نہ عاقل[3]

۱۳۷۲ $\frac{۲}{۱۱۲}$ ۶

یښے مے پہ سر دے ستا دَ مخ دَ مینے ګل
بیا مے تورلیمہ دی ستا دَ زلفو تور سنبل[4]
تہ چہ آئینہ پہ لاس کښے واخلے حیرانیږے[5]
زہ لہ کومہ راوړم صبوری او تحمل
ګرځے پہ چمن کښے منګل ډکہ پہ ګلونو[6]
خدائے زدہ چہ ګلونہ وړے کہ زړونہ پہ منګل
هم مے مشک لیدلی هم عنبر دی پہ جهان کښے
شابش شابش شابش ستا دَ زلفو پہ کاکل[7]

نه به ستا دَ مخ په شير ګلشن وی چاليدٔ[۸] لے
نه به وی زما په شير اُهونه دَ بلبل
هسے تغافل کا ستا په جور په جفا کښے
خلق حيرانيږی دَ رحمان په تغافل

۱۳۹۵ $\frac{۳}{۱۱۳}$ ۲۳

مه غوږ باسه دَ نا اهلو قيل وقال
پکار نه دے قيل و قال دَ بدسګال
يا به فخر په خپل اهل و په نسب کا[۹]
يا به فخر کا په اٰل و په عيال
يا به ذکر دَ لذت او دَ زينت کا[۱۰]
يا به فکر کا دَ مال او دَ منال
يا به هسے پوچ ګوئ کاندی اُغازه
چه مضمون ئے نه مردار وی نه حلال
دَ دانا او دَ نادان صحبت دے هسے
لکه ګډ شی وبله لعل او کوتی لال
لکه لعل او کوتی لال چه وبله ګډ شی
يا صحبت شی دَ عيسیٰؑ او دَ دجّال[۱۱]
هغه عمر چه تيريږی بے هم جنسه
ترو به څه وی دَ هغه عمر احوال
دَ دنيا چارے فانی دی مرد هغه دے
چه خبر شی په حرام او په حلال[۱۲]

اباسیند لا څه محال لری په تله کښې
دَ دنیا دَ چارو هیڅ نه وی محال [۱۳]
دَ دنیا چارے په مثل خواب وخیال دی
څوک به څه کا اعتماد په خواب وخیال
لکه مال و ملک په خوب کښې ورڅرګند شی [۱۴]
خو چه ویښ شی نه ئے ملک وی نه ئے مال
لکه ځمکه چه دَ اوبو په سر لیده شی
که ئے واخلی هیڅ در نه شی په چنګال [۱۵]
لکه دود چه غرونه غرونه څرګندیږی [۱۶]
تار په تار شی په یوه نزی شمال
لکه یخ چه دَ ساړه په زور شی جمع [۱۷]
هیڅ ئے نه وی دَ افتاب په مخ مجال
په یوه ساعت باران بیا شین اسمان شی
لکه ابر دَ پسرلی دَ پشکال [۱۸] ق
په یوه ساعت ئے سازکا بیا ئے وران کا
خاورے خښتے دی په لاس کښې دَ کلال
دَ مجاز په معشوقو کښې وفا نشته
ما هزار ځله وکښلے دے دا فال [۱۹]
اعتماد ئے په ښادی او په غم مه کړه
نه ئے هجر په قرار دے نه وصال
ګاهے تور کودے په مخ باندے راکیښ شی
ګاهے راکیښ شی په مخ باندے رومال

لکه غوندہ دَ مالکے کیږدے پہ اوبو کښے
زه هم هسے سرزده شوم پہ مثال[۲۰]
چه دَ مرګ وتاخت و باخت وته نظر کړم
صورت وینم دَ میږی پہ خیر پائمال
خراب زړه مے بهی غواړی بلا دا شوه
چه کهی رامعلومیږی کال پہ کال[۲۱]
که وصال مے دَ یار بیاموند هاله سیال یم
کنه اوس خو زه رحمان یم دَ چاسیال[۲۲]

۱۲ $\frac{۴}{۱۱۴}$ ۱۴۰۷

چه له نازه پوشیده لری چشمان خپل
څه به وینی مظلومان او مقتولان خپل[۲۳]
چه بنکنځل راته پہ قهر قهر کاندی
دا لا وګڼی پہ ما باندے احسان خپل
ګفتګوئے پہ اشارت کاندی له نازه[۲۴]
کله اسم دَ چا اخلی پہ زبان خپل
پہ ګریوان باندے چہ تک وهی غوټیه
عاشق کښبیاسی لاسونه پہ ګریوان خپل
خریدارئے له حیرته بے شعور شی
چه دَ حسن رخت څرګند کا پہ دکان خپل
چه خپل مخ پہ ائینه کښے ورڅرګند شی
خود پخپله سرفرو کاندی پہ ځان خپل[۲۵]

چه ئے خوک وعاشقۍ وته هوس کا
(۲۶)
گویا لوبے کا په دین او په ایمان خپل
هیڅ صرفه دَ چا په سر او په مال نه کا
(۲۷)
مالیدلی دی په خپله ظالمان خپل
دا مقام دے دَ هغو رنګه عالمو
(۲۸)
چه هیڅ نه وینی په سترګو سود او زیان خپل ق
مجنون ملک دَ عاشقیه هله بیامونډ
(۲۹)
چه په اور باندے ئے وسهٔ خان ومان خپل
آفرین دَ عاشقانو په همت شه
(۳۰)
چه ورتیر ترسر و مال دی په جانان خپل ق
هیڅ دَ سترګو غړولو خوند ئے نه وی
(۳۱)
چه رحمان په سترګو نه وینی جانان خپل

۱۴۱۴ $\frac{۵}{۱۱۵}$ ۷

(۳۲)
بیلتانه دِ هسے خوار کړ زما دِل
چه له ځانه ئے ویزار کړ زما دِل
(۳۳)
لاس وینسے دَ خلقو نسی دعا غواړی
مینے هسے منت بار کړ زما دِل
عاشقۍ دومره داغونه دی پرے یښی
چه تمام ئے لاله زار کړ زما دِل
بے سببه آزار اخسته بنه نه دی
تا په څه سبب ازار کړ زما دل

چه دَ زلفو په کمند سره دِ راکیښې
په بلا دِ گرفتار کړ زما دِل [۳۴]
ستا چشمانو په کښې هسې مقام ونیو
چه له غیرو دِ ویزار کړ زما دِل [۳۵]
زه رحمان دَ عاشقیه منت بار یم
چه میئن ئے په دلدار کړ زما دِل



# م

چه له مرگه بے پروا یئے په هردم
دغه هسے غم دِ هیر دے په کوم غم [۱]
نور همه واړه غمونه به دِ هیر شی
که یو ځل دربانده درشی دا ماتم [۲]
چه زخمی ئے سبا نه مومی په بیعه
مفت مونده شی نن ساعت هغه مرهم
دَ مرهمو تیاری درلره بویه
څو لا نه ئے دَ اجل په تیغ کرم [۳]
چه دَ تن له سرایه دروے توښه واخله
تردا سرائے په هورته نښته سرائے دویم [۴]
دَ دے هسے لارے تله څه اسان نه دی [۵]
مشکلات دی په هردم په هرقدم
که دِ ویره شی له ظلمه له ستمه
ته هم مه کړه په هیچا باندے ستم

که امید لرے له رحمه له کرمه
ستا هم بویه په هرچا باندے کرم
له هرچا سره چه کړے هغه به موے
دَ هیڅ تخم میوه نه درومی برهم
اجر واړه دَ عمل په اندازه دے
دغه دواړه سره یو دی هم درهم
اوس دَ ستا رضا نیکی کړے که بدی کړے
نیک وبد دِ دواړه کښنوے شی په قلم[6]
خدائے دَ رزق په زَیرمه مه هیروه کلک شه[7]
تر سرړی دَ سړی رزق دے مقدم
که کښے چه په حرص سره به زیات شی[8]
زیات به نه شی دَ یوے ستنے ترسوم
که هزار رنګه تالاش وتدبیر وکړے[9]
دَ قسمت شوی به نه کړے زیات وکم
ډیر هوا او حرص مه کوه خدائے یاد کړه
دے کافی دے دَ عرب او دَ عجم[10]
په تا فرض عبادت دَ خپل څښتن دے
نه لښکرے خزانے ملک و حشم
ټوک روټی یوه شړی درلره بس کا[11]
نور همه واړه اسراف دے مسلّم
له خوراکه غرض قوت لایموت دے
نه چه غوښے غوړی وریژے یا غنم

له پوشاکه غرض خپسر پټول دی
نه اطلس و سقلات تاج و علم[۱۲]
پس له مرګه به دِ هورے هم خانه وی
ق څه پوهیږے که به ماروی یا لړم[۱۳]
که حرص درباندے زورشی مرګ دریاد کړه
دا علاج دے دغه رنځ لره محکم[۱۴]
دَ لحد دَ تاریکۍ علاج به څه کړے
چه دلے وته ویریږے په تورتم[۱۵]
غفلت هیڅ مناسب نه دے دَ سپین ږیریو[۱۶]
خوب روا نه دے په وقت دَ صبحدم
مار چه سوړے لره ورشی ګوره سم شی
ته دَ ګور په غاړه راغلے نه شوے سم[۱۷]
خم قامت دَ دنیا کار کړے عمر واړه[۱۸]
او په دوه رکعته نفل نه شوے خم
ځان پخوا تر هغه وژاړه که مرد یے[۱۹]
چه په تا باندے ژړا کا نورعالم
نورعالم چه په تا ژاړی انصاف وکړه[۲۰]
بے انصافه ته په څه یے خوښ خرم
که زه نه وایم ته خپله سترګے واکړه
کور دِ چوړشه ته چارپائے یے که آدم[۲۱]
که زما نغوږے عبدالرحمان په خدائےکړه
ت بیا دِ هم دَ خدائے په نام وی ستا قسم[۲۲]

اے رحمانه لګه ته چه په خدائے کرم ئے
بل به نه وی په جهان کښے هسے کرم [۲۳]

۱۴۵۱ ۲/۱۱۷ ۷

که مے ونمانځئ ساقی په یوه جام
تردا هورته به نورڅه وی احترام [۲۴]
بس دے ما لره دا فیض د شرابو
چه پرے پریونیځم دا دلق ازرق فام [۲۵]
مے خواری که په عالم کښے بدنامی ده
ما تر پښو دے لاندے کړے ننګ ونام [۲۶]
په میزان کښے یو سرلعل وی بل سر کانی [۲۷]
مساوی ده عاشقی په خاص وعام
عاشقان د سپین رخسار د تورو زلفو
څه پروا لری د کفر و د اسلام [۲۸]
په مجنون باندے قلم راغلے نه دے [۲۹]
که حلال په مخکښے ورشی که حرام
حلال عشق دے په رحمان باندے راغلے
په حلالو کښے مدام وی احترام

۱۴۵۷ ۳/۱۱۸ ۶

هسے زه یم ستا په غم کښے بے ارام [۳۰]
چه به نه وی بل یو ما غوندے بدنام ق

دَ محمود و سلطنت و ته نظر کړه
چه غلام کړ خپلے مینے دَ غلام
دَ نیکانو مدّعا خو نیک عمل دے
ساعت نه ګوری که صبح وی که شام
چه دَ زړه حضوری نه وی په نمانځه کښے
پکار نه دے مقتدی وی که امام[۳۱]
چه مجنون غوندے په مینه کښے صادق وی
رحمان وایم په هغه باندے سلام[۳۲]
هم نغمے کاندی هم رقص کا هم خاندی
دَ رحمان په شعر ترکے دَ باکرام

۱۴۷۱ $\frac{۴}{۱۱۹}$ ۱۴

په لیمه کښے مے مدام
ګرځی عکس دَ ګلفام
تور دَ سترګو مے ګلګون شوه
په ارزو دَ ګل اندام[۳۳]
بے دَ سترګو له خونابه
نه باده لرم نه جام
په طلب دَ دل ارام کښے
ما و نه لیده ارام
زنخدان ئے خدائے کوهے کړ
ورپریوځم په هر ګام
که ئے خال غلام دَ مخ دے
زه غلام یم دَ غلام[۳۴]
که په عشق کښے ناکام ډیر دے
دا ناکام دے زما کام
خوښ یم زه په عاشقئ کښے
که نیک نام یم که بدنام[۳۵]
په یاری کښے مے قبول دے
ملامت دَ خاص و عام
دَ دعا په عوض غواړم
دَ خپل یار دَ خولے دشنام

تر بنکنځلو به ئے ځار کړم — دغه خپل دعا سلام[۳۶]
تلخ گفتار ئے راته خوږ وی[۳۷] — تر کشمش و تر بادام
هم هغه مے مسیحا دے — چه ئے راکاندی پیغام
ځ دَ یار ماه تمام دے — رحمان ولیده تمام

۶ ۵/۱۲۰ ۱۴۷۷

دَ هجران له ډیره غمه ولے نه مرم
له دے هسے رنګ ماتمه ولے نه مرم
چه یو یار له بله یاره لرے باسی[۳۸]
دَ دے دور له ستمه ولے نه مرم
چه هرهر سحر زما په ژړا خاندی[۳۹]
له دے هسے صبحدمه ولے نه مرم
یار چه یار په سترګو نه وینی خو مرګ دے
تر و زه بے خپله صنمه ولے نه مرم[۴۰]
چه په لږه ګرمئ شا کاندی وګل ته
له دے بے وفا شبنمه ولے نه مرم[۴۱]
چه دَ مرګ خوارئ په خوا لرم رحمانه
لا پخوا تر دغه دمه ولے نه مرم[۴۲]

۱۰ ۶/۱۲۱ ۱۴۸۷

که په سر دَ هغه یار دَ لاسه سنګ خورم
خدائے دِ نه کا چه به بله خواته څنګ خورم[۴۳]

عاشقي او ننګ و نام دی وبله لرے
څو به عمر واړه غم دَ نام وننګ خورم
خدائے وما وته شیرین تر نیشکر کړه
که دَ یار له لاسه غشے دَ خدنګ خورم (۴۴)

دَ اشنا دَ بیلتانه په کاروزار کښے
همیشه په تندی توره دَ فیرنګ خورم (۴۵)

نوکری دَ معشوقو کوم په عشق کښے
مهینے نه دَ بهلول نه دَ اورنګ خورم

شین لوګے مے په سرچتر دو نهه تخت دَے (۴۶)
ګرد غبار دَ خپل دولت لکه ملنګ خورم

هم په دا چه له خودیه شم بے خوده
دَ هجران په غم کښے لپے لپے بنګ خورم (۴۷)

لکه څوک چه نعمتونه دَ دنیا خوری
زه دَ یار دَ جفا زهر په دا رنګ خورم (۴۸)

واړه زهر شی زما تر ستونی دروم
بے له یاره که همه لاچی لونګ خورم (۴۹)

زه رحمان به څو ژوندے په جهان ګرځم
چه په بلو لمبو څرخ لکه پتنګ خورم (۵۰)

۱۴۹۶ $\frac{۷}{۱۲۲}$ ۹

صبح و شام مے لاس نیولی وی دُعا کړم
خواست له خدایه ستا دَ مهر دَ وفا کړم (۵۱)

هیڅ دروغ رشتیا مے نه زده که باور کړے
ستا دَ پاره هم دروغ کړم هم رښتیا کړم
واړه ته یئے خندول که ژړول کړے
زه په خپله نه خندا کړم نه ژړا کړم
که ته نه یئے راته وایه بارے څوک دے
زه دا هسے رنګ سرتور پښے پېل چا کړم (۵۲)
خوب خندا دَ بیلتانه په زمکه نشته (۵۳)
څه ارام به په دا دشتِ کربلا کړم
هره ورځ چه مے تیریږی ستا په غم کښے
زه په هره ورځ پوهیږم چه غزا کړم
یو ویښته مے دَ صورت کوږ شوے نه دے
هسے رنګ دِ پټ پنهم په زړه ادا کړم (۵۴)
زړه که یو وی خو وتا دے ما در کړے
مګر نورو لره نور زړونه پیدا کړم (۵۵)
چه مے وا غوست سرو پائے دَ عاشقیه
زه رحمان دے سرو پائے بے سرو پا کړم

۸/۱۲۳ ۱۵۰۱

زه دا هسے دیوانه و مجنون چا کړم (۵۶)
له رواجه له رسومه بیرون چا کړم
نه پوهیږم چه دا چارے په ما څوک کړه
لیونے دَ خپل نګاه په افسون چا کړم

کومے سترګے کوم بانه کومه غمزه ده
ډوب شهید غوندے په خاک او په خون چاکړم
توان توفیق دَ فتنو هیڅ راځخه نشته
په فتنو دَ تورو سترګو مفتون چاکړم (۵۷)
رحمان هیڅ له خپله ځانه خبر نه یم
چه دا هسے رنګ محزون و زبون چاکړم

۱۵۰۸ ‏$\frac{۹}{۱۲۴}$‏ ۷

ق

سرمے پکار نه دے چه ئے ستا ترسر قربان کړم
زر راځخه نشته چه ئے ستا په پښو ډیران کړم (۵۹)
کار دَ عاشقیه اول ډیر راته اسان وو
اوس هسے حیران یم چه دا کار به په څه شان کړم
ډیرو خلقو لاف ستا دَ مینے دی وهلے
هیڅوک هسے مه شه لکه زه چه ئے په ځان کړم (۶۰)
نه لری مرهم دَ عاشق زخم بے تسلیمه
دا هسے درد نه دے چه ئے دفع په درمان کړم (۶۱)
نه کا هیڅ دښمن په دښمنانو هسے چارے
ستا په عاشقی کښے لکه زه چه ئے په ځان کړم (۶۲)
ولے کافر نه وی مسلمان به شی که خدائے کا
هر چا ته چه حسن لطافت دَ ستا بیان کړم
وراندے دی که وروستو آخر هسے معلومیږی (۶۳)
ستا له بے رحمی به زه رحمان لاس په ګریوان کړم

۱۵۱۷ ۹ ۱۰/۱۲۵

دَ ستا درد به په هزار درمان ورنه کړم (۶۴)
دانسته به دغه سود په زیان ورنه کړم
که څوک راکاندی دنیا اوعقبیٰ دواړه (۶۵)
عاشقي به دِ په این و آن ورنه کړم
که مې چرې لاس دَستا په بوسه برشي
دا نعمت به دَجنت په خوان ورنه کړم (۶۶)
څو مې تیغ په پهلو نه دے بلوخیدلے (۶۷)
ستا پهلو به و رقیب اسان ورنه کړم
که یو ځله مې ستا زلفے په لاس کښیوځي
یو ویښته به دِ په درست جهان ورنه کړم
څو نه وینم ستا سترګے که ئے خدائے کا
عزرائیل لره به هومره ځان ورنه کړم
معشوقے دَ عاشقانو دین ایمان دئ (۶۸)
زه به چا لره خپل دین ایمان ورنه کړم
ستا تر زلفو پورے نورے زلفے څه دئ (۶۹)
په خاشاک به دَچمن ریحان ورنه کړم
په رحمان دَهغو لبو مې حرام دئ (۷۰)
څو دَ خپلو وینو جام تاوان ورنه کړم

۷ ۱۱/۱۲۶ ۱۵۲۴

دا یو څه رنګه ژوندون دے نه پوهیږم
خواب دے خیال دے که افسون دے نه پوهیږم (۷۱)
جام دَ میو چه دَ ځان په وینو مومم (۷۲)
ترو زلال که جګرخون دے نه پوهیږم
دَ پتنګ او دَ بلبل ترمیان حیران یم (۷۳)
مخ دِ اور دے که ګلګون دے نه پوهیږم
په شانه سره دِ تار دَ زلفو بیل شه
که غوځ شوے نارون دے نه پوهیږم (۷۴)
عشق په هسے رنګ مقام باندے قائم کړم (۷۵)
چه وصال دے که بیلتون دے نه پوهیږم
دَ خپل زړه وعلامت وته حیران یم (۷۶)
چه موسیٰ دے که قارون دے نه پوهیږم
دَ رحمان ځهره ئے زیړه ترکونګو کړه (۷۷)
خدائے زده عشق دے که طاعون دے نه پوهیږم

۷ ۱۲/۱۲۷ ۱۵۳۱

بیا دِ نوی شراب څښلی دی پوهیږم
په رخسار دِ ګل کرلی دی پوهیږم (۷۸)
که هزار ځله لاس سره کړے په نکریځو
تا زما په وینو وللی دی پوهیږم

معرکه زما دَ مرګ نه دهٔ نور څه دهٔ
رقیبان چه تا بللی دِی پوهیږم (۷۹)
څه حاجت دے چه دِ خط په مُلا لولم
چه زما په باب دِ کښلی دی پوهیږم (۸۰)
چه رقیب او تا غوږونه وبله وروړه (۸۱)
ما هغه ساعت ژړلی دی پوهیږم
ته خپل جور و جفا څه وائے وما ته
ما همه واړه لیدلی دی پوهیږم (۸۲)
رقیبان ځکه تیرے په رحمان کاندی (۸۳)
تا په خوا پورے نیولی دی پوهیږم

۱۵۳۹ $\frac{۱۳}{۱۲۸}$ ۸

په یوه غمزه دَ سترګو ئے فنا شوم
سر تر پا یه بے بنیاده بے بقا شوم
ما دَ یار له غمه دم وهلے نه دے
که مے دم وهلے نه دے هم رسوا شوم
تنهائی مے یوه نومنه شوه په عشق کښے (۸۴)
هاله څاڅکے دَ شبنم وم اوس دریا شوم
زهٔ دَ یار وخ ته ګورم یار و ما ته
چه داخل په تماشا شوم تماشا شوم
په هجران کښے ئے ګدائے وم کند په غاړه
په وصال کښے ئے بیاخان او امرا شوم

په خپل کلی په خپل کور کښې مے غربت دے
په صدف کښې یتیم دُرغوندے یکتا شوم[85]
مستوری راځخه یوړه مستو سترګو
رحمان ځکه په وګړی کښې رسوا شوم
بادشاهی دَ ګدایانو په دُعا شی
زه رحمان ځکه بادشاه شوم چه ګدا شوم

۷ ۱۴/۱۲۹ ۱۵۴۶

تر هغه حده په هورته بد سړے شوم[85(و)]
چه دَ درست جهان په سترګو کښې اغزے شوم
دنیا واړه وبله زیست و روزګار کاندی
خو یو زه په دغه بار کښې کوږ لړګے شوم[86]
تمامی جهان لمن راځخه نغاړی
سپین زړوکی مے اغوستی تور کودے شوم[87]
هیڅ حاجت دَ هنر نشته و نصیب ته
غزا وشوه که مومند یا داوزے شوم[88]
دَ نوح زوئے هم یو دَ نیک نیکه نمسے وو
ګنهه زه هم یو دَ نیک نیکه نمسے شوم[89]
کل وسواس له احتیاطه پیدا کیږی
زه له ډیرے هوښیاریه لیونے شوم[90]
اوس عطا دَ ادمیت را بانده وشوه
چه رحمان دَ هغه یار دَ کوځے سپے شوم

۱۳ ۱۵/۱۳۰ ۱۵۵۹

په ښه خوی له بد خواهانو بے پروا یم
په نرمۍ لکه اوبه دَ اور سزا یم
دَ خپل ځان له خاکساریه سربلندشوم
لکه ګرد هسے شهسوار دَ هر هوا یم (۹۱)
کمینۍ هسے کامل کړم چه زه دروم
لکه زمکه درست جهان راسره بیا یم (۹۲)
و هرچاته په خپل شکل ځرګندیږم
ائینه غوندے بے رویه بے ریا یم
دراز عمر ے حاصل شه له راستیه
لکه سرو مدام سبزه تازه پا یم (۹۳)
هم په دا سپینو جامو چه معلومیږم
لکه ابر هم ګوهر یم هم دریا یم
قناعت ے ترخرقے لاندے اطلس دے
پټ دَ درست جهان بادشاه ظاهر ګدا یم
دَ غنچے په څیر په سل ژبے خاموش یم (۹۴)
لکه بوئ هسے په پټه خوله ګویا یم
په ژړا ے دَ خپل یار دیدن حاصل کړ
دَ شبنم په څیر دَ ګل سره یکتا یم (۹۵)
ما چه خپل معراج دَ دار دَ پاسه ولید
دَ منصور په څیر رښتنے په وینا یم (۹۶)

ق
ق
ق

ق د منصور او زما هومره تفاوت دے
چه نارے ئے کړے په جهر زه خفیا یم (۹۷)
ق له عیانه هیڅ حاجت د بیان نشته
زه رحمان په خوله څه وایمه چه وایم (۹۸)
که چا لار د عاشقئ وی ورکه کړے
زه رحمان د ګمراهانو رهنما یم

۱۵۷۱ ۱۶/۱۳۱ ۱۲

زه له دے جهانه تلونے په شتاب یم
لکه پانړه د خزان پسرله په رکاب یم
که هزار ابادانئ کړم په جهان کښے (۹۹)
غرض دا چه نهایت خانه خراب یم
که مے اصل د حیاتو له اوبو دے (۱۰۰)
بیا خو دا چه د اوبو په سرحباب یم
دا جهان قصاب خانه کړه خدائے وما ته
پائے بسته ولاړ په غولی د قصاب یم
چه د خدائے له معرفته خبر نه شوم (۱۰۱)
معلومیږی چه یا دیو یم یا دواب یم
که صورت مے د سړی دے بے ئے څه کړم (۱۰۲)
په معنیٰ کښے د چارپایو په حساب یم
لکه بت چه په رڼو سترګو وودہ وی
هسے زه په بیداری کښے ویدے خواب یم

په طاعت په عبادت مے ذره یخ نه کړ
همیشه دَ معصیت په اور کباب یم
سر دَ خدائے وعبادت ته وبنکے نه شم
مدام ډوب دَ گناهونو په گرداب یم
چه وخپلو گناهونو ته نظر کړم
سزاوار دَ هر عذاب دَ هر عتاب یم (۱۰۳)
لکه څوک چه په خرهٔ سوروی مخ ئے توروی
زه هم هسے ترخپل خدائے پورے بے آب یم (۱۰۴)
غزا وشوه که گفتار لرم په ژبه
زه رحمان چه کردار نه لرم کذّاب یم

۱۵۸۵ ۱۷/۱۳۲ ۱۴

که هزار ځله نژدے دَ زړه په یاد یم
زه چه یار په سترګو نه وینم نابناد یم
که یارسل ځله وعده دَ وصال وکا
زه له ډیرے تلوسے بے اعتقاد یم
په جفا او په وفائے لارغه نه شی
پرحذر دَ نازپرور په قرارداد یم (۱۰۵)
دَ بے نیازو په نیازځه امید دَ کړو دے
زه پرون سلطان خسرو وم نن فرهاد یم
که همه عمرے یار په غیږ کښے پروت وی
زه همه عمر له هجره په فریاد یم

یو زمان مے دَ زړه مراد موندلے نه دے (۱۰۶)
پیدا کړے خدائے په اصل کښے نامرادیم
دَ وصال په یوه کال مګر برپائے شم
دَ هفتے په هجر هسے بے بنیاد یم
په وصال کښے مے دَ هجر طمع نه وه
حق حیران متفکر په دا فساد یم (۱۰۷)
چه ئے نوره نتیجه نشته بے غمه
حق حیران دَ عاشقۍ په دغه داد یم (۱۰۸)
که دَ یار له لاسه اور راباندے بل وی (۱۰۹)
لکه شمع مستقیم په خپل اِستاد یم
بے مئینه قراری راباندے زوړ وی (۱۱۰)
شپه او ورځ په حرکت کښے لکه باد یم
بے له عشقه چه مے پړے شه دَ پوزے (۱۱۱)
ګنه نور له جملګی قیده ازاد یم
که مے پیری که مے پلوری چاره نشته (۱۱۲)
زه رحمان دَ بنائسته و خانه زاد یم
دا خواب رحمان هغه کا چه مرزا وے
"زه خرکند دَ محبت په بنه بنیاد یم" (۱۱۳) ق

۱۵۹۵ ۱۰ $\frac{۱۸}{۱۳۳}$

که مے خوک په فقیری شمیری فقیریم
که مے خوک په امیری شمیری امیریم (۱۱۴)

دَ دلبرو صدقے لرہ ئے غواړم
هسے نه چه په دنیا پسے زهیریم
دَ خرقے خدمت مشکل دے اوکه نه وی (۱۱۵)
زه هردم ودغه چارے وته خیریم
هم پند اخلم هم پند وایم وهرچاته
زه دَ ځینو یم مرید دَ ځینو پیریم (۱۱۶)
په هجران کښے دَ یار خیال راسره مل دے
په زندان کښے دَ یوسف سره اسیریم
په خندا کښے مے ژړا ده لکه شمع
له عالمه پټ پنهم دَ ځان په ویریم (۱۱۷)
ازادی تر دا په هورته نوره څه ده
چه بندی دَ یار دَ زلفو په زنځیریم (۱۱۸)
خوشحالی تر دا په هورته بله کومه
چه مدام په خپل اشنا پسے زهیریم (۱۱۹)
چه همیش په غوږ نعرے دَ هجران اورم
رحمان ځکه دَ خپل یار وځ ته ځیریم
خوشحالا او دولتا مے غلامان دی
زه رحمان په پښتو ژبه عالمګیریم (۱۲۰)

۱۶۰۴ $\frac{۱۹}{۱۳۱۴}$ ۹

زه دَ یار په درد وغم کښے غرقاب خوښ یم
په دا درد کښے بے طاقته بے تاب خوښ یم

که ډوبیږم په اوبو یا په اور سوزم
دَ سرو شونډو په اتش او په اب خوښ یم[۱۲۱]
چه دَ یار دَ خط وخال ښیې پکښې وی[۱۲۲]
زوړند سر په موتاله دَ کتاب خوښ یم
تر دا پوچه گفتگویه چه ئے اورم[۱۲۳]
په نغمه په ترانه دَ رباب خوښ یم
دَ ریا تر ناقبوله عبادته
دَ ساقی په میو مست و خراب خوښ یم
چه نه علم نه تسبیح نه تلاوت وی[۱۲۴]
له دے هسے بیداریه په خواب خوښ یم
خاموشی که هرڅو لویه مرتبه ده
زه له یار سره په سوال وځواب خوښ یم
دَ طوبیٰ دَ ونے سیورے مے خوښ نه دے
ستا دَ مخ په لمبو سوے کباب خوښ یم
دَ یار ډیرے غمخوارۍ یم عاجز کړے[۱۲۵]
رحمان ځکه په خوردن دَ شراب خوښ یم

۱۸ ۲۰/۱۳۵ ۱۶۲۲

زه دَ یار په درد و غم کښې شادمان یم[۱۲۶]
لکه گل دَ پریشانۍ په وقت خندان یم
دَ یار غم زما بنادی ده سرتر پایه
ق لکه شمع په سوختن سره روښان یم[۱۲۷]

زه چه ورک په کمینۍ لکه ذره شوم
دَ خورشید په څیر څرګند په درست جهان یم	ق

دَ طلب سرګردانی زما بزرګی شوه
دَ تمام جهان په سر لکه اسمان یم	ق

له راستیه شاه ګدائے رابانده یو شو
مروت دَ هیچا نه کړمه میزان یم	ق

ته زما وبیکسۍ ته نظر مه کړه
خدائے ساتلے لکه ګنج په بیابان یم

لکه ونه دَ ځنګل په میوه پوره
په ویرانه ویرانۍ کښے اباد ان یم

یو وینسته مے دَ صورت بے عشقه نه دے
څوکیدار په هرنفس دَ خپل کاروان یم

دَ وصال مرغه دَ اوښیو دانو راکړ
لکه لعل و دُر په غاړه دَ خوبان یم (۱۲۸)

دَ کاملے عقیدے له برکته
دَ دوځے په غاړه ناست شاه جهان یم (۱۲۹)

روښنائی مے په طلب کښے شوه حاصله (۱۳۰)
شپه او ورځ لکه افتاب په لار روان یم

دَ اشنا دَ ورېدو زلفو صفت څو کړم
پلے سر په لویه لار دَ هندوستان یم (۱۳۱)

بے مینه مے هیڅ حال دَ صورت نشته
لکه بے مال او متاعه تش دکان یم (۱۳۲)

دَ هوس بلبل ویسا را باندے نه کا
په مفلسه جامه ونه دَ خزان یم (۱۳۳)
و یارانو وته خاک تر تلی لاندے
دَ دے نورجهان په سرلکه اسمان یم
چه دَ یار په مینه سرومال ښندمه (۱۳۴)
خلقو واورئ هغه زه عبدالرحمان یم
خپل جانان مے هسے رنګه وی په زړه کښے
نه پوهیږم چه رحمان یم که جانان یم (۱۳۵)
په هردم کښے نوے نوے تماشا کا
زه رحمان دَ خدائے وکړو وته حیران یم

۱۵ $\frac{۲۱}{۱۳۶}$ ۱۶۳۷

ژوبل ژوبل دَ ترکانو په نګاه یم
تر دا لا په دا غوښیږم چه پناه یم (۱۳۶)
چه یوسفؑ غوندے هزار کښے پراته دی
بندیوان دَ هغه سیم ذقن په چاه یم (۱۳۷)
چه ئے قد و قامت نه وینم په سترګو
عندلیب په سر دَ سروے دَ خپل آه یم (۱۳۸)
دَ سپین مخ دَ تورو زلفو له رغبته (۱۳۹)
منت بار دَ هر سفید دَ هر سیاه یم
لکه څوک چه په خرهٔ سوروی مخ ئے توروی
زه هم هسے ترخپل خدائے پورے روسیاه یم (۱۴۰)

دَ رقیب خبرے ورم دَ یار دَ پاره
دُعا کوئے ھم دَ نیک خواه ھم دَ بد خواه یم (۱۴۱)
بے له عشقه که مے عیب که مے هنر دے
نه خبر په عبادت نه په ګناه یم
بناخ دَ زلفوئے په خپله خدائے راتیټ کړ (۱۴۲)
ګنه زه دَ یار ترقد پورے کوتاه یم
ځان هرګوره نا اګاه راخرګندیږی (۱۴۳)
له هغو ورځے راهسے چه اګاه یم
بے صبری دَ یار په وصل کښے مهجور کړم
دَ پسرلی په مرغزار کښے وچ ګیاه یم (۱۴۴)
له اوله تنتر ووهم بیا اه کړم
په نارو نارو خروس دَ صبحګاه یم (۱۴۵)
په جذبو جذبوئے راکښوم وځان ته
هغه یار مے کهربا دے زه ئے کاه یم (۱۴۶)
لکه بار دَ ونے پوخ شی ځنے ریږی
زه هم هسے بار ترېے سربراه یم
اوس مے ځائے په دا جهان کښے پاتو نه شه
خوځیدلے تر چهل و تر پنجاه یم (۱۴۷)
دَ رقیب علاج اسان دے بلا دا شوه
زه رحمان له خپله یاره ناویساه یم

۱۶۴۹ $\frac{۲۲}{۱۳۷}$ ۱۲

زه یو دم دَ ستاله غمه بے غم نه یم
بے غم ستاله ذکره فکره یو دم نه یم
هر زیارت لره چه درومم مراد مے ته ئے
څه زائر دَ بت خانے دَ حرم نه یم (۱۴۸)
ستا دَ در په تورو خاورو باندے خوښ یم
بے تا خوښ په تماشا دَ ارم نه یم
چه دَ ستا په تماشا یم خبر شوے
نور خبر په تماشا دَ عالم نه یم
بے دَ ستا له زیبا مخه ویل مخ ته
منتظر دَ یوے ستنے تر سوم نه یم
که دَ ستا دَ ښکلی مخ عاشقان ډیر دی
زه په واړو کښے اول یم دویم نه یم
که له غمه دِ ونه مرم هاله وایه
چه یا دیو یم یا دواب یم آدم نه یم (۱۴۹)
زړه مے ستا په غمزه غوڅ دے غزا وشوه
که په لاسو په پښو روغ یم کړم نه یم (۱۵۰)
سم قامت لکه الف یم په راستئ کښے
لکه غشے څه فساد لره سم نه یم
خم دَ زلفو یم محراب دَ کږو ورو څو
څه دَ مار او دَ لړم په څیر خم نه یم (۱۵۱)

کہ مے کم و بیش لہ لاسہ واقع کیږی
یم سړے شکم لرم بے شکم نہ یم
زہ رحمان دَ بیلتانہ لہ لاسہ ژاړم
واقعہ دہ ډیرہ سختہ هیڅ گرم نہ یم[۱۵۴]

## ن

۱۶۶۳ $\frac{1}{138}$ ۱۴

هسے تیز دروهی دوران
گویا برق دے دا جهان[۱]

دَ اسیا پہ شیر گردش کا
پہ زمین باندے اسمان

ککری دی دَ سړیو
چہ وړیږی تردا میان

پیدا کیږی فنا کیږی
نہ ئے سرشتہ نہ سامان

نہ ئے سرشتہ نہ سامان شتہ[۲]
نہ ئے حد شتہ نہ پایان

ځنے ډول وهی بنادی کا
ځنے ویر کا دَ خپل ځان[۳]

ځنے شمع غوندے ژاړی
ځنے گل غوندے خندان

کہ ئے گورے یو بازار دے
کہ ئے گورے یو زندان

کہ ئے گورے یو گلشن دے[۴]
کہ ئے گورے یو زندان

کہ ئے گورے یو گلزار دے[۵]
کہ ئے گورے یو بیابان

یوہ هسے تماشا دہ
چہ ئے هیڅ نہ شی بیان[۶]

کیفیت ئے موندہ نہ شی
پہ دلیل او پہ برهان

چہ ئے کومہ خوا رفتن دے
یا ئے چرتہ دے مکان

خدائے عالم دے پہ دا علم
هیڅ خبر نہ دے رحمان

۱۶۸۴ ۲/۱۳۹ ۲۱

خان سلطان دَ دے جهان | اخر دروې خوار حیران
دَ قضا په خَیل تړلی | په مثال دَ بندیوان
شیرین ځان ورشخه دروې | نه ئے زورشی نه ئےتوان[۷]
که بنندی مال وملک واړه | هیڅ رنګ نه مومی امان
نه ئے مل نه ئے حامی وی | درد ئے وریشی په ځان
درمانده ورته ولاړ وی | وزیران او وکیلا ن
هیڅ دارو ئے کړے نه شی[۸] | کوز کوز ګوری حکیمان
بادشاهی ئے پاتو کیږی | زړه ئے چوی په ډیرارمان[۹]
چه ئے روح له تنه بیل شی | نور پر ژاړی فرزندان
یو ساعت وربانده ژاړی | اخر صبر کا خواران
بیا ئے غسل لره واخلی | په تخته باندے عریان
په جامو ئے هوسیږی | مرده شوے وغاسلان[۱۰]
چه له قبره ئے بازګښت کا | مال ئے یوځی میراثیان[۱۱]
په مسند ئے دعوی کاندی | هم دوستان هم دښمنان
سهیلیه ئے تالا کا[۱۲] | هغه خپل مصاحبان
نام نښان ئے هسے ورک شی | لکه عینِ بے نښان
نه ئے نقش پاتو کیږی | نه ئے اسم په زبان
دا دنیا اب روان ده | نه شی نقش په اب روان
که هزار ابادانی کا[۱۳] | نهایت خانه ویران
لکه باد هسے به تیرشی[۱۴] | هغه دور دَ دوران
دا بیان دور و دراز وو | کوتاه قطع کړ رحمان

۱٦۹۰ $\frac{۳}{۱۴۰}$ ٦

چرته دَ یار شونډے چرته غم دَ دل وجان
چرته کوتی لال او چرته لعل دَ بدخشان
پاک و منزّه دے عشق دَ نفس له خاصیته
چرته چاه دَ کیډے چرته چاه زنخدان[۱۵]
لږ تفاوت نه دے دَ رندی دَ زاهد یه
چرته ځلمی جونه چرته کونډے یتیمان
واړه بے وقوف دی چه څوک دین په دنیا پلوری
چرته پینځه ورځے چرته عمر جاودان
ځار شه دَ هوا وحرص خیال تر قناعته
چرته ملک دَ مصر چرته دیهه غلامان[۱٦]
نه شی دَ ملنګو دَ خانانو سره کلی[۱۷]
چرته عزیز خان چرته ملنګ عبد الرحمان

۱٦۹۹ $\frac{۴}{۱۴۱}$ ۹

فراموش مے دے دَ ستا په مینه ځان
ځان لا څه دے بلکه عیش جاودان
لکه زه چه ستا دَ در په خاورو خوښ یم
هومره عیش طرب نه لری شاهان[۱۸]
لکه زه چه ستا دَ غم پنډونه اخلم
هومره پنډ اخستے نه شی پالوان

هسے بے سرو سامان یم ستا پہ عشق کښې (۱۹)
چه اګاه نه یم په سراو پہ سامان
هسې بے شرابو مست یم ستا په مینه
چه خبر نه یم په زمکه په اسمان
دا به څرنګ شی چه ته دَ کال وعده کړے (۲۰)
په ما نه تیریږی بے تا یو زمان
تمامی عمر دَ ستا په طلب ورک یم (۲۱)
لټوم دِ په هر ښهر په بیابان
طفلان هم پہ یو دوه کاله سخندان شی
رحمان زوړ شه ولے نه شه سخندان (۲۲) ق
چه له دره ئے شړے ګناه ئے کوم دے
ډیر دے ستا پہ مخ میئں عبدالرحمان (۲۳)

۱۲ ۵/۱۴۲ ۱۷۱۱

څو به شمیرم درد غمونه دَ هجران
هومره ډیر شو لکه شګے د ښیابان (۲۴)
دَ سړی دَ دښمنیه توان مے نه وو
خدائے راپیښه دښمنی کړه دَ اسمان (۲۵)
لکه څوک چه دَ اوښ بار په میږی کیږدی
هسے زه یم ترخسل غم پورے ناتوان (۲۶)
لکه غم چه دَ په ما وریږی
یاد به نه وی د چا هسے رنګ باران (۲۷)

زما غم به دَ هغه سرې په شمار وی
چه شمیرلی ئے ویښته وی دَ خپل ځان
که څوک وائی حال دِ څه دے په هجران کښے
په خاطر دِ تصور کا د وزخیا ن
نا قرار زړه مے دَ یار په هوا والوت
تش صورت مے په ځائے پاتو شه پریشان
دَ یار یاد مے زړه په غشو سترګو یو وړ
لکه بت په دیوال کښلے یم حیران[۲۸]
ما وے زړه دَ مومن عرش دے خبر نه وم
چه به عشق زما دا عرش کاندی ویران[۲۹]
عاشقی ئے تر هغه حده بے هوش کړم
چه نه هوش لرم نه سر و نه سامان[۳۰]
لور دَ لوره دَ تهمت په غوندو ویشت شم
ملامت راباندے وائی درست جهان
چه دا حال درباندے نه وی ورغلے[۳۲]
په ویل به څه کړو هیڅوک دَ رحمان

۱۷۱۶ $\frac{۶}{۱۴۳}$ ۵

ورکه عاشقی شه هم ئے نوم هم ئے نښان
زه ئے هسے خوار کړم لکه خاورے دَ بیابان[۳۳]
زه دَ عشق په کار کښے تیر تر سر یم بارے څه کړم
دریغه که په سر مے دا مشکل کا خدائے اسان[۳۴]

کښیوتم دَ عشق په آدم خوروکردابو نو
نه په وړاندے تلے شم نه په بیرته ګریزان
رنځ دَعاشقیه چه ظاهر کړم وطبیب ته
هیڅ وئیلے نه شی طبیبان وحکیمان
راشه عاشقی مه کړه رحمانه اوکه نه وی
تل به په اورناست ئے که بادشاه ئے دَجهان(۳۵)

۱۷۲۸ $\frac{۷}{۱۴۴}$ ۱۲

که تر ولبنه(۳۶) بادشاهان اوسلطانان
هیڅ نیمګړے په چا نه شه دا جهان
که هزار هزار فنا شی په هر دم کښے
بیا پیدا شی په هر دم کښے هزاران
دَ رفتن و آمدن حساب ئے نشته
لکه بحر چه بهیرږی بے پایان(۳۷)
یو دَ بل په غم نه نرم وی نه ګرم(۳۸)
هم هغه زده چه ئے وریشی په ځان
پیغمبرٌ غوندے صاحب تر دنیا تیر شه
دا دنیا ئے ورانه نه شوه په هجران
چه دا هسے عالم لاندے شه ترخاورو
دَچا یاد دی ما او تا غوندے سکان
که غلبیل کړم دَ تماے دنیا خاورے
بیا به نه مومم دارا او شاه جهان(۳۹)

بوئ دَ نام او دَ نښان ئے پاتو نہ شہ
چہ دعوے ئے کړے دَ نام او دَ نښان[۱۴۰]
کہ دروغ وایم تہ ورشہ نظر وکړہ
دَ خپل پلار او دَ نیکہ پہ گورستان
چہ ئے تہ پہ دواړو سترگو کښلولے
گورہ څہ شوے هغہ خولے هغہ لبان
چہ مدام ئے پہ قربان قربان بللے
اوس دِ غږ درباندے وکا چہ قربان
دَ رحمان و سوزان شعر تہ حیران یم[۱۴۱]
چہ ئے اور بل شوے نہ دے پہ دیوان

۱۷۵۱ $\frac{۸}{۱۴۵}$ ۲۳

تہ چہ هسے کاہ ئے ترش کاہ ئے خندان[۱۴۲]
لہ عاشق سرہ کینہ کړے کہ احسان
لہ احوالہ دِ چا هیڅ نہ زدہ چہ څہ کړے
کلہ جوَر کلہ غوَر کړے عیان[۱۴۳]
رنځ راحت دَ عاشقانو واړہ تہ ئے
دا دروغ دی چہ وصال دے یا هجران
هغہ شونډے چہ خوږے دی ترشکرو
لہ بښکنځلو ئے عار نہ کا عاشقان
رجوعات دَ بنائستہ ؤ چاتہ نہ وی[۱۴۴]
هرگز نہ وی سرکوزی دَ سرو شان

دغه هسے رنګ ښائست لکه چه ستا دے
نښته دا رنګه ښائست دَ هيڅ انسان[45]
قصد تر هسے حده ولے کړے ګل رخے[46]
چه له ډيره نازه وژنے عاشقان
دَ سرې صورت څه روغ دکاني نه دے
نښته کاني څخه ستا دَ جوَر توان[47]
و هر کار وته چه ستا قوت رسيږی[48]
هلته نه رسی قوت دَ درست جهان
ستا له جوره زهره نه لری چه آه کا
که کشور دَ عاشقانو شي ويران
خوار حيران لکه عاشق دے ستا له دره
خدائے دِ هيڅوک هسے نه کا خوار حيران
لکه ډير دی دَ وصال دِ راحتونه
دغه هسے دَ فرقت دِ سخت زندان[49]
دَ رخسار نښے دِ واړه دَ خورشيد دی
چه ئے درست جهان له نوره دے تابان[50]
له هوسه دِ هر ګل کره خندا شوه[51]
چه ئے وليد ستا دَ حسن ګلستان
کله وی چه نصيحت کا وعاشق ته
که له حسنه دِ آګاه شي زاهدان
رنګ و روئے دِ رنګ و روئے لری دَ ګلو[52]
تورے څڼے دِ ښاخونه دَ ريحان

سیاهی دَ نوی خط دِ هسے زیب کا[۵۳]
لکه کښلی واړه توری دَ قران
و کوهی وته لغزش که کل خطر دے
کل خیرت دے کوهے ستا دَ زنخدان[۵۴]
که دَ درو تجلی ده ډیره ډیره
در تاریک شی چه ظاهر شی ستا دندان
ته سلطان دَ ښائسته ؤ ئے دلبره
دا نور واړه ښائسته دِ غلامان[۵۵]
که دا نور ښائسته ستوری وبلکیږی[۵۶]
ته خورشید غوندے صورت لرے روښان
له هرچا چه اوریده شی دغه وائی
چه ښائست دِ ذره نه لری نقصان
نرو ویَل دَ رحمان ځکه در ولعل شو
چه دَ ستا دَ لعلو شونډو شه ګویان[۵۷]

۱۷۸۰

ډیر یاران وو دَ ګل خان دَ جمال خان
په کار نه شه یو په وقت دَ زارستان[۵۸]
دَ همه واړو یارانو مخ دِ تور شی[۵۹]
که به څوک وبله یاری کا په دا شان
چه یو یار په سیوری ناست وی بل په اور کښنے[۶۰]
وهغو ته به څوک څه وائی یاران

هیڅ تعریف بہ ئے پہ ژبہ را و نہ شی
صد رحمت شہ پہ یاریہ دَ گل خان (٦١)
تر دا هورتہ دَ یاریہ شرط نورڅہ دے
چہ پہ اور کښے دواړہ وسوزی یکسان
چہ لہ آلہ لہ اولادہ سرہ وسول (٦٢)
خدائے دِ نہ کا څوک دا هسے مظلومان
چہ پہ اور کښے یو دَ بل دَ پارہ سوزی
ما لیدلی نہ وو هسے مخلصان (٦٣)
دَ نمرود چارے مے ولیدے پہ سترګو
چہ ئے اچول و اور تہ مرسلانؑ
څہ رنګ شوخ وو هغہ اور هم هغہ خلق (٦٤)
چہ ئے مړ نہ کړ دَ اوښیو پہ باران
الغیاث دے الغیاث دے الغیاث دے
چہ انسان کا هسے ظلم پہ انسان
وَ دے زمکے او اسمان وتہ عجب یم
چہ نہ زمکہ پہ نارو شوہ نہ اسمان (٦٥)
هم دے لویو لویو غرونو تہ حیران یم
چہ و نہ لوښتہ لہ ویخہ سرغلطان (٦٦)
لہ دے خپلہ سپیہ نفسہ مے زړہ بد شہ
چہ اوبہ څښی یا خوارہ خوری پہ جهان
عالم وائی چہ قیامت بہ پہ جمعہ وی
ولید ما یہ یک شنبہ پہ دا دوران

سربندونه گویا دشت کربلا وو (۶۷)
چه سیلاب شه دَ سرو وینو پر روان
هزار حیف دے چه دا هسے رنگے چارے
واقع کیږی دَ دنیا په سود و زیان
په عیسیٰ او په جمال کښے گناه نه وه
دا مکرونه وو دَ نفس او دَ شیطان (۶۸)
عزیزانو به په څه وبله وژله (۶۹)
دا همه واړه تقدیر دے دَ سبحان
هسے نه چه دا ئے وکړه نور به نه کړه
چه ئے زړه شی هغه کاندی بادشاهان
شاه عالم اعظم وگوره چه ئے خسا کړ
په خونونو واړه ملک دَ هندوستان (۷۰)
و دارا او اورنگ زیب وته حیران یم (۷۱)
چه ئے څه چارے واقع شوے ترمیان
دَ حسنؑ حسینؑ غزا دِ څوک په یاد کا
چه همه واړه په تیغ شو شهیدان (۷۲)
دوه غابښی اوسنه ئے وینو رغړوله (۷۳)
هسے بے حسابه خلق شه طوفان
هر چه اهل دَ دنیا دی حال ئے دا دے
که سړی دی که پیری که حیوان
آدم زاد په مخ دَ زمکے وبله وژنی
په دریاب کښے وبله غوښے خوری ماهیان (۷۴)

لکه غوبنے چه ماهیان خوری په دریاب کښے
په هوا کښے هم دغه کاندی مرغان (۷۵)

خزنده و پرنده دی دَ دے دهر
همه واړه یو تربل مشت و گریوان (۷۶)

مرداری دَ دے دنیا خو هم دغه ده
ځکه بیرته ځنے کړځی درویشان

مکاری دَ زمانے څه هومره نه ده
چه رحمان ئے کا وچا وته بیان (۷۷)

۱۷۹۳ $\frac{۱۰}{۱۴۷}$ ۱۳

که پخوا تر اشنائیه وے بیلتون
ما به نه وو له چاکړے پیوستون

چه مے یار په سترګو ولید ماګمان کړ
چه هم دا ساعت مے بیاموندہ ژوندون

په نیمګړی داد خبر دَ فلک نه وم
چه به بیا شی پستنه را څخه ستون (۷۸)

نن ساعت چه له دے حاله خبردار شوم
سکه تر نن ورځے بهتره وه پرون (۷۹)

هر زبون چه په ما راشی شکریت کا (۸۰)
عاشقی تر هسے حده کړم زبون

اوس که لاس پر بله مړم هیڅ سود نشته (۸۱)
هغه چار چه مے له لاسه شوه بیرون

لکه نمر په شلورم اسمان ځلیږی
محبت ئې له حجابه کړم بیرون[82]
چا چه رخه له بنه مخه راکوله[83]
اوس دِ سور په نیلی کړځی دَګردون
په دا هسې حال کښې څرنګه صبوری شی
چه دښمن دِ کامرانی کا ته محزون[84]
کم په صبر سره تور کاڼې لعل کیږی
لعل ئې مه کړه په دا هسې شواخون[85]
دَ دنیا هوس په ما باندې حرام شه
دَ هوسی هسې کړم شپه په میږه تون[86]
دریغه یو ځله هغه زما په حال شوې
چه وما ته لولوی صبرو سکون
و رحمان ته ځان هغه کړی اسمان شی
چه دَ ستا په غم کښې ناست وی سرنګون[87]

۹ ۱۱/۱۴۸ ۱۸۰۲

دنیا دار دَ دنیا کار کا زه د دین
خوانین زما په ملک دی خوشه چین
هیڅ کم نه دې ترسپین مخیو دلبرانو
بلکه به دې زما دا شعر نمکین[88]
مراد له تورو سپینو واړه دلبری ده
موقوف نه دې دغه کار په توراوسپین

چه رنګين رنګين مضمون پر کښلے نه وی
څه پکار دے دَ بياض کاغذ رنګين [۸۹]
چه خدائے چاله مرتبه دَ سليمانؑ ورکا
هيڅ پوره نيمګړے نه دَه په نګين
خوند په خوله دے نه په ژبه په خواږه دے
اب و خور کۀ دَ چا تلخ دے. که شيرين [۹۰]
غرض خوب دے که په خس وی که په خاورو [۹۱]
څه حاجت دے په بستر او په بالين
مصری توره هم په بد غلاف کښے زنګ شی
خدائے څوک مه کړه دَ بدانو هم نشين
څه عجب که په ورځ مهر په شپه ماه شی.
دَ رحمان اشنا چنان دے هم چنين

## و

۱۸۱۱ ۹ $\frac{۱}{۱۴۹}$

هر ساعت زما دَ غوږ په تاوولو
دَ اسمان لاسونه شنه شو تر څڼګلو [۱]
هومره غم دَ بيلتانه راباندے راغے
چه حساب ئے نه په خوله شی نه په کښلو
هغه سترګے چه نرګس وے هم بادام وے [۲]
تيرے نورے شوے زما په قتلولو
هغه شونډے چه شيرينے وے ترقندو
ما هيڅ فيض تر بيانه موند بے بنګڅلو [۳]

دا کاږه کاږه بانه او کږے وروځے
نور څه نه کا بے کږو کږو وهلو[۴]
په شپه نوکے دَ عاشق په وینو سرے کا
سبا پورے کا نکریځے په منګلو
دا زما دَ قاتل لاس دے چه لیده شی
که تر باغ وتلے ښاخ دے دَ سروګلو[۵]
دریغه مرګ ئے په دنیا کښے نیمه خواشوے
ښائسته غنچے ئے پرے یستے دَ ګلو[۶]
هسے بند شه په کمند دَ تورو زلفو
چه حیران یم دَ رحمان په خلاصولو[۷]

۱۸۲۵ $\frac{۲}{۱۵۰}$ ۱۴

تا چه رنګ دَ میُو ورکړ وَ لبانو[۸]
اور دِ پورے کړ په کور دَ میخوارانو
چه دِ جوړه کړه لینده دَ کږو وروځو
خوب دِ زوږ کړ دَ حرم په غزالانو[۹]
چه دِ اسم دَ زنځیر په زلفوکښیښو[۱۰]
معطر دِ کړ دماغ دَ دیوانګانو
په رخسار چه دِ دَ خط غبار څرګند شه[۱۱]
سربلنده شوه فرقه دَ خاکسارانو
کاږه غشی واړه بیرته ځی له ښئے
زه ادا کړم ستا کږو وکږو مژګانو[۱۲]

دَ پیزوان دغمے دِ زیب کا پہ لبانو
ق دواړه زلفے دِ چورۍ دَ ملنګانو [۱۳]

• ـ چہ زما دَ یار ترمینځہ جدائی کا
کانړے پریوتے پہ خونہ دَ بدانو [۱۴]

• ــ کہ مے چرے خواست دَ خدائے پہ درقبلیږی
سوال بہ زہ دَ عمر کړم دَ مهوشانو [۱۵]

• ــ سور پیزوان دِ پہ سرو شونړو ھسے زیب کا
لکہ جیم پہ قلم ښکلے کاتبانو [۱۶]

تور اوربل دِ لکہ مار پہ جبین پروت دے
ق شینکے خال دِ محاصل پہ رنځورانو [۱۷]

ق دا چکوه چکوی چہ ژاړی کړم خونہ دی
پہ ارمان ئے ځبلہ بیل کړه رقیبانو [۱۸]

ق ستا دَ خولے لہ حقیقتہ صوفی څہ زده
لہ دے رازه ځوک خبر دی بے رندانو [۱۹]

• دواړه لیچے دِ وکښلے مصرۍ تورے
درپوهیږم سر بہ پریکړے دَ خوارانو [۲۰]

ستالہ غمہ پہ ځان زړه دَ رحمان سوزی
لکہ شمع پہ زیارت دَ شهیدانو

۱۸۳۵ $\frac{۳}{۱۵۱}$ ۱۰

چہ کوتلی وی پہ تیغ ستا دَ چشمانو
سرحلقہ وی دَ جملہ وُ شهیدانو [۲۱]

ستا وصال دَ سر پریکړیو دے دلبره
ژوندی نه مومی جنت بے مرده ګانو
دَ پیری سبوری عاقل لره ضرر دے [۲۲]
دا مقام دے دَ سرتورو دیوانګانو
په سرپوښ محل کښے نور دَ افتاب نه وی [۲۳]
دا دولت دے نازل شوے په ړاګیانو
هم په دا زما له سترګو وینے څاڅی [۲۴]
چه دِ نقش په کښے رنګ دے دَ لبانو
مشکین خال دِ په سرو لبو هسے زیب کا [۲۵]
لکه مهر په مخزن دَ دُر مرجانو
دواړه لب دِ بنائسته تر سرو یاقوتو ق
شرمولے ده بړلی دَ ستا دندانو
دوه رخساره دِ دوه سیب دَ سمرقند دی ق
پر سینه دِ دوه نارنج دَ رنځورانو
دَ لیلیٰ دَ کوڅے سپے په مجنون پیښ شو ق
په بار بارئے ښکلوه په دوه عینانو [۲۶]
ما سوا له یاره هرچه دی رحمانه
واړه کفر دے په دین دَ عاشقانو [۲۷]

۱۸۴۳ $\frac{۴}{۱۵۲}$ ۸

که هرڅو په صحرا سر شوم هم په کلیو
بیا مے نه موند هیڅ خبر دَ هغو تللیو [۲۸]

هر اشنا چه مخ پنهان کا نه ئے موم
که ئے غوارم شپه و ورځ په سورو بلیو (۲۸ ق)
خدائے زده کومه خوا ته لاړه حال ئے څه دے (۲۹)
خبر نه یم دَ کړنګ له پریوتلیو
له دے غمه ے زړه څوی که څوک خبریږ
لږ په ما هم خبر وکړئ خدائے ساتلیو
پس له دے به چرته درومئ ځائے موکوم دے (۳۰)
راته وایئ دَ دنیا په سرائے راغلیو
له ناپوهه خلقه نه کیږی پښتنه
زه وتاسو وته وایم پوهیدلیو (۳۱)
ګوندے ستاسے په مخ زه هم وپساندهٔ شم
لاس دَ خدائے و در ته ونسئ پسندلیو (۳۲)
خبر نه یم چه په باب ے کښلی څه دی
زه رحمان په اندیښنه یم له دے کښلیو

۱۸۵۱ $\frac{۵}{۱۵۳}$ ۸

تور لیمه ے دَ فراق په ژړا سپین شو
دوباره دَ زړه په وینو کښے رنګین شو (۳۳)
ما وے زه به لا دیدن کړم دَ یارانو (۳۴)
خبر نه وم چه یاران په کوچ تعین شو
چا پتنګ غوندے ځان پاسلوه چراغ ته (۳۵)
څوک ژوندی لکه بلبل په اتشین شو

و مرده ؤ ته دَ مرګ خوارۍ شوے پيښے
او ژوندی په زندګی کښے اندوهګين شو
دَ قضا سپاهيانو هسے لاس په تاخت کړه[۳۷]
چه پائمال هزار خسرو هزار شيرين شو
چه قدم ئے په اسمان ئيښو له نازه[۳۸]
هغه هسے ناز پرور زير زمين شو
چه مدام ئے په سنجاب دپاسه خوب کړ[۳۹]
وُس په زمکه بے بستر و بے بالين شو
دَ رحمان خاطر به ولے پريشان نه وی
چه پريشان ورڅخه جمع هم نشين شو

۱۸۶۵ $\frac{۶}{۱۵۴}$ ۴

هيڅوک مه شه ګرفتار دَ تورو زلفو
مه اسير شه په کفار دَ تورو زلفو
هم په شان دَ تورو زلفو به پريشان وی
هرچه کاندی انتظار دَ تورو زلفو
دَ محشر په عالم کله قراری وی
څوک به څه غواړی قرار دَ تورو زلفو
ولے صبح دَ قيامت دميده نه شی[۴۰]
ورځ به نه شی شب تار دَ تورو زلفو
مګر شمع دَ سپين مخ شی باندے بله
ګنه نشته بل انوار دَ تورو زلفو

تار په تار کا دَ عاشق دَ خاطر خونه
چه حلقے شی تار په تار دَ تورو زلفو (۴۱)
چه تمام جهان ئے نښتے وی په دام کښے (۴۲)
څوک به څه کاندی انکار دَ تورو زلفو
زه له کوم یوه کمنده سر وکاږم
کمندونه دی هزار دَ تورو زلفو
هومره زړونه ئے پیئلی په هر تار دی
چه تسبیح کړ خدائے زنار دَ تورو زلفو
په تندی دَ محتسب کا درّه ماته
چه پر راشی دره دار دَ تورو زلفو
ملک دَ هند او دَ حبش ئے واړه زیر کړ (۴۳)
چه پیدا شه شهریار دَ تورو زلفو
ښامارانو غوندے گرځی په گنجونو (۴۴)
نه شی هیڅ په زړه کښے دار دَ تورو زلفو
که بل مار چیچل په لاسو یا په پښو کا (۴۵)
په زړه خوله لگوی مار دَ تورو زلفو
دَ رحمان تر قلم مښک او عنبر ووری (۴۶)
چه آغاز ئے کړه اشعار دَ تورو زلفو

۱۸۷۵ $\frac{۷}{۱۵۵}$ ۱۰

او ښے نه لری حساب زما دَ سترگو
بے حسابه شه سیلاب زما دَ سترگو

سیاهی ئے همه واړه سفیدی شوه
هسے پریوځے شه کتاب زما دَسترګو [۴۷]
که مے سره دی که مے سپین دی که مے توردی [۴۸]
اوښیو یووړ هر اسباب زما دَسترګو
چه رخسار دَ هغه یار راڅخه پټ شه [۴۹]
حبطه شه اب و تاب زما دَ سترګو
چه ګدازئے په دا ګرمو اوښیو نه شه
مګر کاڼے دے حباب زما دَسترګو [۵۰]
که نور خلق دَ افتاب په رڼا زیست کا
مخ دَ ترکو دے افتاب زما دَ سترګو [۵۱]
مائے خیال لره ابلق دَ سترګو زین کړ
قدم نه ږدی په رکاب زما دَسترګو
چه مے نقش په زړه سرے شونډے دَیار شوے
کان دَ لعلو شه ګرداب زما دَ سترګو
لکه تښتی وحشیان له مردمانو
هسے وتښتیده خواب زما دَسترګو
ما رحمان چه سترګے روښے په څپل یار کړے
وس محال شه اجتناب زما دَسترګو [۵۲]

۱۸۹۱ $\frac{۸}{۱۵۶}$ ۱۶

که نظر کا څوک په کار د درویشانو
خود به وویني وقار د درویشانو

(۵۳)
په دغه لاره به ورېشي وخدائې ته
كه څوک يون کاندي په لار دَ درويشانو

هر ګفتار به ئې دَ خدائې په در قبول وي
چه قبول ئې وي ګفتار دَ درويشانو

(۵۴)
هسې ګرم بازار بل په جهان نشته
لكه ګرم دے بازار دَ درويشانو

په يوه قدم تر عرشه پورے رسي
ما ليدلے دے رفتار دَ درويشانو

هومره خلق ئې طواف كا پس له مرګه
چه بازار وی په مزار دَ درويشانو

(۵۵)
بادشاهان دَ دے دنيا واړه پرانه دي
لكه خاورے په دربار دَ درويشانو

هر بهار لره خزان په جهان شته دے
خزان نه لري بهار دَ درويشانو

دَ جنت دَ باغ ګلونه به ئې هير شي
(۵٦)
كه څوک ويني ګلزار دَ درويشانو

چه دنيا ئې كړه دَ خدائې دپاره تركه
صد رحمت شه په روزګار دَ درويشانو

(۵۷)
دَ قارون وحال ته ګوره حال ئې څه شه
راشه مه كوه انكار دَ درويشانو

(۵۸)
په هرچا چه دَ غضب لينده كا غرقه
خطا نه درومي ګوزار دَ درويشانو

که دَ زړه سترګے بیناوی و به وینی[۵۹]
لکه نمر هسے انوار دَ درویشانو ق
که دِ زړه وی چه دِ زنګ شی دَ زړه لرے
راشه وګوره دیدار دَ درویشانو ق
که مرادِ دنیاوی اُخروی غواړے
هرګز مه پرېږده جَوار دَ درویشانو ق
درست دیوان دَ رحمان ځار تر دا غزل شه
چه بیان ئے کړ کردار دَ درویشانو[۶۰]

## ه

۱۸۹۸ $\frac{۱}{۱۵۷}$ ۷

دَ دلبرو په درګاه — نه حرمت لرم نه جاه[۱]
غوځوی مے دَ زړه ولے — دَ چشمانو په نګاه
هومره قدر مے هم نشته[۲] — لکه قدر دَ ګیاه
یو نظر راباندے نه کا[۳] — ازبرائے عند الله
هیڅ له ځانه خبر نه یم[۴] — چه ئے څه لرم ګناه
که له غمه ئے سرپټ کړم[۵] — بل سر نه لرم پناه
دَ رحمان په خیر ومه شه[۶] — حال احوال دَ چا تباه

۱۹۱۴ $\frac{۲}{۱۵۸}$ ۱۶

ته شهائے شکر لبه — ګل رخساره سیم غب غبه[۷]
په نادرو کښے نادره — په عجبو کښے عجبه
په جملهٔ معشوقو کښے — بوالعجبه منتخبه

بے زیورہ دلفریبه — بے ترتیبه مرتبه

دغه دادِ الٰهی دے — بے تالاشه بے طلبه[۸]

آب حیاتو حیات بیاموند — ستا دَ لبو له سببه

مخ دِ سپین ترسپین صباحه[۹] — زلفے تورے ترتور شبه

ستا دَ مخ عرق دانهٔ — زینت رانیو له کوکبه[۱۰]

دَ بنائست مخے دِ نشته — تر مشرقه تر مغربه

دَ وصال موندہ دِگران دی — مگر مهر شی له ربه

چه دَ رب مهر پر وشی — هغه خلاص شی له غضبه

دا دولت دَخدائے په داد دے — موندے نه شی له نسبه[۱۱]

عشق څه هسے علم نه دے — چه حصلیږی له مکتبه[۱۲]

مکتب حال دَ مذهب وائی — عشق سوا دے له مذهبه

دَعاشق مذهب هم دا دے — چه دم نه وی بے مطلبه[۱۳]

ستا دَحسن په تعریف کښے — رحمان گنگ دے له ادبه[۱۴]

۱۵ ۳/۱۵۹ ۱۹۲۹

په ورځ ناست ئے بے طلبه — په شپه خوب کړے بے ادبه

لاس دِ وخاته له دواړو — هم له روزه هم له شپه

نه دِ لے شوے نه هورے شوے — ترمیان ورک شوے مذبذبه[۱۵]

عبادت دِ په ریا شه — په مذهب کښے بے مذهبه

مدام بندئے په سبب کښے[۱۶] — بے خبر له مُسبّبه

وارہ تشے شلومبے شاربے — خبر نه شوے له مطلبه[۱۷]

ته وُودہ وربانده ناست ئے[۱۸] — اس دِ یون کا بے جلبه

تن دِ تش په توره وسه — اُس دِ داغ کړ بے منصبه
دَ راکب چه واک پردے شی — سود ئے څه وی له مرکبه
له ژوندیو سره نا سته — له مرده وُ مرکبه
هلک لوئے شوے په اوبو کښے — اوبه نه پیژنے کبه
لکه کا فے یا کودرے — په دریاب کښے تشنه لبه[۱۹]
ناآگاه خپسر آگاه بولے — دا خبره ده عجبه
مراد له زهده معرفت دے — نه تش ځان وژله اقربه
دَ رحمان شراب له عشقه — نه له کوړو له عنبه[۲۰]

۱۹۳۸ ۴/۱۶۰ ۹

په هر ذره چه دَ یار مینه شی غالبه
بله مینه ئے هیڅ نه وی مناسبه
نورے واړه مرتبے به ورنه هیڅ شی
که خبر شی څوک له هسے مراتبه
لائقت ئے هر وکړی څخه نشته
عاشقی یوه پایه ده عجائبه[۲۱]
دَ طلب له کوتاهیه ویره وکړه
که هر څو دِ لار کوتاه ده طالبه[۲۲]
عشق څرګنده خزانه ده خوار هغه شه
چه څرګنده خزانه شوه ترغائبه
واړه خط دَ مهرویانو ترخط نشته
که هزار کتابتونه کړے کاتبه[۲۳]

هیڅ ئے مه پښتنه له فرضو له واجبو
په هغو چه عاشقي کړه خدائے واجبه
عاشقان تر سرو مال و یارته تیر دی
خدائے دِ دا طائفه نه کاند کاذبه [۲۴]
زه رحمان دَخپل صاحب په رضا زیست کړم [۲۵]
څه په کار دے بنده بے خپله صاحبه

۱۹۴۸ ۱۰ ۵/۱۶۱

چه ئے ولیده ستا حُسن بے حسابه [۲۶]
له دے قصده تاؤ پیدا شه له آفتابه
په ارزو دِ دَ نرګس سترګے ځلورشوے
غنچه سره دَ زړه په وینو شوه غرقابه [۲۷]
ستا په غم مے سترغلی سرے سرے ناغےشوے
یا خیمے دی سیاه پوښے سره طنابه
که دِ زلفے په مخ پیچ و تاب شوے بنا ئی [۲۸]
ویښته څه طاقت لری دَ اور له تابه
زه چه خدائے دَ ستا له غم سره اشنا کړم
خوشحالی مے نور نایابه شوه نا یابه [۲۹]
سترغلی مے دَ فراق په ژړا شنه شول
دَ سبزی اثر ئے پاخیده له آبه [۳۰]
ماه خورشید دِ په ښائست پورے شرمیږی
ځکه مخ پنه کوی تر کوهِ قابه [۳۱]

زه دِ پیژنم په اصل کښې خاکی ئے
ځان به څو ښندې په ګوته له ترابه
څو دِ خیال دَ اشنا ګرځی په لیمه کښې
خبر زده کړه ته دَ اوښیو له سیلابه[۳۲]
دَ رحمان بخت به هاله له خوبه ویښ شی[۳۳]
که ته سترګې ورته پورته کړې له خوابه

۱۹۵۹ ۶/۱۶۲ ۱۱

ورځ دِ تیره په شومی کړه شپه له خوابه
خدائے به کله یاد وے خانه خرابه
په شتاب شتاب دِ تله دی که پوهیږې
غافل مه شه دَ دے عمر له شتابه
دلته دم و قدم دواړه په حساب دی[۳۴]
پل غلط له لارے مه بهٔ ده بے حسابه
راستو لے خدائے حساب دے په کتاب کښې
خبر زده کړه له حسابه له کتابه
څو په دا جهان اوبه له تنه نه شے — ق
په قیامت به دِ سینه نه شی سیرابه
اندرون به دِ له اوره هسے ډک شی — ق
چه ئې ډک شوے له شراب وله کبابه[۳۵]
ته دا خپل نیک وبد وتله په خپله
چه ثواب دِ څو تیرے کا له عذابه[۳۶]

پہ ھغہ جھان بہ ځرنګه ځواب وکړے
چہ پہ دا جھان عاجز ئے لہ ځوابہ (۳۷)
چہ آفتاب یوه نیزه شی تروبہ څہ کړے
چہ نن سیوری لره تښتے لہ افتابہ (۳۸)
دَ کاغذ پہ کشتۍ سیر کوے رحمانہ
دا کشتۍ بہ دِ مرګے کاندی غرقابہ (۳۹)
پہ ازار دَ چا راضی مہ شه رحمانہ
کہ خلاصے پہ قیامت غوارے لہ عذابہ (۴۰)

۱۴ ۷/۱۶۳ ۱۹۷۳

ما دَ دھر غم وھلے دے پہ لتہ
دَ پیالے دَ صراحی لہ برکتہ
کہ اوبہ دی دَ حیاتو پہ ظلمت کښے
سادہ رویو وما راکړے بے ظلمتہ
ھغہ یارچہ وما جام دَ میو راکړ
دَ دښنو وینے مے وڅښے بے شدتہ (۴۱)
بے خودیہ د دنیا لہ غمہ خلاص کړم
لارمے بیاموندہ بیرون لہ شش جھتہ (۴۲)
دَ دښمن لہ دښمنیہ مے خندا شی (۴۳)
لکہ شمع دَ مقراض لہ خصومتہ
بے خبری مے کل پہ خیر دی شمیرلی (۴۴)
دَ مزری پہ خولہ کښے ناستیم فراغتہ

(۴۵)
مړ بهتر دے نه هغه چه څوک بے پت شي
په يارئ کښے دِخدائے نه کاڅوک بے پته
دا ستي چه په اور سوزي مراد ئےداوي
چه په اور کښے سوے نه يم نه بے پته
خدائے هاله دَ سړي يادشي چه دردمند شي
کمه نه ده دردمندي تر عبادته
(۴۶)
خود پرست دَ خپل وجود په تياره ورشي
دَ مستانو لار به خدائے نه کا غلطه ق
بے ديد نه که فردوس وي پکار نه دے
باغ څوک څه کا بے دَ يار له وصالته ق
دَ دنيا ښادي به واړه اخر غم شي
دغه مل دَ چا مل نه دے ترمڼته ق
(۴۷)
خدائے نبيؐ به دِ روزي نه شي رحمانه
څو خلاص نه شے دَ دنيا له محبته ق
زه رحمان په سل حلقو دَ زلفو بنديم
لا د پاسه يو ييزوان شه بله نته
(۴۸)

۱۹۷۹ $\frac{۸}{۱۶۴}$ ۲

ق
(۴۹)
چه څلے ئے ستا دَ څنو شه په کوته
په تحقيق توره بلا تيروي سرته
چه په توره شپه په توره بلا سرشي
دَ ژوندون اميد به څه وي وهغه ته

ستا دَ زلفو دَ زنځير هسے حلقے دی
چه دَ اور شعلے ئے خيژی ترهر وته
وهرچا وته چه دا بلا شی پيښه
په ژوندون به ئے څهره نه شی ثابته
ستا بلا به عاشقان اخلی دلبره
په هاتيانو ويسا څوک کا بے مهوته
ما رحمان چه څوک چار باسی ستا له مينے[۵۰]
ګويا عين نصيحت وائی وودة ته

۱۹۸۵ $\frac{۹}{۱۶۵}$ ۲

تاچه په دا تورو سترګو وکاته وماته
زړه دِ زما تور کړ له دے نوره مخلوقاته
ماخو چه ته وليدے هغه ساعت مے ووے
نوره به مے مينه دَ زړه نه شی له تاماته
شيخ و زاهدان چه نصيحت وماته وائی[۵۱]
نه دی خبرشوی ستا دَ مخ له محسناته
څه وشوکه زه انګشت نمائے شوم ستا په مينه
لا ترمانه خوښ ئے وقاضی او وملاته
مرمه زه په داچه ماچارباسی هغه خلق[۵۲]
بيا دِ په ديدن ترما وړومبے زغلی وخواته
زه رحمان چه ووينم يار وايم خدايه خير کړے
ګوره بناپيری ده دَ بنی آدم له ذاته[۵۳]

١٩٩٢ ١٠/١٦٦ ٧

تا خو زده زما دَ زړه له احتیاجه
ترو ما څه پوښتې چه څه غواړې محتاجه [٥٤]
دَ طالب مطلوب روش به ما در وښو [٥٥]
که ته نه وې خبردار له دې رواجه
یار که یار ته حال په خوله نه وائې څه شو
و حکیم ته پټ څرګند وی له مزاجه [٥٦]
که زما له حاله ما پوښتې حال دا دې
چه بې تا مې ورځ تیره ترشب داجه [٥٧]
اشنائې به ما په کوم قوت کوله
که خبر وې ستا دَ هجر له تاراجه
که له سلو به یو خواست زما قبلیږی [٥٨]
خدائې دِ هیڅوک رنځور نه کا بې علاجه
په رحمان بلا پسې که زهیر یږی
ته مشغول اوسه له خپله تخت و تاجه [٥٩]

٢٠٠١ ١١/١٦٧ ٩

چه خبر شوم دَ ساقی دَجام له راحه
لکه مړې ملاقی شوم له ارواحه
زه چه زلفې دَ یار ووینم په خوب کښې [٦٠]
په شپه مښک رابانده ووری ترصباحه

سبا زیرے دَ وصال پہ مهجور کاندی
دَ هیواد خبر موندہ شی لہ سیاحه (۶۱)
کہ روا کا خون خوردن دَ عاشقانو
څوک وتے شی دَ خوبانو لہ صلاحه
هرساقی چہ جام دَ عشق لری پہ لاس کښے
دا پیاله ئے پہ مستانو دہ مباحه (۶۲)
مخ بے مینے کہ څوک ستائی ستایہ نہ شی
دَ ممدوح لہ قدرہ چا زدہ بے مداحه
دَ جملہ مشکلات قلف بہ ئے شی لرے
کہ دَ فتح کنجی ورکاندے فتاحه (۶۳)
مرتبہ دَ عاشقئ واړہ پہ عشق دہ
نہ لہ زهدہ لہ تسبیحہ لہ صلاحه
دَ دنیا ناوے پہ عقد کښے دین غواړی
اے رحمانہ ځان ئے ژغورہ لہ نکاحه (۶۴)

۲۰۰۷ $\frac{۱۲}{۱۶۸}$ ۶

څہ شو کہ خاموش یم سنا دَ عشق لہ اہ سردہ (۶۵)
ستا زما لہ مینے خلقہ واړہ خبردہ
هیڅوک دِ پہ خولہ دَ عاشقیہ لافے نہ کا (۶۶)
کلہ هم پټیږی وچے شونډے کونہ زردہ
اهل دَ دنیا واړہ نامرد دی رنګ ئے ورک شہ (۶۷)
خدائے دِ ملاقات دَ هیچا نہ کا لہ نامردہ

کله بے دردانو لره زړه دَ چا ورد رومی
زه به صدقه کړم سل بے درد تراهلِ درده (۶۸)
بے دَ ستا دَ عشق دَ شهیدانو له خاکدانه
کله زرغونیږی سره لاله له هره گرده
یو خوشحال یوکم سل ختک نور په طبیعت کښے
ځار شه دَ رحمان سره بنی له یوه فرده

۲۰۱۵ ۱۳/۱۶۹ ۸

گوره بیا به څوک ادا کا په زړه غونډه
چه دا هسے مسته دروهی مخ بربنډه (۶۹)
ته چه گل دَ اشنائی له باغه غواړے
خبر زده کړه دَ هجران له خار وخنډه
طالبان که مرور دی هم پخلا دی
بے مطلوبه دَ چا نه رسی دا هنډه
ما رستم دَ دهر ولیده په سترگو
دَ خپل یار له جوره ژاړی لکه کونډه (۷۰)
دَ عاشق دَ لاغریه سبب دا دے (۷۱)
چه فرقه دَ معشوقو شوه په زړه تنډه
زه به حورے دَ جنت بے یاره څه کړم
خدائے دِ سروه دَ چا نه کاندے ارهنډه
سخت ساعت دَ بیلتانه مے به هیر نه شی
که راڅکه شی دَ تور لحد گورهنډه (۷۲)

زه رحمان دَ هغه حُسن دعا گوی یم (۷۳)
چه جرګه دَ عاشقانو وی پر پښه

۹ $\frac{۱۴}{۱۷۰}$ ۲۰۲۴

ستا په عشق کښې دروغژن یم سرترسره
چه له غمه دِ ژوند ے کړځم دلبره
زه به ستا له لاسه کله شو لا مړ وم
ولے دم دَ خدائے په لاس دے نازپروره (۷۴)
جدائی به مے یو دم قبوله نه کړه
که چا مرګ او بیلتون یُښے وے په غوره (۷۵)
شام سحر زما دَ ستا زلفے رخسار دی
هیڅ مے مه پښته له شامه له سحره
چه خبر دِ په وصال او په هجران شوم
خبر نه یم له فردوسه له سقره
بے دَ ستا له مخه ورځ رایاندے شپه ده
روښنائی دَ ورځے چرے وی بے نمره
هسے بے سر وسامان دِ هیڅوک نه شی (۷۶)
لکه زه چه بے سامانه یم بے سره
یو هنر مے منظور ستا په نظر نه دے
که زه وکړم ستا په عشق کښے سل هنره (۷۷)
هیڅ اثر دَ رحمان اوښے په یار نه کا
خدائے دِ اوښے دَ چا نه کا بے اثره

ق

۲۰۳۰ ۱۵/۱۷۱ ۶

ما چه جور و جفا بیاموندہ له یاره
دَ وفا طمع به څه کړم له اغیاره
له دښنو به دَ ښادئ امید څوک څه کا[۷۸]
چه دَ دوست دَ لاسه غم شي وردوخاره
دل ٲزار که جفا کا مانه ترنه شي[۷۹]
حیف خو داده چه دلسوز شي دِل ٲزاره
دا ګله هم ډیره ډیره له هغو شي
هر چه طمع تر دَ ښو کیږي بسیاره
طالبان خو تر مطلوبه پورے پړه دي
خدائے دِ تا بے وفا نه کا وفاداره
که له ډیرے حیا نه ګورے وچا ته
څه خو مټ کړه دَ رحمان دَ زړه دپاره[۸۰]

۲۰۴۲ ۱۶/۱۷۲ ۱۲

ستا په عشق کښے هسے خلاص یم له شعوره[۸۱]
چه یوه خبره نه لرم منظوره
طبیبان وائي چه صبر دِ دارو دی
خدائے فرقه زمونږ پیدا کړه ناصبوره[۸۲]
تورے هرچرے ترلے په دښمن شي
یاره ستا سترګے دوستان وژني په توره

معشوقې دَ زمانې شوې سره تړلې
دَ زړه خونه مې ئې ولوټله چوره (۸۳)

زه تنها په ضرور نه يم ستا لهٔ غمه
پيدا شوې عاشقي ده له ضروره

هرې شپې لره ورځ شته دې په جهان کښې
زما عمر جدائيه کړ بې نوره (۸۴)

مهرويان وفا له هيچا سره نه کا
دا خبره په عالم کښې ده مشهوره

چه خبر شي واړه ګوتې په غاښ نسي
په هجران کښې خبر مه شې لهٔ مهجوره (۸۵)

دَ رقيب لهٔ بدو سترګو دِ ځان ژغوري
هر عاشق چه بهره مند وي لهٔ حضوره

هو مره توان وتوفيق نه ګنم په بخت کښې
چه تائب کا ما له فسقه له فجوره (۸۶)

په نظر دَ مدعيانو تور کو دې دې
که ئې ګښينوم دَ کټ د پاسه حوره (۸۷)

دَ رحمان دَ سترګو نم به هاله وچ شي
که وچ شوې دَ چا نم وي لهٔ ناسوره

۲۰۵۶ $\frac{۱۷}{۱۷۳}$ ۱۴

نه رسيږي ستا و حُسن و ته حوره
څه به رسي و ميرمنې ته مزدوره (۸۸)

ستا و قد او و قامت ته نه رسیږی
که نښتر که سپاری وی که کجوره (۸۹)
تر قامت پورے دِ سروه ده سرکوزے
تر صورت پورے دِ شمع ده بے نوره
هر سړے چه دِ وحُسن ته نظر کا
ښاپیریه ئے په نظر وی نامنظوره
تا چه مے دَ خپلو شونډو وریه خوله کړه (۹۰)
طائفه دِ دَ صوفیانو کړه مخموره
اوس ته وایه چه په څه رنګه دِ ستا ئیم (۹۱)
زه خو ستا په مینه لاړ یم له شعوره
دا جذبه دَ عاشقۍ نه ده نور څه ده (۹۲)
ګنه کله څوک وتے شی له دستوره
اوس به زه دَ شب خیزیه څه منت کړم
چه څهره دِ کړه په خوب کښے راحضوره (۹۳)
که سل ځله زویه غوره وی تر لوڼو (۹۴)
صدقه شه ناقابل زویه تر لوره
چه په ننګ او په ناموس تر لوڼو کم وی
خدائے دِ مور کاندے په هسے زویو بوره
ننګیالی تربرونه ښه دی او که نه وی
ننګیالۍ ترله هم ښه ده تر تربوره
خوبروی بے دلبریه پکار نه ده
لکه ونه بے میوے په پاڼو ګوره (۹۵)

(۹۶)
که دَغلوځے لباس وکا غزا وشوه
شهد نه دی چا موندلی له زنبوره
په رحمان دَ ښائسته ؤ قدر ډیر دے
دَ طبیب له قدره چا زده بے رنځوره

۲۰۶۳ $\frac{۱۸}{۱۷۴}$ ۷

ق

(۹۷)
زه دِ پرے یستم له خپله زوره شوره
په څوکران ئے ته دَعشق ناتاره زوره
که دَ ځان وینے مے تل دَ ځان خوراک وی
خدائے مے مه کړه دَ زړه مینه له تانوره
چه دَ ستاله اشنائۍ له عهده ووځم
رب مے مه کړه په دا شانے دعوٰی سپوره
چه په تله دَ سر ومال ورځنے نه ځے
عجب شان لرے دَعشق عظیمه توره
(۹۸)
په زورل دِ ډیره نفع راته رسی
څو دِ زړه څو دِ رضا هومره مے زوره
ربه روی دَ ستا دَ دوستؐ مے دے دروړے
(۹۹)
دَ بیلتانه دَ سخت ساعته مے وژغوره
که گذر په قبرستان زما دَ یار شی
سر به هسک کړم زه رحمان ورته له گوره

۸ $\frac{۱۹}{۱۷۵}$ ۲۰۷۱

زه عار نه لرم په عشق کښې له پېغوره
بې پروا يم دَ ستې په څېر له اوره
بېدې په خوله دَ سمندر مهر دَ مومو
څوک چې مامنع کوي دَ عشق له شوره (۱۰۰)
بې هجرانه زما نوره خواري نشته (۱۰۱)
ولې نشته تر دا بله خواري نوره
لکه ته چې خدائې هرګوره بناشته کړې
زه ئې هم هسې بې صبره کړم هرګوره (۱۰۲)
چې په تور او سپين مې اړوي داڅوک دې
که ته نه ئې په مخ سپينه ! په زړه توره
دَ رقيب له بدو خويه به څه وايم
لا چې يار ورسره مل شي هاله ګوره (۱۰۳)
چې ئې پور دَ مرګ ترپوره لابد ترده (۱۰۴)
هې توبه دَ بيلتانه له بده پوره
عاشقي سرې مجنون کاندي رحمانه
ګنه څوک په هوښياري ووځي له کوره

۱۱ $\frac{۲۰}{۱۷۶}$ ۲۰۸۲

چې په وقت دَ ځنکدن وکاږې بېره
ترو نن ولې هسې ناست ئې بې تدبيره

هر سړے چه ګانده غم په مخ کښے وینی
له هغه غمه لا نن ګرځی دلګیره
چه سبا ارمانوے پند دَ پیرانو
ولے نن دَ پیر طلب نه کړے بے پیره [۱۰۵]
دَ یار یاد به دِ ځائے څه رنګه په زړه شی
چه دِ غَیر لرے نه شی له ضمیره [۱۰۶]
چه دَ توک په طلب ګرځے خدائے دِ هیر دے
فقیران دا هسے چرے وی فقیره [۱۰۷]
دغه غم دِ خدائے بدل کړه په بنادیه
زهیر مه شے په اشنا پسے زهیره
که هرڅو بنائسته ډیر دی په جهان کښے
و هر چا ته خپل اشنا دے بے نظیره [۱۰۸]
هر سړے دَ هغه مخ په [۱۰۹] رڼا ګرځی
چه ئے خونه دَ خاطر وی پر منیره
تمام عمر ئے په اور او په اوبه وی [۱۱۰]
عاشقان دَ لعلو لبو له تاثیره
که په مرګ که په ژوندون وی خدائے دِ نه کا
دَ رحمان خلاصے دَ زلفو له زنځیره [۱۱۱]
زه رحمان دَ ازادی په [۱۱۲] تالاش ګرځم
بارے نه دَ تورو زلفو له زنځیره

ق

۲۰۹۰ $\frac{۲۱}{۱۷۷}$ ۸

خو به وران شي دَ دنيا بازاره تا ړه
هر نفس دَ بيلتانه په تاخت لتاړه[۱۱۳]
لا غنچې په باغ کښې ستر ګې سپړدې نه وې
چه خزان ئې دَ زړه خونه کړه ويجاړه[۱۱۴]
هسې باد پر دَ فنا له لوريه والوت[۱۱۵]
دَ لاله قوله ئې پرې يسته له ناړه
يوه هسې بې سوزي مې شوه په بخره
چه سردي ئې لا بتره ده ترساړه[۱۱۶]
څه بزرګي به ئې دَ باز دَ همائې نه شي
سر زباني ذکر که سل رنګ کا خراړه[۱۱۷]
که زر سل کاله ئې تير شي په اوبو کښې[۱۱۸]
په نرمي به نرمه نه شي وچه تراړه
تردا هسې عمره نه عمر بهتر دې[۱۱۹]
هر چه حال دَ ځنکدن وي عمر واړه
ترخلاصي ځنې بندي بشه ئې رحمانه
که دَ يار دَ زلفو ځيل دِ شي په غاړه[۱۲۰]

ق

۲۱۰۱ $\frac{۲۲}{۱۷۸}$ ۱۱

ګيده وتره په پړی سره کلکه[۱۲۱]
دَ روټيه طمع مه کړه له فلکه

هر سائل چه سوال دَ نان کا له اسمانه
گويا غواړی په کچکول کښې اوږمکه [۱۲۲]
له اسمانه چه څوک طمع دَ وفا کا
دغه طمع ئې طاعون کړه بے شکه
له يارانه سره هسے ږلی ووری
چه هر زخم ئې بتر وی ترتوپکه [۱۲۳]
که په چا ئې شفقت مرحمت وشی
ظلم جور ئې بتر وی تر اوزبکه [۱۲۴]
موړ به نه شی هيڅ سړے بے قناعته
که ئې خونه وی په سيم و په زر ډکه [۱۲۵]
بيا به نه موهی کمال بے کمينيه
که خيمه ئې وی دَ عرش دَ پاسه لکه [۱۲۶]
که جهان په نورعالم باندے فراخ دے
په تنګ چشم باندے تنګ شه ترڅيکه [۱۲۷]
دَ دے دهر په يارانو کښې اب نشته
که ئې غواړے تر سما و ترسمکه
ترشے اوښے دَ عاشق اب و نمک دی
خدائے دِ نه کا څوک بے ابه بے نمکه
دا درازے انديښنے مه کړه رحمانه
دَ دنيا چارے په تله دی تردمکه [۱۲۸]

۲۱۰۹ ۲۳/۱۷۹ ۸

چه ئے خونہ دَ سیلاب پہ مخ شوه لکه
دَحباب تماشه گوره تر دمکه
هیڅ پکار نہ دہ ویسا دَ پاڼ پہ سیوری
که تر لاندے وی دَ اوسپنو کوډیکه
دا دَ لاندے بہ همہ وارہ چیت پیت[۱۲۹] شی
مګر سر وی چا وکښلے تر فلکه
چه پہ اصل خدائے نسکور دے پیدا کړے
څوک بہ څه خوری دَ سپهر لہ ښانکه
چہ دښمن ئے دوست نمائے وی اړولے
دَ هغو احتیاط یو یہ لہ کومکه
راشه واچوه دَ نفس وخولے تہ خاورے
څو دِ نه ده خولہ دَ ګور پہ خاورو ډکه
هر چہ ډکه ئے دَګور پہ خاورو خوله شی
پہ هغو باندے حرام دہ نوره څکه
که نور څوک ومبارکی کا وبله نورے
و رحمان ته دِ خپل یار وی ومبارکه[۱۳۰]

۲۱۲۴ ۲۴/۱۸۰ ۱۵،

ته ناحق پہ ما کینہ کړے کینہ ناکه
پہ کینہ بہ ائینہ نه کړے څپیاکه[۱۳۱]

(۱۳۲)
څوک بے وجهے چاتہ تورے توبری اخلی
خپل عمل دے چہ دنیا ئے کړه هلاکه
چہ خندا ئے دَ بلبل پہ آهِ سرد کړه
خدا ئے دَ ګل ګریوان پاره کړ سینہ چاکه
ځکه سینے شوے اول د حباب ستر ګے
(۱۳۳)
چہ له بغضه پہ دریاب ڇوی تنہا که
که تن زمکه کړے زړه تخم باران او ښے
(۱۳۴)
لکه نخل سر بہ وکاږے له خاکه
بالادست بہ شے هاله پہ نورو ونو
که تعلیم دَ زیردستئ واخلے له تاکه
بیا بہ نه موجے دَ ترکو واک او حکم
(۱۳۵)
څو ونہ ووځے دَ جهان له جمله واکه
دَ هغه جهان ژوند ون بہ هغہ مومی
(۱۳۶)
چہ لاس وکاږی دَ دے جهان لہ ژواکه
تہ چہ ژغورے سر ومال پہ عاشقئ کښے
(۱۳۷)
عاشقی دا هسے چرے ده کاواکه
(۱۳۸)
چہ دا هسے بزرګ میلمہ وکورتہ بیا ئے
اول غولے پاکیزه کړه له خاشاکه
پہ دوئ کښے بہ ورنہ شے تر توحیده
څو ضمیر دِ خالی نہ شی له اشراکه
دا همه واړه حجاب دے چہ لیده شی
(۱۴۰)
نور دَ حسن بالا تر دے له افلاکه

په ظاهر لباس غلط دَ دنیامه شه
میان ئے کوره چه چغزی ده که متاکه (۱۴۱)
اولیاء په جهان ځکه څرګند نه دی (۱۴۲)
چه پاک ژوی خپسر نغاړی له ناپاکه
هیڅ وفا ئے له هیچا سره ونه کړه
ترو رحمان به څه مانه کا له افلاکه (۱۴۳)

۲۱۳۶ $\frac{۲۵}{۱۸۱}$ ۱۲

که په هجر کښے څوک ما پښتی له حاله (۱۴۴)
حال خو دا دے چه ناتوان یم بے مجاله
زه چه نه شوم تیر ید ے له یوه خسه ق
مینے تیر کړم هم ترسره هم تر ماله
نه حجت لرم نه عذر بے چاره یم ق
چه ئے زړه هغه را کاندی نونهاله
چه مے لاس دَ مهرویانو پیچاوی کړه (۱۴۵)
لاس مے وواته له آله له عیاله
زه دَ یار په دیدن ځکه شتابی کړم
چه دَ عمر بقا نه وینم تر کاله
چه ترحسنه ترجماله ئے ځار نه شوم
شرمنده یم دَ خوبانو ترجماله
نه وماته نصیحت مه کړه ناصحه (۱۴۶)
عشق بے نیاز دے له ثوابه له وباله

بے دَ خپل اشنا دَ حسن لہ تعریفہ
هیڅ مے مہ پښتہ لہ نورہ قیل وقالہ
ما دَ عشق پہ درس کښے نورڅہ لوستی نہ دی
بے لہ زلفو بے لہ خطہ بے لہ خالہ
پہ دنیا پہ اخرت مے دِ خدائے نہ کا
بے نصیب دَ مهرویانو لہ وصالہ
زہ رحمان بہ دَ یار وصف تمام نہ کړم
کہ مے هر ویښتہ زبان شی پہ[۱۴۷] زرکالہ
کہ یار سر پہ دیدن غواړی مہ جاروځہ
دغہ حکم رحمان کړے دے دلالہ

۸ ۲۶/۱۸۲ ۲۱۴۴

څو ترمیانہ ورانہ نہ کړے دَ تن پولہ[۱۴۸]
وُبہ نہ رسے ترخدایہ تر رسولہ
خدائے وتا تہ دین دنیا پہ غورہ کښیښوہ[۱۴۹]
تا دنیا کړہ پہ دا دواړو کښے قبولہ
ترحرص پہ هورتہ بلہ بلا نشتہ
دا بلا دَ ستا پہ خونہ شوہ نزولہ
یو ساعت دَخدائے پہ ذکر مشغول نہ شوے
تمام عمر دَخپل ځان پہ غم مشغولہ
چہ باقی زندګانی[۱۵۰] پہ فانی پلورے
ځان پہ کوم دانش دانا بولے مجهولہ

له خالقه روګردان شوے و مخلوق ته
بیا و ځان ته عاقل وائے نامعقوله
نصیحت لکه هلک دربانده ےتریخ شه (۱۵۱)
دَ دنیا په شیرینئ پسے ملوله
چه رحمان غوندے خورسند نه شے په نول کښے
خلاص به نه شے په هیڅ رنګ دَ زړه له نوله (۱۵۲)

۲۱۵۳ ۹ $\frac{۲۷}{۱۸۳}$

څو به صبر په جفا دَ یار کومه
څو به موم دَ نمر و مخ ته ګرځومه (۱۵۳)
عاشقي او صبوری سره دروغ دی
زه به دا لاف په دروغ څرنګ وهمه (۱۵۴)
ته وماته نصیحت مه کړه ناصحه (۱۵۵)
زه دا خپل تخم خپل ځان لره کرمه
ما خو زده چه مینه اورده خدائے مین کړم
دانسته خپسر و اور ته اچومه (۱۵۶)
سر رشته مے خدائے همه دَ یار په لاس کړه
په هر لورے چه راکاږی پسے ځمه (۱۵۷)
دَ اشنا دَ مینے لاس زما ګریوان دے
زه په دا معامله کښے عذر نه لرمه
عاشقانو باندے حق دَ معشوقو دے
حق به ولے په باطلو بدلومه (۱۵۸)

ما چه مینه دَ یار فرضه په خپل ځان کړه
ترو له فرضو غاړه ځرنګه غړومه [۱۵۹]
دا هم ژوند دے چه یار نه وینم په سترګو [۱۶۰]
زه رحمان په جهان سترګے غړومه

۲۱۶۱ $\frac{۲۸}{۱۸۴}$ ۸

خبر نه یم چه ئے راواستوم له کومه
بیا ئے کومه خواته استوی چه دروومه
لکه ړوند چه لاس دَ بل په اوږه کیږدی
هیڅ ژوره لوړه نه وی ورمعلومه
خدائے راپیښه نری لار کړه نالیدلے
لکه ورانه ماشوړه هسے سرکومه [۱۶۱]
خراب زړه مے تورو زلفو ته هوس کړ
ولے کښیوت دَ مرغه په شیر په لومه [۱۶۲]
هسے کوږے عاشقۍ راباندے وکړے
چه سنګین خاطرے نرم شه ترمومه
چه ئے هیڅ له خدایه ترس و ویره نه شی
الغیاث دے دَ دلبرو تر رسومه
کله راکاندی شراب دَ لعلو لبو
کله جام دَ زهرو راکاندی چه شومه [۱۶۳]
ته چه ځان طالب شمیرے دَ مطلوبانو
اے رحمانه تروکه سیال یُے بیائے مومه

۲۱۶۹ $\frac{۲۹}{۱۸۵}$ ۸

که ستا خپله سیاه روئ نه وي دښمنه
آئينه زما دَ زړه نه ده خچنه
ته چه ماته په نظر دَ عيب ګوري
دغه واړه عيب ستا دے عيب ژنه (۱۶۴)
خپل صورت په آئينه کښے هرڅوک ويني
که څهره دَ چا صفا وي که ريمنه (۱۶۵)
چوهاړے دَ حلال خور په نامه بولي
له ښو خلقو بدګوئ نه ده ممکنه
ته چه بد له بله وائے زه ويريږم (۱۶۶)
چرے خپله بدي نه کړے معيّنه
تر هغه به ورو مے عيب ستا څرګند شي
وهرچا وته چه کړے دَ چا غندنه (۱۶۷)
هر رنګ تخم چه کرے هغه به اخلے (۱۶۸)
خپله خپله ميوه نسي هره ونه
که له خپله عيبه ځان ژغورے رحمانه
دَ هيچا له عيبه مه کوه پښتنه (۱۶۹)

۲۱۸۰ $\frac{۳۰}{۱۸۶}$ ۱۱

ډير عمر مے تير کړ بيهوده په زمانه (۱۷۰)
نور دِ زما سر وي او دَ تر کو استانه

هيځ مے حاصل نه شو په شيخئ او په تقوٰی کښے
پس له دے مے وار دے هرچه شي په ميخانه [۱۷۱]
شيخ او شيخي ورد و وظيفه او ذکر فکر
زه او ساقي جام و باده چنګ و ترانه [۱۷۲]
زه و زاهدانو ته حيران يم دوی و ماته
ديوانه به دِه ميخند د دِه به ديوانه
ګنج دَ دُروځار شه دَعاشق ترڅاڅکي او ښيو
نه خروار دَعقل نه دَعشق يوه دانه [۱۷۳]
تيغ دَ يار له لاسه په مرئ دَعاشقانو
هسے لذت کا لکه دَ ميو پيمانه [۱۷۴]
خدائے لره به ورشم په سودا دَيار له مخه
بل مقصد مے نشته په کعبه په بت خانه [۱۷۵]
زه له ډيرے مينے په تش بوی دَ يار شيدا شوم
تل دَلوند و ختو لړ او به وی بهانه [۱۷۶]
زهد کا زاهد که دَ يوه جنت د پاره [۱۷۷]
سَر بښندلے نه شي په او ربل دَجانانه
ګوره دَ منصور هسے په دار نه شے رحمانه
مه کړه دا دَعشق خبرے ډيرے مستانه [۱۷۸]
بلد ښبانه دَ عاشقئ نشته رحمانه
بے نام و نښان شه که ئے غوارے ښبانه

۲۱۸۸ ۳۱/۱۸۷ ۸

ق

شمع دَ دلبر سترگے عاشق پر پروانه
ځان پرخپل جلیا کا شي ئے خونه ویرانه (۱۷۹)
مطر په معنیٰ کښے دَ دلبر دَ مینے بحر
شه صدف دَ سترگو واړه پُر په دردانه
غم مے دَ زړه وینے ترچشمانو رابیرون کړے
اوښے نه وی وینے ولے شوئے دا بانه (۱۸۰)
زه په دے له سترگو سیند دَ اوښیو بهومه
وی مجے دَ وصل موج وهي په اب خانه (۱۸۱)
شوه چشمه دَ سترگو ستا دَ غم په وینو صافه
ځکه مے همیش اوښے بهیږی روانه
خیر دَ دیدن وخوار عاشق ته ارزانی کړه
ته دلبر غنی یئے دَ خپل مخ په خزانه
اوښیو دَ فراق دریاب ندے زور وکړ رحمانه
هیڅ پرواه ئے نه شي بے پرواهه مستانه (۱۸۲)
عقل دَ رحمان ئے په جفا سره مسلوب کړ
مه کړه مه کړه مه کړه هسے بده یارانه (۱۸۳)

۲۱۹۶ ۳۲/۱۸۸ ۸

دریغه ولیدے یو ځل هغه مخونه
چه دراز لری مژگان دراز قدونه

دراز قد دراز مژګان درازې زلفې
ورېښې شونډې وړه خوله واړه غاښونه
دَ اسمان شمس و قمر به تر قربان کړم
هم دَ زمکې په سر واړه سره[١٨٤] ګلونه
چه ئې ووينم په مخ مې اوښې دروي
دَ پسرلي له مخه ووري بارانونه
که يو ځله ئې مخ ووينم په سترګو[١٨٥]
ما په زړه کښې قبول کړي دي نذرونه
دَ هجران په شپه سورکټ راته سوړ اور شي
يو زمان مې باندې نه لګي ارخونه[١٨٦]
تورې زلفې دِ په سپينو ننګو ځانګي
ښاماران دي دَ چندڼو په ښاخونه[١٨٧]
که خدائې غم دَ جدائيه پراسان کړ
و رحمان وته اسان دي نور غمونه[١٨٨]



که له مخه يوه خوا کا حجابونه
خدائې به ورکا وخوبانو ثوابونه
کله وي چه يو په رنګ دَ هغه يار شي
که هزار شي په اسمان کښې افتابونه[١٨٩]
په ګرداب دَ زنخدان ئې هسې غرق يم
هيڅوک مه شه غرق په هسې[١٩٠] ګردابونه

لکه زه چه ئې له غمه په عذاب یم
خدائې دِ نه بندي په چاهسې عذابونه
گفتگوئې مې هیڅ اثر ورباندې نه کا
که له غمه ئې تصنیف کړم کتابونه
په یوه ځواب مې رد کا هزار سواله(۱۹۱)
هسې کاندي دَ سوالونو ځوابونه
هیڅ پایاب د فن فریب ئې موندهٔ نه شي(۱۹۲)
څوک به څه غواړي دَ بحر پایابونه
که لېږ ستر گې وبله کېږدم راته وائي
په یاري کښې عالم نه کاندي خوبونه(۱۹۳)
مال وملک ئې همه واړه اوبه یوسي
له هغو ستر گو چه دروي سیلابونه(۱۹۴)
دَ ابرویو و محراب ته ئې حیران یم
څه نسبت لري بتان او محرابونه
ما هاله له پارسائیه وو لاس وللي(۱۹۵)
چه په لاس کړه مطربانو ربابونه
ارغواني جامې ئې واغوستې رحمانه(۱۹۶)
بیا ئې جوړ کړه ستا دَ قتل اسبابونه

۸ ۳۴/۱۹۰ ۲۲۱۶

ژوندي کاندي دَ دنیا کاروبارونه(۱۹۷)
په مړو پرېبواته دَ خاورو انبارونه

ځوک سرتور پښے يبله خاورو لړه درومي (۱۹۸)
چا کاږه دي په سر ينبي دستارونه
ښه توښه دَ سکه وروښو سره نه شي
بلکه يو ځبله اخلي ازارونه (۱۹۹)
دَ يوے داتے له ښاخه پيدا کيږي (۲۰۰)
په چمن کښے هم ګلونه هم خارونه
هومره خلق هره ورځ له دنيا درومي
چه ئے نه په چا حساب شي نه شمارونه
يو يو وارد ے په هر چا باندے تيرشوے (۲۰۱)
هميشه په هيچا نه وي دا وارونه
ډير تودوکي بازارکي مے ترسرتيردي (۲۰۲)
ځوک دِ نه کا په ما قينځ و بازارونه
جدائي دَ اشنايانو هر دم کاندي
په رحمان باندے دَ تورو ګوزارونه

۲۲۲۳ $\frac{۳۵}{۱۹۱}$ ۷

راکوي دَ بے درديه پيغورونه (۲۰۳)
بلوي مے په تندي باندے اورونه
نورخه نشته واړه غوښے دي دَ زړونو
چه ورڅلے شي دَ ترکو په قورونه (۲۰۴)
هرنګاه ئے په وکښه دَ زړونو شيردے (۲۰۵)
هميشه را باندے ازمائي زورونه

(۲۰۶)
خدائے دِ تور دَ تورو سترگو چانہ نہ کا
عالمونہ ئے ورکیږی پہ تورونہ
یو دَ حسن اور ئے بل کړہ پہ جہان کښے
پہ دا اور باندے ئے وسوہ ډیر کورونہ (۲۰۷)
زہ دَ یار پہ مینہ غل کړم رقیبانو
ګنہ نور ئے کوم راپورے وو پورونہ
(۲۰۸)
دَ رحمان دَ عاشقیہ ھسے غږ شہ
چہ برپا ئے شو پہ ھر ښھر کښے شورونہ

۸ $\frac{۳۶}{۱۹۲}$ ۲۲۳۱

پہ خاطر مے غلبہ شوہ ستا غمونہ
لږ دَ خدائے دپارہ کیږدہ قدمونہ
څہ خو قیاس زما دَ ډیرو اوښیو وکړہ
(۲۰۹)
چہ مے چرے وو پہ تن کښے دا زیمونہ
ھرچہ ستا پہ دم ژوندی دی نہ رغیږی
کہ بے تا پہ ځان پوکی ھزار دمونہ
کہ ھزار ھزار دمونہ پہ ځان پوکا
(۲۱۰)
نور بہ نہ کا پہ دمونو قلمونہ
(۲۱۱)
لہ قسمتہ خلاصیدہ دَ ھیچا نشتہ
کہ داخل شی دَ مکے پہ حرمونہ
سړے کلہ پہ کوشش ترځایہ رسی
(۲۱۲)
ځو دَ خدائے لہ لاستہ نہ وی کرمونہ

چہ توانګر دَ قناعت پہ خزانہ شی
نور بہ څہ کاندی دینار او درمونہ[۲۱۳]
قسم وخوری لہ خوبانو بیا ئے مات کا
څہ باور دے دَ رحمان پہ قسمونہ[۲۱۴]

۲۲۴۲ $\frac{۳۷}{۱۹۳}$ ۱۱

زہ بہ نورہ نہ کړم پہ ښتانو باندے مینہ
کشکے څوک مے کښلی توری وران کا لہ جبینہ[۲۱۵] ق
زہ بہ نورہ نہ کړم پہ خوبانو باندے مینہ
مینہ دَ خوبانو وچوی دَ صورت وینہ
خدائے زما پہ برخہ عاشقی کړہ لہ ازلہ
خوښ یم پہ دا برخہ کہ ترخہ دہ کہ شیرینہ
زهر دی کہ قند دی هم پخپلہ خولہ څټکند دی
نہ مومی څوک خوند دَ بل دَ خولے لہ انګبینہ[۲۱۶]
راشہ نجومی زما دیارہ فال وګورہ
تللے یار بہ کلہ لہ سفرہ راشینہ[۲۱۷] ق
ښہ توښہ مے نہ شی پہ تنش ډاډ دَ کور او کلی
مرد بو یہ چہ واخلی دَ غم پیتے لہ غمګینہ
زمکہ هغہ سوزی هرچہ اور ورباندے بل وی
روغہ خلقہ شوہ دَ رنځورو تماش بینہ[۲۱۸]
نورعالم بہ څہ کړم زہ مرید دَ هغہ کس یم
هرچہ وما راکا یو پیغام لہ نازنینہ[۲۱۹]

څو به سُوک په سترګو غړوم له هسې غمه
څومره به تل وینې دَ زړه څاڅي له استینه[۲۲۰]
سرۀ دَ رحمان دروهي دَ هجران په تیره توره
ته ئې نګهبان شې یا اِلهٰ العٰلمینه[۲۲۱]
اور دَ جدائیه په رحمان دے لګیدلے
وقت دے که مدد کړے یا میران محي الدینه

۱۰ $\frac{۳۸}{۱۹۴}$ ۲۲۵۲

یادوے په خوله مکه او مدینه
نسکور پروت یې دَ عورتے په سینه[۲۲۲]
زوړند سر لکه غنچه مراقبه کړے
پټ دِ نقش دَ زړه رخت دے رنګینه
دَ اطلسو قبا غواړے نه ئې مومے
له ناکامه دِ خرقه کړه پشمینه
عبادت دِ څو تیرے تر معصیت کړه[۲۲۳]
څه خو ونسه وځان ته ائینه
کینه بده ده بے شکه جنګ حرام دے
نه له نفس او له شیطان سره کینه[۲۲۴]
دَ مردانو کار له نفسه سره جنګ دے
نه زنان غوندے له نقش و نګینه
تر ناپاکو نارینه وُ ده بهتره[۲۲۵]
پاک دامنه پرهیزګاره ارتینه

دَ دیندارے ارتینے تر یوے کوښے (۲۲۶)
صدقه شه سل بے دینه نارینه
نیکوکار سړے بهتر وی که خوردسال وی
تر سپین ږیریه بدکرداره دیرینه
بدکردار که صدساله وی و رحمان ته (۲۲۷)
څرګندیږی لکه طفل شبینه

۲۲۵۹ $\frac{۳۹}{۱۹۵}$ ۷

ق

اے دَ نوس او دَ حرص په هوالیوه
په ظاهر صورت فرښته په معنیٰ دیوه (۲۲۸)
شدادی خصلت دِ ونیوه دَ ظلم
خبر نه شوے دَ مسکین دَ زړه له غریوه (۲۲۹)
تا چه ځان دَ مرغونے په دود تریخ کړ
په دے خوی به برابر نه شے له سیوه (۲۳۰)
فر وجود به دِ په څه رنګه حصلیږی
چه دِ لیک دَ یار له دره دوه ودرے وه (۲۳۱)
په ظاهر صورت تند رست په روح رنځوره
دریغه وسوے تر روغ پوست لاندے مخ نیوه (۲۳۲)
دَ نیستی له مکافاته هسے خلاص شه
چه هستی ئے دَ فنا په مخ ایرے وه
نیمه شپه وُوده ئے پاخوه له خوبه (۲۳۳)
و رحمان وته پخپله په نارے وه

۲۲۶۷ ۱۹۶/۴۰ ۸

چه په نورخه پورے زره ترے بے خدایه
څه دِ زده چه دا په ځائے کړے که بے ځایه [۲۳۴]
دا خو نشته چه به تل ترتله پائے
که بیا پائے خو ترسلو کالو پایه
که دِ سل کاله شی عمر خو به تیرشی
دغه پسه به بیا [۲۳۵] څه کړے راته وایه
سم دَ لاسه چارے نه شی مردهغه دے
چه بیداروی وغلیم وته له ورایه [۲۳۶]
ته په اصل کښے سړے ئے خاروے نه ئے
دَ چارپایو چارے مه کوه دوپایه
مرتبه به دِ دَ مچ او دَ میږی شی
زره په غوښو په غوړ مه تره همایه [۲۳۷]
موږ به نه شے په حرص بے قناعته
اے په تخت دَ اورنګ زیب [۲۳۸] ناسته ګدایه
وړاندے سرائے لره توښه تره رحمانه
خو سفر دِ کړے نه دے له دے سرایه [۲۳۹]

۲۲۷۷ ۱۹۷/۴۱ ۱۰

که دَ عقل څه اثر لرے و سرته
لاس په سرمه شه دَ هر ګیدی و درته [۲۴۰]

پہ نظر دَ هغو خاورے سرہ زر کیږی (۲۴۱)
هر چہ نہ لری نظر و سیم و زر تہ
بے منتہ جام دَ زهر و ښہ ښہ دے
نہ هغہ چہ منت بار وی و کوثر تہ
دَ یوسفؑ لہ حالہ زده کړه دغہ پسہ
وایہ حال دَ زمانے و برادر تہ
دے فلک و چا تہ هیڅ بخښلی نہ دی
چہ ئے نہ دی راپرو دلی ځنے بیرتہ (۲۴۲)
دَ خروار دعوی ئے وکړه ممکنہ
کہ ئے پور وی دَ یوے جو دانے در تہ
کہ لہ خدایہ دِ و خلقو تہ مخ شی
لہ فردوسہ بہ دِ مخ شی و سقر تہ
همیشہ بہ در پہ در ګرځے رټلے (۲۴۳)
دَ استو ګے ځائے بہ نہ مومے هیچرتہ
اے رحمانہ کړونے وګوره چہ څوک دے
لہ درګاهہ ئے سرمہ اخلہ بل در تہ (۲۴۴)
دَ دے سست بدن منت پہ رحمان باندے (۲۴۵)
چہ لہ خپلہ درہ تلے نہ شی بل در تہ

۲۲۸۵ $\frac{۴۲}{۱۹۸}$ ۸

چہ نظر کړم دَ خوبانو و رخسار تہ
حق حیران دَ خدائے پہ کړه شم و دے کار تہ (۲۴۶)

له دهشته ئے ریبار وړ دوے نه شم[۲۴۷]
خدائے زده څه به ئے وئیلی وی ریبار ته
خلوتیان لکه برده پکښې خرڅیږی
غړ ئے نه خیژی دَ حسن وَ بازار ته
ته چه ما پښتے دَ یار له حقیقته
څوک دَ یار خبرے کاندی واغیار ته
درد وغم دَ عاشقۍ څه هومره نه دے
چه ئے عقل دَ چارسی و مقدار ته
زه او یار چه سره خپل غمونه شمار کړو[۲۴۸]
یار و ما ته حیرانیږی زه و یار ته
دَ دنیا چارے همه واړه په وار شی[۲۴۹]
ما دَ یار غمونه نه پریږدی وَ وار ته
رحمان هسے وزګار چرے دے له عشقه
چه غوږ ونسی ناصح غوندے وزګار ته[۲۵۰]

۲۲۹۲ ۴۳/۱۹۹ ۷

مخ ته دِکه نمر وایم دَ نمر زلفے تار تار نشته[۲۵۱]
قد دِکه په سرو بولم دَ سروے یون رفتار نشته
هر څوک چه دِ ګل وَ اتشین رخسار ته وائی
پوچ وائی دَ اور په مخ کښې وقر دَ ګلزار نشته[۲۵۲]
زلفے دِ ناحقه څوک سنبل بولی دلبره
وے چه دَ مښکو سره هیڅ دَ ګیاه کار نشته[۲۵۳]

ما چہ غږ پہ غوږو ستا دَ سپیو اوریدلے دے
هسے رنګ بلبلہ پہ چمن کښے خوش ګفتار نشتہ (۲۵۴)
ستا دیدن هغہ کا چہ ئے سر پہ تنہ نہ وی
ولے چہ دَ سر دَ ښښتن هورے وتہ لار نشتہ (۲۵۵)
دا خو خدائے دے چہ ئے ستا زنخدان
پہ ونہ دَ سروے پورے هرګز دَ میوے بار نشتہ (۲۵۶)
یار بہ دَ رقیب پہ لوری خدائے نہ کړہ رحمانہ
ځکہ چہ دَ سپیو دَ فرښتو سرہ روزګار نشتہ (۲۵۷)

ق

۲۳۰۳ $\frac{۴۴}{۲۰۰}$ ۱۱

ستا پہ مخ کښے څہ حساب دَ جمال نشتہ (۲۵۸)
ځکہ ما څخہ دَ صبر مجال نشتہ
تہ دَ سر او دَ مال ویرہ پہ ما مہ ږدہ
ویرہ ما څخہ دَ سر او دَ مال نشتہ
زہ پہ دا سبب لہ ویرے سرہ ریږدم
چہ ستا ویرہ دَ ثواب دَ وبال نشتہ (۲۵۹)
کہ وعدہ دَ یوے چارے یو ساعت کړے
دَ هغے چارے امید مے پہ کال نشتہ
مخامخ کہ راتہ وګورے دلبرہ
پہ کاتہ کښے دِ ثواب دے وبال نشتہ (۲۶۰)
دَ شهید وَحال تہ ګورہ حال ئے څہ دے
بے تا هسے حال زما دے بل حال نشتہ

روښنائي مے دَ چشمانو ستا دیدن دے
په دا کور کښے بل چراغ او مشال نشته
په جوئبار زما دَ سترګو سروه ته يُے
په دا نهر باندے غیر نهال نشته
مخ دِ بے خطه بے خاله هسے زیب کا
چه ئے هیڅ حاجت په خط او په خال نشته (۲۶۱)
دَ افتاب په مخ کښے هره ورځ زوال دے
ستا دَ حسن په افتاب کښے زوال نشته
ستا په یادو رحمان هسے رنګ مشغول وی
چه په زړه کښے ئے هیڅ غم دَ وصال نشته

۱۴ ۲۳ $\frac{۱۴۵}{۲۰۱}$ ۱۱

که څوک لاس له سوده وکاږی زیان نشته
په ملنګ باندے قلنګ او تاوان نشته
دَ وفا خریدار دِ بله خوا ته درومی (۲۶۲)
دا متاع دَ زمانے په دوکان نشته
جدائي له اشنائیه پیدا کیږی (۲۶۳)
نا اشنا لره هیڅ غم دَ هجران نشته
مګر ځان وخدائے ته پاسلی په امان شی
ګنه بله خوا دَ هیڅ امان نشته
هغه یار به زه وَکومه خوا ته غواړم
چه ئے هیچرے منزل و مکان نشته (۲۶۴)

(۲۶۵)
دلبران که هرڅو ډیر دي په جهان کښې
زما یار غونډے دلبر په جهان نشته
چه هم قد لري هم زلفې هم سرے شونډے
دغه هسې رنګ افتاب په اسمان نشته
عشق عاشق لره یو هسې ګلستان دے
(۲۶۶)
چه وَ باغ وته ئے لار دَ خزان نشته
عاشقان په عشق کښې واړه سلطانان دي
په دا ښهر کښې نیستکار او ناتوان نشته
(۲۶۷)
که مجنون غونډے په عشق کښې څوک صادق شي
دَ لیلیٰ په دروازه کښې دربان نشته
دانایان به دَ رحمان په قال پوهیږي
(۲۶۸)
دلته کار دَ هیڅ نااهل و نادان نشته

۲۳۲۳ $\frac{۴۶}{۲۰۲}$ ۹

ق

(۲۶۹)
په دنیا کښې مخ دَ یار دے نورڅه نشته
هرڅه دے دَ یار دیدار دے نورڅه نشته
چه وهجر و وصال ته ئے نظر کړم
یو دوزخ دے بل ګلزار دے نورڅه نشته
کارخانه چه دَ دے دهر لیده کیږي
همګي دَ عشق سرکار دے نورڅه نشته
هر مژګان ئے په ما هسې چارے کاندي
وایم عین ذوالفقار دے نورڅه نشته

بویه مرد چه ئے له مخه زلفے واخلی
دغه گنج دے دغه ماردے نورڅه نشته

دَ محسن دَ محسنات صفت به څو کړم[۲۷۰]
کوتاه وایم چه بے شماردے نورڅه نشته

هرطبیب ته چه ځان وښیئم دا وائی
چه له عشقه دِ ازار دے نورڅه نشته

وهرلور ته چه دَ زړه په غوږ وځیر شم
جوړ دَ محبت بازاردے نورڅه نشته[۲۷۱]

خوار رحمان که بے تامینه په چاوکا
عین دَ قتل سزاوار دے نورڅه نشته

۲۳۳۳ ۱۰ $\frac{۴۶۷}{۲۰۳}$

ق

زړه مے هسے رنګ بیمار دے ستاله درده
چه دَ مرګ په انتظار دے ستاله درده[۲۷۲]

زه یوڅه چه لا وخلق وته نظرکړم
همه واړه ګرفتار دے ستاله درده

بلبلانو دَ ګل حسن بهانه کړ
په چمن کښے ئے چغار دے ستاله درده

دا سرود چه نرم نرم وئیل کاندی[۲۷۳]
فریادی ځنے هرتار دے ستاله درده

دا مجلس (چه) دَ سرود په اوازمست شه[۲۷۴]
اروید لے ئے ګفتار دے ستاله درده

و هرلورته چه د زړه په غوږوځیرشم
د ویشتلیو انګهار دے ستا له درده (۲۷۵)

زه چه اه کړم شین لوګے مے له خولے خیژی
په کوګل کښے مے انګار دے ستا له درده (۲۷٦)

نښته څوک چه د زړه حال ورته ښکاره کړم
هریو یار له ما ویزار دے ستا له درده

چه هیڅ حال ئے د کنړ ون نه معلومیږی
زړۀ مے هسے رنګ افګار دے ستاله درده

د رحمان نارے به څوک اروی دلبره
هغه څوک دے چه وزګار دے ستا له درده (۲۷۷)

۷ ۱۴۸/۲۰۱۴ ۲۳۴۰

که زما مینه په تا ده خطا نه ده
که بے تا ده نا روا ده روا نه ده

څوک چه بے د ستا له مخه بل مخ ګوری (۲۷۸)
ائینه ئے ناصفا ده صفا نه ده

هرعاشق چه په خپل یار پسے ژړا کا (۲۷۹)
دا ژړا واړه خندا ده ژړا نه ده

د دنیا په تماشا چه څوک نازیږی
خو هم نن ئے تماشا ده سبا نه ده

که ته سل ځله له ما سره جفا کړے
ستا جفا واړه وفا ده جفا نه ده

هغه تیر شو چه مے مینه په غلا غلا کړه
اوس په درست جهان رسوا ده په غلا نه ده (۲۸۰)
معشوقه که د خپل سر په بها مومی
و رحمان وته ویړیا ده بها نه ده

۲۳۵؛ ۴۹/۲۰۵ ||

له اغیار سره خندا څه په کار نه ده
له اغیار سره سودا څه په کار نه ده
سل یاری د یوه یار د پاره کیږی (۲۸۱)
اشنائی د هر اشنا څه په کار نه ده
بد له بد و سره بویه نیک له نیکو (۲۸۲)
د جفا په ځائے وفا څه په کار نه ده
هر بُلبل به دِ ثنا کا که ته گل شے
په خپل ځان خپله ثنا څه په کار نه ده
عشق دَ بوئی په څیر په پټه خوله څرګند دے (۲۸۳)
په دا چارو کښے غوغا څه په کار نه ده
د عشق درد واړه عاشق لره راحت دے (۲۸۴)
د دے هسے درد دوا څه په کار نه ده
عاشقی حرص و هوا دی سره لرے
د بیمار په ځان هوا څه په کار نه ده (۲۸۵)
عاشقی نادره چار ده په جهان کښے (۲۸۶)
ولے بے خدایه سودا څه په کار نه ده

(۲۸۷)
که ئې کړم هم څه ئې نه کړمه سوګند دے
وابستګی د دے دنیا څه په کار نه ده
(۲۸۸)
د دنیا مینه بے کاره اوریدہ شوہ
چه مے ولیدہ رښتیا څه په کار نه ده
(۲۸۹)
که رحمان په جهان ډیر پائیم دلبره
زندګی زما بے تا څه په کار نه ده

۲۳۶۲ ۵۰/۲۰۶ ॥

چه مے مینه خدائے په تا باندے پیدا کړه
ترکه ما په هغه ورځ خپله رضا کړه
اوس د ستا رضا جفا کړے که وفا کړے
ما د ستا جفا قبوله په وفا کړه
ګل په لعل و په ګوهر کله څوک پیری
بے له ما چه تا خندا کړه ما ژړا کړه
(۲۹۰)
بے له ما چه د ستا غم په هوس پیرم
کوم وکړے په هوس د غم سودا کړه
(۲۹۱)
د وه یاران به دا رنګ نه وی چالیدلی
چه یوه ورته بنکنځل کړه بل دعا کړه
ما و درست جهان ته شا وتا ته مخ کړ
تا و درست جهان ته مخ وما ته شا کړه
نا اشنا د بیلتانه له غمه څه زده
خدائے دغه خواری په برخه د اشنا کړه

عاشقان د یار تر سپیو هم ځاریږی
ګنه ما د رقیبانو څه پروا کړه
هم په دائے ترهمایه نام بلند شه
چه قبوله عندلیب د ګل جفا کړه
ډیر هندکی په جهان ګرځی دچا یاد دی
عشق عالی پایه د هیراود رانجا کړه
زهٔ رحمان چه ستا دحسن ثنا خوان شوم (۲۹۲)
ستا له رویه درست جهان زما ثنا کړه

۲۳۷۷ $\frac{۵۱}{۲۰۷}$ ۱۵

(۲۹۳)
یاړ تر وجار باسه هاله زراعت کړه
تقوٰی دار شه هله طمع دجنت کړه
عاقلان په وړاندے ځی په وروستو ګوری
په دنیا کښے سرانجام د آخرت کړه
سم له لاسه کار هر ګوره ډیر مشکل دے
څو لا نه ئے غریب زیرمه دغربت کړه
چه نور خلق ملامت درباندے وائی
لا پخوا ترخلقو خپسر ملامت کړه (۲۹۴)
چه عقبٰی د دے دنیا په اجرموے
خو هم دا عمارت هلته عمارت کړه
څه به ګورے دقیامت و ورځو شپو نه (۲۹۵)
خو هم دا جهان په ځان باندے قیامت کړه

چه دِ نیک وبد په تله کښې تلل شي
خود پخپله تله واخله عدالت کړه
که لښکرے د حرص دربانده زور شي
سر دننه په قلعه د قناعت کړه
دا به نه شي چه ستا خپل وي د حق ځوي
که حق غوارے ته هم ځ په حقیقت کړه [۲۹۶]
هغه زړه چه عرش الله دے کوره کوم دے
څو دِ توان شي د جمله زړونو خدمت کړه
وړاندې هم واړه ستا په خیر سري وو
ته هم پاڅه د هغو په خیر همت کړه [۲۹۷]
د دنیا چارے خو کل واړه فاني دي
بارے پورته شه یو بل رنګ حکمت کړه
په طبیب د عاشقانو دارو نه شي
درومه بله خوا دارو د خپل زحمت کړه
څو دِ حق موندلے نه دے بے غم مه شه [۲۹۸]
په دا مرسته جهان واړه لت په لت کړه
اے رحمانه اول ته نصیحت واخله
دغه پسه بیا و بل ته نصیحت کړه

۲۳۸۷ $\frac{۵۲}{۲۰۸}$ ۱۰

ساقي پورته شه د میو جام تیار کړه
عمر هیڅ ما تلي نه لري تلوار کړه [۲۹۹]

زما ستا په ګلو ګرځی هر دم تیغ دے (۳۰۰)
هر نفس دخپل نفس له تیغه ډار کړه
ترخودی په هورته بله بلا نشته (۳۰۱)
خادمی د بے خودانو په دربار کړه
دا پینځه ورځے ژوندون چه غنیمت دے
شکرانه په دا نعمت د کردګار کړه
که غم خوار غوارے په غم او په اندوه کښے
بنیبنه ډکه د شرابو اختیار کړه
ځو دِ دوه سترګے غرېږی په جهان کښے
نندارة په هر ساعت دخپل نګار کړه
هغه ځوک دے چه تهمت پر وایه نه شی
غوږ په هیڅ باندے مه باسه خپل کار کړه
مدعی چه په زړه ورشی هغه وائی (۳۰۲)
ګوش وهوش د محبّانو په ګفتار کړه
بے وفا دی د دے دهر یاران وارہ
چه دِ پس له مرګه یار شی هغه یار کړه (۳۰۳)
رحمان وائی د دنیا چارے فانی دی
البته په دا خبره اعتبار کړه

۲۳۹۳ $\frac{۵۳}{۲۰۹}$ ۶

هسے یمه یاره ستا په غم تازه
لکه وی هره ګیاه په نم تازه

ستړکے وخورم که ئے کړم له غمه وچے
که مے کیږی په ژړا صنم تازه (۳۰۴)
زه به څه کړم دچا چارے بے له یاره
هر سړے په خپله سا په دم تازه
راستوی یو نوے غم زیرے د وصل
رغوی د زړهٔ پرهر مرهم تازه (۳۰۵)
که دِ زړه له غمه چوی دلګیرمه شه
کاتبان کا په چَول قلم تازه
ښائسته یاران ګلونه وی رحمانه
بیلتانه کړه اکثر مړاوی کم تازه

۲۴۰۱ $\frac{۵۴}{۲۱۰}$ ۸

اے زما د زړه آرامه راشه راشه (۳۰۶)
سرو قده ګل اندامه راشه راشه
چه دا نور خوبان دِ واړه مقتدیان دی (۳۰۷)
د همه واړو امامه راشه راشه
بے تا نشته هیڅ حرمت دعاشقانو
د مشتاقو احترامه راشه راشه (۳۰۸)
خدائے زده بیا به هسے وقت وی که به نه وی (۳۰۹)
زه ویریږم له ایّامه راشه راشه
نن هنګام دے که وفا کړے که جفا کړے
چارے نه شی بے هنګامه راشه راشه

دا جهان د مسافرو یو رباط دے
تلۀ دی تلۀ دی له دے کرامه راشه راشه
پری رویه فرښته خویه عنبر بویه
سُنبل مُویه لاله فامه راشه راشه
شپه لا پریږده بے تا ورځ را باندے شپه شوه (۳۱۰)
د رحمان ماهِ تمامه راشه راشه

۱۳ ۲۴ ۱۳ $\frac{۵۵}{۲۱۱}$ ۱۲

په دنیا کښے له دنیا کوشه کنار شه
سمتدر غوندے په اور کښے گل عذار شه
پس له مرګه که ژوندخوارے سر ګیاه کړه
په پریکړی سر بیانوے مرغزار شه
دا ترخے اوبه به څه کوے د بحر
خود په خپله د ګوهر په څیر ابدار شه (۳۱۱)
بے له خدایه نور د هیچا منت مه کړه
په وُچ کانی باندے ونه د کوهسار شه
که د ونے په څیر ګل و میوه غواړے
ځان په نمر کړه سائبان د هر خاکسار شه
دست په دست که د خپل کار په درستول ئے
لا ترځان وروميے ولاړ د بل په کار شه (۳۱۲)
که دِ ویره شی له خپلے درماندګیه
د درماندو دستګیری کړه خبردار شه

(۳۱۳)
که هوا دِ دجنت په خاطر کرځی
خاک نشین په استانه دهغه یار شه
(۳۱۴)
که په توره تاریکی کښې رڼا غواړے
ننداره چې د یارهٔ زلفو و رخسار شه
(۳۱۵)
که په کار دِ د سرو شونډو شیرینی ده
دخپل ځان په وینو سُور لکه انار شه
(۳۱۶)
که راضی ئے چه دِ باغ شی د زړه سبز
په ژړا لکه باران د نوبهار شه
د رحمان په عاشقی کښې ستر کے وشوے
(۳۱۷)
چه خوک وائی عاشق ړوند دے هغه خوار شه

۲۲ ۲۴ $\frac{۵۶}{۲۱۲}$ ۹

پاځه یو ځله سیراب دعشق په جام شه
(۳۱۸)
په ساغرد ماه و مهر ے آشام شه
له اوله بندګی بیا آزادی ده
که مقصود د آزادی لرے غلام شه
(۳۱۹)
د صیاد له وحشتونو خپسر خلاص کړه
لکه مرغ خانګی په خپله رام شه
ژوندے ځان په زمکه ښخ کړه لکه تخم
که لوئی غواړے دخاورو په مقام شه
درست جهان دکمینیه په خوی وخوره
لکه زمکه هسے لاندے تراقدام شه

په نیستئ کښې د هستئ مرتبه کوره
نندارچي په ویرانه کښې د خپل بام شه (۳۲۰)
و دښمن ته عیب خپل په خپله وائے
ځان ښخوا ترمرګه و وژنه مدام شه (۳۲۱)
په مستانو کښې دعقل ښبنتن غل دے
که په نورو خلقو خاص ئے دلته عام شه
اے رحمانه د بلبلو لفظ زده کړه
دغه پسه په صفت دګل اندام شه (۳۲۲)

۲۴۳۲ ۱۰ $\frac{۵۷}{۲۱۳}$

په امید د ګانده ورځے زړهٔ ورمه شه
نقد نسیا ځبله بیل کړه اوترمه شه (۳۲۳)
په امید امید ئے خلق نا امید کړهٔ
د فلک له رهزنئ بے خبرمه شه
د دنیا بادشاهان خواست کا له فقراؤ (۳۲۴)
ته بادشاه د هسے ملک ئے خواستګرمه شه
د همائے په خیر طعمه کړه وچ هډوکی
لکه مچ طالب د شهد و شکرمه شه
ځان صدف غوندے وخاورو ته کړه خیرمه
لکه ځګ هسے د بحر په سرمه شه
ډیر عزیز دی موم ډلان ترسنګدِ لانو
یو څڅوکے شه د اوښیو ګوهرمه شه

(۳۲۵)
حیوانات هم په تسبیح د خدائے مشغول دی
ته انسان ئے تر حیوانه بتر مه شه
نفس شیطان سرے وکفر ته وباسی
ق رحم فهم په ځان وکړه کافر مه شه (۳۲۶)
(۳۲۷)
تېپ ړانده دی عاشقان د یار له عیبه
ته تېپ ړوند د هغه یار په هنر مه شه
دغه ځائے د بیدلانو دے رحمانه
د دلبرو په کوڅه دلاور مه شه

۲۴۴۲ ۱۰ $\frac{۵۸}{۲۱۴}$

د دنیا د سود د پاره غمګین مه شه
(۳۲۸)
غم د دین او د ایمان کړه بے دین مه شه
هر ګره ګره کشائے لری کم بخته
نا امید له خدایه غوټه جبین مه شه
ډیر خفت دے دارنده چه دانه چین شی
څو دِ آب و دانه شته دانه چین مه شه
هر مرغه چه د بل غوښے خوری مردار دے
(۳۲۹)
ځان حلال کړه لکه زانه شاهین مه شه
د ذرے په څیر افتاب په طلب خپل کړه
لکه تیږه هسے پروت په زمین مه شه
کار په تش لستوني نه کیږی بے لاسه
(۳۳۰)
لاس په بزیره کړه بے لاسه استین مه شه

(۳۳۱)
عاشقي او خودبيني دي سره لرے
که مطلب دِ عاشقي وي خودبين مه شه
په خپل کور کښے دِ سفر دے که پوهيږے
مسافر د هندوستان او د چين مه شه
(۳۳۲)
خپل تابوت درته ولاړ زين کړے اس دے
ته په زيرمه د بل اس او د زين مه شه
چه تقوٰی ديانت نه لري رحمانه
(۳۳۳)
د دے هسے هم نشين هم نشين مه شه

۱۰ ۵۹/۲۱۵ ۲۴۵۲

هر ساعت چه مے گذران دے بے مخلصه
(۳۳۴)
هزار بار ارمان دے بے مخلصه
(۳۳۵)
که څوک وائي چه له ځان شيرين څه نشته
ولے ما ته ځان تاوان دے بے مخلصه
(۳۳۶)
لکه شمع په ورځ مرمه د شپے سوزم
تمام عمر مے نقصان دے بے مخلصه
په بلبل کله بهار کله خزان وي
(۳۳۷)
په ما کل سره خزان دے بے مخلصه
که شبنم هميش د نُور راباندے ووري
په ما کانړے د اسمان دے بے مخلصه
(۳۳۸)
ډير غمونه مے د هجر ترسر تير دي
اوس يو دم راباندے گران دے بے مخلصه

د اشنا د مینے اور وماته ګل دے
ګل د اور په دود سوزان دے بے مخلصه
په وصال کښے مے نه مرګ لیده نه تبه
اوس مے مرګ په هرزمان دے بے مخلصه
زه حیران د هغو خلقو په روزګار یم
چه زیستن ورته اسان دے بے مخلصه (۳۳۹)
د رحمان د زړه دمه په هیچا نه شی
مسافر غوندے حیران دے بے مخلصه

۲۴۶۹ $\frac{۶۰}{۲۱۶}$ ۱۷

که یو ځل مے هغه جان ولید مے دریغه
سرفراز مے سرګردان ولید مے دریغه (۳۴۰)
چه د تمام جهان عقل غلبیل کړی
ریز مریز مے ئے پیکان ولید مے دریغه (۳۴۱)
د وجود ګلزار ئے درست سره اغزی شو
خارستان مے باغستان ولید مے دریغه
روغ صورت لکه بادشاه وصحت تخت دے
ناست په تخت شاهجهان ولید مے دریغه (۳۴۲)
د تن ښهر ئے خرابه خرابی شوه
بیا مے دا خراب ودان ولید مے دریغه
لکه زه چه له دے خلقه ګریزان یم
رنځ مے هسے ګریزان ولید مے دریغه (۳۴۳)

دا سبق راته تعلیم شکستګی کړه
چه روغ کار شکستګان ولیدے دریغه (۳۴۴)
سخت ساعت زمکه اسمان راته یکسان کړه
فراق زمکے او اسمان ولیدے دریغه (۳۴۵)
وَ دے خپلے حیرانئ وته حیران یم
چرے خو وے صورت شادان ولیدے دریغه (۳۴۶)
د قرآن او دحدیث په کتو بنه شوے
بیا په لاس حدیث قران ولیدے دریغه
چه زما زحمت پیغور ګنی و ماته
ما هغه دځان په شان ولیدے دریغه
خپل یاران مے له زحمته په ژړا دی
ما دغه یاران خندان ولیدے دریغه
د اشنا زلفے مے ونیوے په لاس کښے
بندی لار دهندوستان ولیدے دریغه (۳۴۷)
صبح وشام مے ګدائئ دیار د در کړے
په دا کار مے ځان سهمان ولیدے دریغه (۳۴۸)
درخانئ د ادم خان په ارمان لاړه
لرے ما له زړه ارمان ولیدے دریغه (۳۴۹)
مخامخ مے ګفتګوے له یار سره کړے
ربه ما دِ دا احسان ولیدے دریغه (۳۵۰)
چه خطا دِ واړه عفوه کا رحمانه
یار دِ هسے مهربان ولیدے دریغه (۳۵۱)

۵ ۶۱/۲۱۷ ۲۴۷۴

اعتبار به په دنیا کوے تر کومه
دا رفتار به پسِ شا کوے تر کومه
خو به پټ له مرګه کړې سپینه ږیره
په روښانه ورځ به غلا کوے تر کومه
چه د دهر له یارانو وفا غواړے
صیادی به د عنقا کوے تر کومه
د پیرئ علاج په ډانګ په لوړه شی
د غه کار به په عصا کوے تر کومه
ته چه پند وائے ناصحه وَرحمان ته
شکایت به د قضا کوے تر کومه (۳۵۲)

۱۰ ۶۲/۲۱۸ ۲۴۸۴

ق

هر چه خپلے مینے خوار کړ خوار ئے مه کنه
عشق د رحمت ابر دے غبار ئے مه کنه (۳۵۳)
کله تور سنبل کله تور مشک کله عنبر شی
زلفے که د مار په څیر دی مار ئے مه کنه
یو مخ ئے د سوزه دے بل مخ ئے د ساز دی (۳۵۴)
عشق په اصل نار دے وے نار ئے مه کنه
ډیر بیدار وُوده وی لکه بُت په غټو سترګو
بُت که د رته غټ کوری بیدار ئے مه کنه

مراد خو یو اثر دے دخوبانو له رخساره
هرچه اثر نه لري رخسار ئے مه گڼه (۳۵۵)

خار چه په گل پورے وي دگلو په حساب دے
څه شو که ئے نوم دخار دے خار ئے مه گڼه (۳۵۶)

پوره خلق هغه دي چه اقرار په ناپوهي کا
هرچه ځان هوښیار گڼي هوښیار ئے مه گڼه (۳۵۷)

بد خو هم هغه وي چه خپل بد ورڅرگندوي
هرچه ځان بدکار گڼي بدکار ئے مه گڼه

هرچا چه اقرار د یار له زلفو سره وکړ
تل به ناقرار وي په قرار ئے مه گڼه

هرچه کمال غواړي کمینی دِ کا رحمانه (۳۵۸)
عین دغه چار ده بله چار ئے مه گڼه

۲۵۰۱ $\frac{۶۳}{۲۱۹}$ ۱۷

بیا دِ مخ دے جارو تلے څه بلا شوه
دا بلا له کومه لوریه راپیدا شوه

ورځ چه واوړي دغه هسے نه وي څه وي
لکه نن چه دخپل یار ومانه شا شوه (۳۵۹)

دا زما په یار کښے مهر وفا نشته
که دنیا واړه بے مهره بے وفا شوه

چه ئے هیڅ له خدایه نرس او ویره نه شي
په نصیب مے یوه هسے دلربا شوه

چه وحُسن ته ئےکورم حیرانیږم
راځرګنده یوه هسے تماشا شوه
څه دحد او دحساب خبره نه ده
بے صبری مے ترحساب په هغه خوا شوه
قراری مے په طلب کښے شوه حرامه
بے غمی مے په مذهب کښے ناروا شوه
چه راکښلے مے پر غشے د دُعا وو
هغه نخښه مے و نه ویشته خطا شوه
لکه پُوچ بادام بے مغزه بے حاصله
هسے پوچه بے حاصله مے دُعا شوه
عاشقی چه مے له خلقو په غلا غلا کړه (۳۶۰)
هغه غلا مے په تمام جهان رسوا شوه
څه بهره به له نسیاؤ ماله مؤم (۳۶۱)
چه مے نقده په ورغوی کښے نسیا شوه
درد دَ بیرته جاروتو شه راته پورے
په نصیب مے بله نه وه دا وه داشوه (۳۶۲)
یوه بخره هر سړی لره خدائے ورکړه
زما برخه اشنائیُ دخپل اشنا شوه (۳۶۳)
د تدبیر په دام به څشکله کښیوځی (۳۶۴)
معشوقه چه مے په مثل دعنقا شوه
چه ئے زر کړه زیږ رخسار زما دخاورو
عاشقی نه وه په باب زما کیمیا شوه (۳۶۵)

څه حکمت د يار په مينه کښې خدائے کښيښو
چه عاشق لره هم درد شه هم دواشوه (۳۶۶)
دا باران نه دے چه ووری له اسمانه
د مرغانو په رحمان باندے ژړا شوه (۳۶۷)

۲۵۰۹ $\frac{۶۴}{۲۲۰}$ ۸

په حالت د عاشقانو نظر بويه
په زيارت د شهيدانو گذر بويه
بے مرشده خبر څوک د مريد (۳۶۸) اخلی
غوڅ په غم د فرزندانو پدر بويه
بے ريباره رسيده ويارته گران دی
په کوڅه د مهرويانو رهبر بويه
بے هنره چا دولت موندلے نه دے
په خدمت د صاحبانو هنر بويه
ستا له سترگو ے هر گوره ملازه (۳۶۹) شی
له دے هسے سياه دلانو حذر بويه
ښه چه سترگے خدائے ملا کړے د ترکو
لږ په زړه د ظالمانو اثر بويه
ستا په داغ به هر يو زړه مشرف نه شی
دغه تاج د بزرگانو په سر بويه (۳۷۰)
چه خبر د رحمان نه اخلی يار بد (۳۷۱) کا
بادشاهان له گدايانو خبر بويه

۲۵۲۰ ۱/۲۲۱ ۱۱

ګاه په غارمه سوزے ګهے ریږدے په سارهٔ
کله مرے له لوږے کله مرے په ډیرخوارهٔ[1]
وارهٔ په غوغا دی چه راغلی په دنیا دی
نه ئے هغه وږی په قرار دی نه ماړهٔ
کله لاس په سرځبله کیږدی تواضع کا
کله وبله کیږدی لاس په توره په چارهٔ[2]
خاورے د ادمؑ چه خمیره کړے فرښتګانو
درست ئے په غمونو په دردونو ولاړهٔ[3]
څه شو که څوک نن ساعت واهه شی یا تارهٔ شی
پیښ به شی هغه هم په واهه هم په تارهٔ[4]
ځو به وی تندرسته دا زمونږه بناسسته
زه ئے درمانده یم په پښتی په اخارهٔ

ق

بنائی که ځوک پس له مرګه خاندی په لحد کښے
هرچا چه په دا ژوندون کښے خپسر وژارهٔ
وینم وارهٔ تلونی هیڅوک نه دی پاتوشونی
یون دے په دا لارے هم دځوان هم د زارهٔ
زلفے د دلدار دی چه هرڅوک ئے طلبګار دی
لوئے دی که هلک دی که غټان دی که وارهٔ
سخ د هغه چادے چه په درکښے ئے قبول شی
زار د هغه چادے چه له درهٔ[5] ئے شارهٔ

ما عبدالرحمان غوندے ځواب کړ ورته سلو
خدائے خبر چه کوم یو هغے ترکے ولاړهٔ[٦]

ق

۲۵۲۷ ۲/۲۲۲ ۷

اول زړه زهیروِل مینه د یار څهٔ
بیا له مینے جاروتل په لړه چار څهٔ[٧]
معشوقه چه د عاشق په مرګ راضی شی
وعاشق و ته خفګان په هسے کار څهٔ[٨]
چه رضا دخپل اشنا په رضا کیږدی[٩]
بیا په دا اختیار د پاسه بل اختیار څهٔ
چه وچا و ته رضا په ګمراهی شی
د مسجد د میخانے ترمیانه لار څهٔ
ته څه ځان د مُسلمان په نامه بولے[١٠]
چه په خوله دِ کلیمه په زړه کفار څهٔ
د ریا له عبادته استغفار کړه
چه وخلق و ته تسبیح، منم زنار څهٔ
یار بے نیاز دے اے عبدالرحمانه[١١]
بادشاهان ئے خاکِ پائے کړه پاتوخوار څهٔ

۲۵۳۷ ۳/۲۲۳ ۱۰

که څه وائیم له هجرانه وائیم څهٔ
له دے درده بے درمانه وائیم څهٔ[١٢]

توان د دم وهلو نه لرم و یار ته
چه توان نه لرم بے توانه وائیم څهٔ
چه ئے ووینم له ځانه خبر نه یم
چه خبر نه یم له ځانه وائیم څهٔ
د خپل زړه له حاله هیڅ راوئیل نه شی
له بے نامه بے نښانه وائیم څهٔ
د عشق راز چه هیچا نه دے بیان کړے (۱۳)
ترو به زه له دے بیانه وائیم څهٔ
د خپل یار له غمه درست په اوښو ډوب یم (۱۴)
له دے هسے رنګ طوفانه وائیم څهٔ
زه چه پروت یم د هجران په تناره کښے
د وصال له ګلستانه وائیم څهٔ
سرو مال د سرې لوټ کا زړه ئے نوسی (۱۵)
له دے هسے دِلستانه وائیم څهٔ
زاغان بولی بلبلان شړی له باغه
د دے دهر له باغبانه وائیم څهٔ
هر چه وائیم تر همه وارو بهتر دے
زه رحمان به له جانانه وائیم (۱۶) څهٔ

۸ $\frac{۴}{۲۲۴}$ ۲۵۴۵

ولے نه ګورے وماته سم په څهٔ
زیاتوے د غمزده ؤ غم په څهٔ

ستا په غم کښې چه ما وينې عالم ژاړي
ژړوے راسره نور عالم[۱۷] په څۀ
په مطلب دِ د سر و شونډو نه پوهيږم
چه مے وينے د زړه ښبې هر دم په څۀ
وَ دِ مے خپلو مستو سترګو ته دِ وايه[۱۸]
چه ورژنى مے قلم قلم په څۀ
ستمګار چه ستم کاندى څه بهانه کا[۱۹]
ته په ما باندے کوے ستم په څۀ
مه کړه خدائے چه څوک بے ياره خوښ خرم وى
زه به وُسم بے تا خوښ خرم په څۀ
زه رحمان بخښله کرم يم چه ميڼ شوم
دغه نور عالم مے بولى کرم په څۀ[۲۰]
لرے وُپښتنه چه حال ئے د زړه څه دے[۲۱]
د رحمان له سترګو څاڅى نم په څۀ

۲۵۵۲ $\frac{۵}{۲۲۵}$ ۷

ولے تللے ئے له ما مدام په څۀ
ترهيدلے ئے هر صبح و شام په څۀ
زه هر صبح و شام دعا کوم و تا ته
ته و ما و ته کوے دشنام په څۀ[۲۲]
هميشه لکه وحشى په وحشت ګرځے
يو ساعت راسره نه ئے رام په څۀ[۲۳]

دائمًا را ځخه دروے مخ په وړاندے [۲۴]
لکه عمر بیرته نه بړدے کام په ځه
راته وایه زه به هم هغه کومه [۲۵]
رقیبانو ته بخښے انعام په ځه
لږ پرهیز کړه له رقیبه دخدائے روئے دے [۲۶]
کړو وے سره حلال حرام په ځه
رحمان ستا په مخ بے ځنیو هم میئن دے [۲۷]
بیهوده دِ ورته کښینښو دام په ځه

۲۵۶۱ $\frac{۶}{۲۲۶}$ ۹

چه غرقاب شی ترمژګان په یم د زړهٔ
نورخراب شی خانمان په نم [۲۸] د زړهٔ
عبث وائے غم د زړه و بوالهوس ته
ځه پوهیږی هلکان په غم د زړهٔ
په بل مخ باندے سوا د یار له مخه
ما ترلی دی پچشمان محکم د زړهٔ
چه ئے عرش وکرسی لاندے دی ترسیوری
بالا تر دے هسے شان عَلَم [۲۹] د زړهٔ
دخلیلؑ ترکعبے دا کعبه ده لویه
که اباد کاځوک ویران حرم د زړهٔ
که نورخلق قدمونه بږدی په زمکه
ما دے یښے په اسمان قدم د زړهٔ

دا مکان چه د اسمان زمکے ترمیان دے
یو خلوت دے دا مکان سلم [۳۰] د زړهٔ
زه مَلهَم د زړهٔ له چا غواړم بے خدایه
چه کړے نه شی طبیبان مَلهَم [۳۱] د زړهٔ
صورتی همدمان ډیر دی په جهان کښے
ولے نه مومی رحمان همدم [۳۲] د زړهٔ

۱۲ ۷/۲۲۷ ۲۵۷۳

نه یم خوښ د سرو کلونو په سایا زهٔ
خوښ یم ستا د مخ په اوربانده جلیا زهٔ
په اُورسوے ښهر وران وی څه حکمت دے
سوے ستا د مخ په اور یمه بسیا زهٔ
خپلوم به دِ په هر رنګ چه خپلیږے
که دِ مومم په دروغه په رښتیا [۳۳] زهٔ
نن راغلی په جهان یُو که دیدن کړے
نه به ته په جهان راشے نه به بیا زهٔ
دا وړدے وعدے چه ته کوے منم [۳۴] ئے
کشکے بیامومم فرصت په دا دنیا زهٔ
په تبرونو دِ زه درست ذرے ذرے وے
خو یو دم نه وے له خپل یاره جدا [۳۵] زهٔ
ق
چه له ډیرے حیا نه کورے و ما ته
غوخ غوخ وړے یمه ستا ډیرے حیا [۳۶] زهٔ

چه له غمه له اندوهه دِ مړ نه یم
سنګ اهن یمه ادم نه یم ګویا زهٔ
که جوړه تلے ځوک وقبر وته دریغه
ژاړم دا چه یا به ته نهٔ ئے او یا زهٔ
همیشه دخپلو اوښیو له سیلابه
سرګردان یم تر فلکه ترآسیا زهٔ
که ځوک قیاس زما د ډیرو اوښیو وکا[۳۷]
هسے ګرځم لکه خس پاس په دریا زهٔ
زهٔ رحمان د یار ثنا کوے نه شم[۳۸]
کشکے مه وے په جهان کښے څه ګویا زهٔ

۲۵۸۳ $\frac{۸}{۲۲۸}$ ۱۰

په دوران ے هسے رنګ دلبر پیدا شهٔ
ګویا بل د نمر د پاسه نمر پیدا شهٔ
یا طالع د زمانے یا بخت زما وو
چه دا هسے رنګ شیرین بشر پیدا شهٔ[۳۹]
چه قاصد د ورک یوسفؑ زیرے پروکړ
د یعقوبؑ د سترګو بیا نظر پیدا شهٔ
عشق دے داکه یو فساد دے نه پوهیږم
په جهان کښے چه دا شور وشر پیدا شهٔ
دریغه نخل دعشق مه وے زرغون شوے[۴۰]
چه له ښاخه ئے د غم ثمر پیدا شهٔ

ملائک د عشق له غمه څه خبر دی
خو هم ما لره دا سخت سفر پیدا شهٔ
یو د ترکو بے نیازی بل عاشقی شوه
په پرهر باندے مے بل پرهر پیدا شهٔ
د نا اهل زویه پلار به څه ښادی کا(۴۱)
چه له پشته ئے لئیم پسر پیدا شهٔ
بیا به روغ د عاشقئ له رنځه نه شی
په هر تن کښے چه د غم اثر پیدا شهٔ(۴۲)
چه هنر عیب کوی عیب هنر کا(۴۳)
د رحمان په دور دا هنر پیدا شهٔ

۲۵۹۰ ۹/۲۲۹ ۷

بیا مے زړه د تورو زلفو مسخر شهٔ
چپ و راست مے د حبشو تور لښکر شهٔ(۴۴)
هر طرف مے د دعا غشی گوزار کړه
ولے یو هم هسے نه وو چه کارگر شهٔ
وَ هر لوری ته چه غوږ باسم غوغا ده
یا نارے د بیلتانه دی یا محشر شهٔ(۴۵)
واعظان خو وعظ کاندی بارے څه کا
چه د عشق په لیونو ئے گذر شهٔ
چه پدر رغوندے ئے ماته نصیحت کړ(۴۶)
په دیدن د ستا هغه زما پسر شهٔ

ستنا پہ در کښې چہ پراته دی نیک بختان دی
چہ د ستا له دره ووت در په د ر شهٔ (۴۷)
د عشق زخم به څوک څه کنډي رحمانه
چه ګنډ ون ئے په پرهر باندے پرهر شهٔ (۴۸)

۲۵۹۸ $\frac{۱۰}{۲۳۰}$ ۸

چه نصیب ئے سینه چاکه زړه افګار شهٔ (۴۹)
جرس ځکه په فریاد او په چغار شهٔ
چه ندا د عاشقئ په عاشق وشوه
د غفلت له خوبه پاخیدهٔ بیدار شهٔ
عبادت د ریا کار څه په کار نه دے (۵۰)
لکه غوک هسے په بحر کښې مردار شهٔ
د جاهل زهد په زهد حساب نه دے
لکه مال په خمر و خرڅ د خمرخوار شهٔ (۵۱)
مشقت د نادانانو واړه پوُچ دے
لکه بے بارانه ابر تش غبار شهٔ
علمیّت د بے عملو عالمانو
لکه ګنج د کتابونو په خرهٔ بار شهٔ (۵۲)
چه ئے کاندی و نااهل و ناقابل ته (۵۳)
نصیحت د ناصحانو کوم په کار شهٔ
د رحمان کلام په غوږ د بے هنرو
لکه دُر په لاس د طفل هسے خوار شهٔ

۲۶۰۵ ۱۱/۲۳۱ ۷

هیڅ مے نہ زده نہ پوهیږم داخہ پیږ شهٔ (۵۴)
چہ دلدار مے داغیار پہ شکل خیږ شهٔ
زمانہ مے د رقیب لہ لاسہ وژنی
چہ مے سپے کانہ هغہ راباندے شیږ شهٔ
د هجران غمونو هسے پہ عذاب کړم
هغہ عمر چہ مے لږ کانہ اوس ډیر شهٔ
چہ پہ تیغ مے لوبے کړے سزا مے دا ده (۵۵)
بس چہ غوخ مے زړه د ترکو پہ شمشیر شهٔ
تیر ساعت بہ د هیچا پہ لاس کښینوځی
اوس بہ څہ وایم وچا وتہ چہ تیر شهٔ (۵۶)
چہ مے نوشہ د هجران پیالہ کړه تلخہ
د وصال لذت مے کل زهر وکنډیر شهٔ (۵۷)
چہ ئے نہ پہ وفا یادنہ پہ جفا وی (۵۸)
سکہ رحمان د هغہ یار لہ دلہ هیر شه

۲۶۲۲ ۱۲/۲۳۲ ۱۷

چہ لہ سترګو مے خوناب د زړه عیان شهٔ
لہ نظره مے هر سنګ دُر و مرجان شهٔ (۵۹)
خراب زړه چہ مے ژړل د یار لہ غمہ (۶۰)
بیا پہ اجر د هغے ژړا خندان شهٔ

وغمونو ے میوه د بنادی وکړه
ق
مخ په پورته ے دغم لښتے روان(۶۱) شۀ
کمینیه له جمله افته خلاص کړم(۶۲)
لکه خاورے د دښمنو په چشمان شۀ
د غصے زهرے شهد شو له صبره
د خلیلؑ په دود آتش را ګلستان(۶۳) شۀ
عشق یو داد دے په عاشق باندے له خدایه
هسے نه چه وهرچا و ته عیان شۀ
چه په ژوندے اشنائی وشوه له مرګه
ق
د قیامت ساعت پرتیر په دا جهان(۶۴) شۀ
چه دیار زلفے رخسارئے په زړه نقش شو
خپل خلوت ئے هندوستان هم خراسان شۀ
د مکے حاجیان څه واړه حاجیان نه دی
ق
جوړ بازار په مُفلسانو کوهستان(۶۵) شۀ
د رنځور علاج ترخه ترخه دارو وی
دغه درد دے چه هم درد شه هم درمان(۶۶) شۀ
چه د ستنا دخولو بوی وربانده(۶۷) راغے
د عطار په مخ دا وښیو رود روان شۀ
عشق د یار په رانه وچولی ولجه دے
ق
خو چه وچولے ئے غوته کړتاوان(۶۸) شۀ
علامت د استغنا به ئے څر ګند وی
هغه ځوک چه تیر ترځان و ترجهان شۀ

دګريبان په چاکول ئې څه لارغه وی
چه ئې څپسر وړومبې چاک تر ګريبان شۀ[۶۹]
نادانان به د دنيا غمونه کاندی
مردهغه دې چه په زيرمه دخپل ځان شۀ[۷۰]
نښانه د نادانيه نوره څه وی
چه سړې په خپل کردار باندې پښيمان شۀ
ادميّت څه په دولت نه دې رحمٰا نه
بُت که روغ دې د سرو زرو نۀ انسان شۀ[۷۱]

۲ ۶۳۰ $\frac{۱۳}{۲۳۳}$ ۸

که په عقل پسې لاړم په کار نه شۀ
که له بخته مې ياری غوښته يار نه شۀ
غرونه غرونه خوب په څاڅکی اوبه تښتی[۷۲]
يار په سيند زما د اوښيو بيدا ر نه شۀ
معلوميږی زه کم بخت د درست جهان يم[۷۳]
چه د درست جهان دلدار مې دلدا ر نه شۀ
ما غندی او رقيب ستائی طالع ګوره
چه سړې ورته د سپی په مقدار نه شۀ
که ئې سل ځله اقرار را سره وکړ
دا زما نا قرار زړه په قرار نه شۀ
بې غمونو چه ئې وخوارۀ يو ځبله
په دنيا کښې مې بل هيڅوک غمخوار نه شۀ[۷۴]

که مے سل نصیحتونہ و زړه وړکړه
هغه خدائے بے لارے کړے په لار نه شهٔ (۷۵)
سهل کار دے که رحمان په زړهٔ آزار شوم (۷۶)
چه خاطر د هغې مستے آزار نه شهٔ

# ی

۲۶۷۶ ۱/۲۳۴ ۴۶

چه پخته شی اشنائی ترمیان ووځی جدائی
وطالب وته وفا شی د مطلوب بے وفائی
بادشاهی کاندی بدله د دیدن په ګدائی
خانی پلوری په وربشه مرزائی په میرزائی
نظر نه کاندی هیچرے په لوی په بلائی
ورنه کفر خر کندیږی خود بینی او خودرائی (۱)
خودرائی په عاشقی کښے له عاشقه نه ښائی
معشوقے که بے وفا دی عاشقان خوئے ستائی (۲)
غوږ ئے کر سترکے ړندے وی (۳) د خپل یار په خطائی
که ئے کړی وی سل علمه هم دینی هم دنیائی
همه واړه فراموش کا چه پر ورشی شیدائی
و مطلب ته نه رسیږی په شیخی په ملائی
اواره ننګ و ناموس کا په سر واخلی رسوائی
نر ناموس شی ورته بهه بے ننګی او بے نوائی (۴)

هره چارئے په اخلاص وی — نه په روی او ریائی
قبلوی په دواړو سترګو — هرچه یار پر فرمائی (٥)
نصیحت پر اثر نه کا — که څوک سل ځله وائی
فائده نه لری په عشق کښے — د دانا وُ دانائی
دغه کار کوئے نه شی — هر کم فهم کجائی
مشکل کار د عاشقئ دے — اسان چرے دے بائی
هر کم بخت ئے کله مومی — د دلبرو همتائی
څه په کسب موقوف نه دے — دغه کار دے عطائی
چه د عشق په لومه کښیوځی — نور ئے نه وی رهائی
بے د یار له مخه نه شی — د عاشق دل کشائی
دخپل یار په طلب ګرځی — غاړے غړونه پیمائی
له عالمه وی وتلے — لکه صیدِ صحرائی
تل ترتله ئے وطن وی — ګوشه کنج وتنهائی (٦)
مدام سوے لوغړن وی — دخپل اه په ګرمائی
هر زمان ئے په اورنسی — د خپل یار تمنائی
نه ئے ملک اونه ئے مال وی (٧) — نه ئے زهد پارسائی
په دا هسے ګرانو چارو — معشوقه ئے ازمائی
په یوه دیدن ئے یوسی — د درست عمر کمائی
ما هم هسے رنګه وژنی — یاره ستا بے وفائی
چه له زړه کړم زړه مے چوی — دغه ستا خودنمائی
هم خودی لرے بے قیاسه — هم د حُسن زیبائی
ضرر نه لری بے نفعے — ستا د مینے سودائی

ستاسو دامالره سود ده حق به وایم خدائی
په هیڅ مخ کښې لیده نه شي ستا د حُسن صفائی
نمر به څه له تا سیالي[8] کا په دا بے سر و پائی
د راک نه رسي د سر وے ستا د قد په رعنائی[9]
لکه ستا چه قد بالا دے نشته هسے[10] بالائی
که د ستا وصال دریاب دے زه مهے یم دریائی
د مکسو زندګی ده[11] په دکان د حلوائی
زه طوطا شکر پرست یم د ستا شونډے[12] متهائی
دا ګمان په رحمان مه کړه چه بے تا به وپائی
ق په پښتو کښې رحمان و وے په فارسي کښې سنائی[13]

۲۶۸۲ ۲/۲۳۵ ۶

ق

باد دِ لاس په پلو کیښنو څړه ریږدی
ګل دِ مخ وته نظر کا خولے پریږدی[14]
له هجرانه څه نه غواړمه عالمه
بد هجران دے ما دِ دے په قرار پریږدی
د چمن ګلونه واړه تر قربان شي
محبوبا چه د چمن په ګلو پښے ږدی[15]
د توري په مخ کښې دروهي لکه بطه
په قران قران راځي په زړونو لیږدی
په خمارو سترګو بیا مړانه وکړي[16]
چه له نازئے کړي راپورته بیائے کیږدی

دا غزل په حاشیه وکښه رحمانه
د خوشحال د بیاض پاڼے به وُریږدی

۲۶۹۲ ۱۰ $\frac{۳}{۲۳۶}$

عاشقی راباندے سیورے کړه مری
هیڅ مے نه درومی بے یاره تر مری (۱۷)
څه اثر به ئے دعقل وی په سر کښے
د هغو چه په سر کښینی ښاپیری
د مژګانو په پنجو مے زړه راکاږی (۱۸)
خدائے د ترکو برندے سترګے کړے مزری
علوقه به ئے بے غمه نورڅه نه وی (۱۹)
هر چه کاندی د خوبانو چاکری
لږ د صبر سبق مالره هم راکړئ
که په عشق کښے ځوک دغه طاقت لرئ
خدائے دعشق دپهره دارو په لاس ورکړم
شپه او ورځ مے غږوی لکه تُوری (۲۰)
په صورت مے نری تیه شوه ولاړه
تا چه دواړه سترګے تورے کړے نری (۲۱)
د وصال دلالان چرته غواړم خدایه
مدام بند شوم د هجران په کچری (۲۲)
نُور د شمع په فانوس کله پټیږی
تا چه واغوستے د خیال جامے نری (۲۳)

زه رحمان په زړه نرے کړم هغوجونو
چه ئے ملا ده د ویښته په دود نرۍ [۲۴]

۲۷۰۱ ۹ ۴/۲۳۷

که له تا ئے شرم نه کیدے مهرۍ
مخ به پټ نه وو د حورو د پرۍ [۲۵]
چه افتاب دِ تر رخسار پورے خجل شه
له دے ویرے زیست په شپه کا قمرۍ [۲۶]
ستا تر حُسنه پورے حُسن واړه هیڅ دے
نیست به څه له هستوکا برابرۍ
بے د ستا له تورو سترګو جادوګرو
کوم اهو د بیابان زده دی دم ګرۍ
ستا دعشق د تورے هسے رنګه اب دے
چه له مخه ئے حباب دی ککرۍ
حُسن واړه د عاشق په عشق موقوف دے
معشوقه که فریښته وی که پیرۍ [۲۷]
دلبرۍ او دلجوۍ لکه چه تا زده [۲۸]
چا زده هسے دلجوۍ او دلبرۍ
وعاشق ته دیار غم واړه بنادی ده
د رضا په ملک کښے نشته دلګیریه
دا دستور دے چه له درده زبیر کے خیږی [۲۹]
ګنه څه وو د رحمان له شاعرۍ

۲۷۰۹ ۵/۲۳۸ ۸

ستا د تورو زلفو په یاداشت مے سترګے ووری[۳۰]
حق دی چه پریوځی په شبرات دغمر ستوری
زلفے دِ سایه کړے مخ دِ اُور راباندے ووری
اُور دے که وریځ ده نه پوهیږمه په سیوری[۳۱]

ق

زلفے دِ سایه کړے مخ دِ اور په جهان بل کړ
هرچا ته چه ګورم نیم په نمر وی نیم په سیوری[۳۲]
اُورستا د رخسار په ما دے خپلو سترګو[۳۳] بل کړ
تل په آتش سوزی آئینه چه نمر ته ګوری
سترګے مے د ستاله خیاله پریوتے وزړه ته
څه شوکه بے سترګو صورت د رومی په بل لوری
ګاه و رقیبانو ته نظر کړے ګاه و ماته
ستا باران د مهر په ښو بد ویکسان ووری
یواصل دے خوګ قند ونبات خوګ ځګر خون خوری[۳۴]
خال ستا د لبانو او زما د سترګو توری
ځان په مستو سترګو باندے مه غلوه رحمانه[۳۵]
دا مستان هوښیار دی له حکمته سره ښوری

۲۷۲۱ ٦/۲۳۹ ۱۲

د نمر مخ چه ستاله مخه نه شرمیږی
تر و دا رنګ ئے ولے زیړ زرغون ښکاریږی[۳٦]

دا سپوږمی چه نه ے سر شته نه ئې پښے شته
په کوم حُسن به له تا سره سمیږی [۳۷]
زړه مے یو وړ ستا د مخ په رڼا زلفو
بار مے غل په سپین سبا کله پټیږی
ستا د زلفو د ابرویو له دهشته
همګی لړم ماران دی چه ویریږی [۳۸]
مخ دِ اُور خط دِ سبزه دے زه حیران یم [۳۹]
چه سبزه په اُور کښے څنګه زرغونیږی
اور او به سره چا ګډ لیدلی نه دی
دا قدرت دے ستا په لبو کښے نمائیږی [۴۰]
لکه لوند زړو کے تاؤ کړے نوَ ئې ووځی
ستا له غمه مے رنګ زیړ پوست مے وچیږی
سپوږمی هم د اسے تاؤ خوری ستا له مخه
چه په هره میاشت کښے دوه دوه نیمه کیږی [۴۱]
که قامت دِ څوک شمشاد بولی غلط دے
دَ لرګیو په نرخ سپین زر نه یافتیږی [۴۲]
خم ابروئے دِ په تاؤ د زلفو تم شوے
د لړم له نیشه مار حُبله تاویږی [۴۳]
وَ دندانو ته دِ دُر وئیلے نه شم [۴۴]
کانی کله د بریښنا په دود ځلیږی
باریک خط ئې زلفو لاندے کړ رحمانه
مورچه ګان د شپے له مخه پائمالیږی

۲۷۲۶ ۲۷ $\frac{۷}{۲۴۰}$ ۵

چا چه نمري وي په خپلو اوښيوولی
د شبنم په څير به تل وي سپين سپيځلی[۱۴۵]
که صياد څخه د اوښيو دانې نه وي
د هوا مرغان هيڅ‌ځا نه دي نيولي[۱۴۶]
هر يو مخ کله لائق وي دَ ابرويو[۱۴۷]
اوښې نه درومي په مخ د هرناولي
هره شپه به شمع څه لره ژړا کړه
که ئې نه وے په ژړا کښې څه موندلي
ما رحمان به ژړا نه کړه له خوبانو
که مے نه وے په قسمت دا هسے کښلی

۲۷۳۷ ۲۱ $\frac{۸}{۲۴۱}$ ۱۱

خدائے دِ وژغوره له هرے پريشانۍ
اے زما د کور و کلی[۱۴۸] ودانۍ
عاشقي چه ما کښلے دانائی[۱۴۹] وه
اوس خبر شوم له دے خپلے نادانۍ
تر ورخ تيرے اوبه بيرته نه جاروځي
څه پکاردی پوچ بے ځايه پښيمانۍ[۱۵۰]
ودانۍ په يوه دم کښې شي ويرانه
مرد هغه دے چه ودانے کا ورانۍ

لکه باد چه ځان وهی له کوه و دشته
زه په تا پسے کوم سرګردانی
دا خو زه د ستا د غم سره لوځیږم
څوک له دیوه سره کړی پهلوانی (۵۱)
چه په اب و په اتش په خاک و باد وی (۵۲)
څه امید دے په هغے زندګانی
ته چه دا رنګے وږدے وږدے وعدے کړے
کشکے راکړے ؤما خط د امانی (۵۳)
که ته زه په هغه وخت وے چابه نه کړے (۵۴)
د مجنون او د لیلی قصه خوانی
زما ستا ونندارو ته به حیران وو (۵۵)
که ژوندی وے ادم خان او دُرخانی
و هرچا ته چه ئے وائیم حیرانیږی
څه به وائیم د رحمان له حیرانی (۵۶)

۱۰ $\frac{۹}{۲۴۲}$ ۲۷۴۷

زلفے دِ له ډیرے درازۍ پائے تر سر دی
یا د بنفشے لبنتے خورے په صنوبر دی
لب دِ اب حیات دی یا شکرے یا نبات دی
یا خو زه غلط یم تر همه وارو بهتر دی (۵۷)
قد ته دِ څوک نه شی رسیدے له بلندی
ولے چه معراج ته رسیده د پیغمبر دی (۵۸)

(۵۹) ماچه ستا ښائست او نمر سپوږمۍ سره په تول کړه
تللی په میزان کښې تر اسمانه سپوږمۍ نمر دی

څاڅکی له اسمانه په هرچا ووری یکسانه
(۶۰) برخه په واښه شي په صدف کښې ګوهر دی

بخت دے چه ئے څوک متمکن کړه په تخت باندے
(۶۱) څوک د غم په خار سره پاره پاره ځیګر دی

داخو زه له ډیرے کم بختۍ له تا زار کړم
(۶۲) ستا له نیک خوۍ کاڼی بوټی هم خبر دی

باد چه دِ په زلفو باندے قصد د پریشانۍ کړ
ځکه ئے ګرد ونه د جهان واړه په سر دی

هله به سرے شے چه دِ نوم عبدالرحمٰن شي
(۶۳) اوس سړے په څه ئے که دِ لوستی زیر و زور دی

سپینے او ښے زیړ رخسار د مینے له دولته
اے رحمانه دا د عاشقانو سیم و زر دی

۶ $\frac{۱۰}{۲۴۳}$ ۲۷۵۳

د واړه سترګے مے کړے د ستا په لور دی
مدام ډوبے د فراق په اُب شور دی

زه یو سپے یم چارچشمه دَ ستا د سپیو
چه مے ستا و دَر ته دوه سترګے څلور دی

کنږولی مے د دوو سترګو ستا په طمع
(۶۴) وَ هر در وته نیولی کور په کور دی

چه ے خال د ترکو ولید په خپل زړه کښې (۶۵)
دواړه کسی ے و زړه و ته نسکوردی
ما قبول د رقیب ناز کړه ستا د پاره
سود او زیان په دا جهان کښې خوراو ورور دی
په رحمان باندے دا ھسے گمان مه کړه
چه بے تا په نور څه غلیږی ھغه نوردی (۶۶)

۱۰ ۱۱/۲۴۴ ۲۷ ۶۳

که دلدار په دلداری زما قدم ږدی
گویا هر قدم په لاره دَ حرم ږدی (۶۷)
ځائے لری که بے منته بوسه راکا
کوم کریم په چا منت د خپل کرم ږدی
معشوقه مشفقه بویه مهربانه
نه قارون چه په ځان اسم د حاتم ږدی
ھسے پټ لرم دا زیر رخسار له خلقو
لکه زر چه څوک له خلقو پټ پنهم ږدی
خدائے و ما وته گلونه د جنت کړل (۶۸)
که داغونه ے په زړه باندے دغم ږدی
هیڅ مانه دِڅوک له مستو سترگو نه کا (۶۹)
کوم یو مست دے چه قدم په لاره سم ږدی
راحت بے زحمته نه دے چا موندلے
کوم طبیب دے چه په روغ صورت مرهم ږدی (۷۰)

زه هرګوره ترخپل حمد پورے شرميږم (۷۱)
برهمن چه سرپه پښو دخپل صنم ږدی
واسمان ته لاس د عقل نه رسيږی
دا خو عشق دے چه په عرش کرسی قدم ږدی (۷۲)
زه رحمان ئے تاج ګڼم د يار له لاسه
که مے پنډ په سرد جورو د ستم ږدی

۲۷۷۰ $\frac{۱۲}{۲۴۵}$ ۷

د دنيا روزګار همه وبله غلول دی
دا ګمان په هيڅ مه کړه چه مے خپل دی (۷۳)
هيڅ مزه په دا جهان کښے پاتو نه شوه
دا ئے سيورے په اوبو پورے کول دی (۷۴)
پوزه غوږ د غوښو شته په هرچاپورے
که د شرم پوزه غوږ غواړے باطل دی (۷۵)
که دِ دوه کاسے دانے وی په کندو کښے
پس له شامه هسے وايه چه د بل دی
که ته دوه او درے عيبونه د بل شمارکړے
بل به تاته هسے وائی چه ستا سل دی (۷۶)
نصيحت د ناصحانو اثر نه کا
بيهوده د سړے اوسپنے کوتل دی (۷۷)
دا نااهله همدمان دی نه پوهيږم (۷۸)
که موچی دَ رحمان پنډے په کوکل دی

۹ ۱۳/۲۴۶ ۲۷۷۹

سپین رخسار او مشکین خال و بله ضم دی (۷۹)
یا محمود او ایاز ناست سره همدم دی
که دِ مخ په زلفو پټ وی باک ئے نشته
د حیات اوبه هم پټے په تور تم دی (۸۰)
ستا له زلفو له رخساره له سرو شونډو
پیدا شوی شام شفق او صبحدم دی
نری ملا دِ په مثال د الماس مخ شه
ق چه سندل ئے په باریک وروځے قلم دی (۸۱)
په دهن کښے دِ غاښونه تجلی کا
یا غوټیه په غنچه کښے د شبنم دی (۸۲)
بے ژړا وچا نه نه کوری سیه چشمه (۸۳)
د نرګسو غوړیده د جوئے په نم دی
نه چه اوس زما زړه غوځ ستا په غمزه دے
چاړه غوښے لا قدیم سره په غم دی (۸۴)
راحت نه دے چا موندلے بے زحمته
ستا جفا او وفا دواړه مغتنم دی (۸۵)
ستا د حسن د تعریف له برکته
د رحمان د شعر کوکے په عالم دی (۸۶)

۱۱ ۱۴/۲۴۷ ۲۷۹۰

ق
چه د خپل اشنا له وصله مهجوران دی
که ژوندی دی په معنیٰ کښے مُرده کان دی (۸۷)

زه د یار ترجدائیه په مرګ خوښ یم
سخت دارو په سخت بیمار باندے اسان دی
دغه درد دے چه هم درد شی هم دواشی
بیا دارو په تاو وهلے چه سوزان دی (۸۸)
لکه شمع په ورځ مرمه د شپے سوزم
اوس و ماته مرګ ژوندون دواړه یکسان دی
د ګلونو تر ډیر عمر دا سود ډیر دے
چه همه شره کفنونه شهیدان دی (۸۹)
له خزانه د بهار څهره پیدا کا
مخ و څټ د فانی دهر یکسان دی (۹۰)
ما د یار دیدن حاصل که په پرده کښے
د بوئی چارے ئے همه دخوند په شان دی
ریا کار چه په ریا طاعت نازیږی
نا سره مهر په لاس ګرځی تکان دی
عاقبت به لکه نښ بادام خجل شی
د اسلام جامے اغوستے کافران دی (۹۱)
چه د تن په پاکی پاک په زړه ناپاک وی
د لړکیو تورے په تیکی سپاهیان دی
چه خپل درد ئے خدائے دارو کاندے رحمانه
د هغو لښتی په سر د غرهٔ روان دی

۲۷۹۷ $\frac{۱۵}{۲۴۸}$ ۷

ستا د عشق حرفونه تور نه دي ګلګون دي
هم په دا چه نوشته په جګرخون دي
تش به نه شي هغه خم د عشق له میُو (۹۲)
چه ئے خاورے د فرهاد او د مجنون دي
د دنیا چارے همه واړه کمے کا
دا د ستا جور و جفا وله افزون دي
دا مقتول ستا د غمزے دي لاله نه دي (۹۳)
چه په شره کفن له زمکے رابیرون دي
چه ئے هیڅ بها زلمیو څخه نشته
جونه نه دي سکه ګنجونه د قارون دي
بادشاهان په یوه دم کښې ګدایان کا
ما لیدلي فسادونه د ګردون دي (۹۴)
د رحمان د زړه خوناب مګر قبول شي (۹۵)
چه مخونه د دلبرو پر ګلګون دي

۲۸۱۰ $\frac{۱۶}{۲۴۹}$ ۱۳

چه دا هسے لاس په لاس د نیا پریښود ي
څه چوا چندن په ځان پورے د مښو دي (۹۶)
دا د نیا په مثال پوله مرګ سیلاب دے
د سیلاب په مخکښې څه پوله ییښو دي (۹۷)

جل زلمی لا وادہ نہ وی سرہ کونړ شی[۹۸]
دا رنګ چارے د مرګی د خرخښو دی
قافلے چہ پہ دنیا کښے شوے داخلے[۹۹]
بیا ہم هسے معلومیږی چہ د لښو دی
دا سفر بہ پہ هغو باندے اسان وی
چہ تر کوچ پخوا پہ زیرمہ د توښو دی
چہ بے وقتہ ارمان کا پہ وقت وودہ وی[۱۰۰]
د هغو عالمو ږیرے د وکښو دی
دا لا خدائے دے چہ دا خلق کړئوینہ
اجل اور زړونہ جونګړے د وښو دی[۱۰۱] ق
پہ هرشان چہ یار خوښیږی زہ ئے کړمہ
خندول د صاحبانو پہ پیښو دی[۱۰۲]
د یارغم مے لکہ تاج دے پہ سر یښے
نور غمونہ مے همہ لاندے تر پښو دی
معشوقے پہ عاشقانو خود پوهیږی[۱۰۳] ق
دلتہ څہ د عاشقی نخښے د ښوو دی
تر ابدہ ازادی دہ پر حرامہ
چہ بند شوی د حرص پہ پلوښو دی[۱۰۴] ق ق
پہ خپل ځائے بہ ئے هرهر کلام پہ کار شی
د رحمان ویئل طالب لرہ د کښو دی[۱۰۵] ق
میخواران کہ ئے خبر شی لہ مستیہ
دَ رحمان د میخانے شراب دخښو دی[۱۰٦]

۱۴ $\frac{۱۷}{۲۵۰}$ ۲۸۲۴

مخ د یار شمس و قمر درے وارہ یودی
قد و سرو و صنوبر درے وارہ یودی
حاجت نه لرم په شهد او په شکرو (۱۰۷)
لب د یار شهد و شکر درے وارہ یودی
که بے یارہ د بستر د پاسه پروت یم
نار و خار و دا بستر درے وارہ یودی
چه وَ در او وَ دیوار ته ئے نظر کړم
باغ بستان و دغه در درے وارہ یودی
چه غبارئے د کوڅے راباندے راشی
دا غبار مشک و عنبر درے وارہ یودی
خدائے د یار له هجرہ هیڅوک خبر مه کړہ (۱۰۸)
تاخت او قتل دا خبر درے وارہ یودی
هغه دم چه سرے دروی له جهانه
تورے خاورے سیم و زر درے وارہ یودی
قلندر چه په رښتیا قلندری کا
خان سلطان او قلندر درے وارہ یودی
ور دِ نه شی په پردی زمکه هیڅوک
مبصّر او کور و کر درے وارہ یودی (۱۰۹)
چه دِ نه پکښے یو یار نه دِ اشنا وی
هغه ښهر بحر و بر درے وارہ یودی

په دُکان دَ نابیناؤ جوهریانو
خرمهرے لعل وګوهر درے واړه یو دی
پسران دِ عار زما له عشقه نه کا [۱۱۰]
پاک عاشق پیر اوپدر درے واړه یو دی
په سبب د ظالمانو حاکمانو
ګور او اور او پیښوَر درے واړه یو دی [۱۱۱]
غزا وشوه که ځان ستائ و رحمان ته
بے هنر او ګاؤ خر درے واړه یو دی

۲۸۳۵ ۱۸/۲۵۱ ॥

څرخ ے ستا د بڼو غشی په سینه دی
پورے وورے ے وتلی ترایسنه دی [۱۱۲]
تل ئے مخ د یار په مخ باندے وی یښے
هغه زړونه چه بے زنګه ائینه دی
هسے نه چه زه نن ورځ په تا شیدا یم [۱۱۳]
ستا غمونه ے په زړه کښے دیرینه دی
لکه ستوری چه بریښنا کا په اسمان کښے [۱۱۴]
په ټټر ے ستا داغونه نګینه دی
نه تنها زما په سترګو کښے جلوه کا
ماه و مهر ئے و مخ ته ائینه دی [۱۱۵] ق
درته وایم چه له اهه ئے پرهیز کا [۱۱٦]
د هغو چه پوشاکونه پشمینه دی

که دا ستا رخسار سوزانے لمبے نه دی (۱۱۷)
ولے کسی زما تور سوی نینه دی
څه به سم په صبحدم کورے وچاته
چه دِ سترگے په مے مستے شبینه دی
هغه سترگے چه پیدا کړے خدائے خونریزے
بے غضبه په غضب او په کینه دی (۱۱۸)
شرابیان چه شراب مومی خوئے شومی
کله منع په اختر په ادینه دی
چه تمام دخپل ځیگر په وینو رنگ شه (۱۱۹)
د رحمان خبرے ځکه رنگینه دی

۲۸۴۱ $\frac{19}{252}$ ٦

دا ژوندی چه معلومیږی واړه مړهٔ دی
که څه دی هم هسے وایه چه څه نهٔ دی
یا د باد په مخکښے خاورے دی دا تورے
یا د اور په مخکښے واړه وچ وابنهٔ دی
دخپل عمر شپے او ورځے چه په زړه کړم
هسے دروی گویا بهنده اوبهٔ دی (۱۲۰)
غافلان که وینی اوری به ئے څه کړے
دا ئے خوب دے نه لیدهٔ نه اوریدهٔ دی (۱۲۱)
چه د خدائے له معرفته خبر نه وی
هغه واړه که بیدار دی هم ویدهٔ دی

د رحمان د زړه له حاله خدائ خبر دے
چه په زړه ئے د اشنا له غمه څه دی

۲۸۵۰ $\frac{۲۰}{۲۵۳}$ ۹

عاشقان دِ په اور سوی دی که نه دی
ستا دعشق په اور اولوی دی که نه دی (۱۲۲)
زحمتونه د هجران واړه په عشق کښے
تا وما وته ښوولی دی که نه دی (۱۲۳)
په دنیا کښے خویو سر و مال وئیل شی
دواړه ما په تا پاسلوی دی که نه دی
تل د وروځو په لینده د ښو غشی
تا په ما باندے راکښوی دی که نه دی (۱۲۴)
چه مدام ئے زما زړه له غمه چوی
تورے زُلفے دِ پیچوی دی که نه دی (۱۲۵)
راشه وګوره احوال د عاشقانو
مړهٔ دَ عشق په شری کوی دی که نه دی (۱۲۶)
ناصحان چه نصیحت و ما ته (۱۲۷) وائی
چرے دوی هم میئن شوی دی که نه دی
ښائسته که په ښائست کښے ملائک وی (۱۲۸)
په وکښو دَ زړونو روی دی که نه دی
بلبلان پسے نعرے وهی رحمانه
د بهار ګلونه نوی دی که نه دی (۱۲۹)

۲۸۵۷ ۲۱/۲۵۴ ۷

چا چه کړے و دنیا وته اسرے دی
د همه واړو په سرخاورے ایرے دی
نادانان که د دنیا په چار نازیږی
و دانا ته واړه وشتے مسخرے دی (۱۳۰)
چه بے خدایه محبت کا هغه خلق
نارینه ئے واړه خرهٔ ښځے ئے خرے دی (۱۳۱)
وَسپین ږیریو وته مه وایه سپین ږیری
دا همه واړه طفلان د ګوارے دی (۱۳۲)
هسے وایه چه څړی دی د زنانو
که ئے ییښے په دستار کښے قرقرے دی
نه څه فیَض نه بهره ځنے مونده شی
همګی واړه بے فیض و بے بهرے دی
ذخیره د دنیا مه کوه رحمانه
دا همه واړه د خاورو ذخیرے دی (۱۳۳)

۲۸۶۴ ۲۲/۲۵۵ ۷

ستا له غمه مے په مخ باندے ولے دی
لږ مے وپښته له حاله چه ولے دی؟
زه په تا پسے مجنون یم قارون نه یم
چه مطلب مے غوا وغیلے یا غلے دی (۱۳۴)

هغه کوڅې لکه تا دي په ما کړې
کله کړې په مجنون باندې ليلې دي

لکه ما چه مصلې درپسې لنګ کړې
کوم ملنګ هسې لنګ کړې مصلې دي

بوي هم ستا د وفا نه دې رابلودلې
ما پخپله خيلې کړې تسلې دي(۱۳۵)

نصيحت اثر په زړه د عاشق نه کا
ګنه ياده زما ډيرې مسئلې دي(۱۳۶)

که رحمان د عاشقۍ په تيغ شهيد شي
د جنت حورې همه واړه دلې دي

۲۸۷۳ ۹ ۲۳/۲۵۶

صبحدم چه هغه يار راباندې راشي
عجب نور د نور د پاسه هويدا شي(۱۳۷)

کښلې مخ لره حاجت د سنګار نشته
بې ترتيبه چه نمر وخيژي رڼا شي(۱۳۸)

چه ئې ووينم له ورايه پورې ښلم
لکه پيش چه وبله کاه وکاه ربا شي

ما له ډيرې ناچاريه يار ته شاکړه
ناروا د ضرورت په ځائې روا شي(۱۳۹)

زه په وصل کښې خوارې د هجران ژاړم(۱۴۰)
د هر کار فکر ترکاره لا ښخوا شي

لا پخوا ترجدا ای ژړا بو یه
کښه هلته هر یو ژاړی چه جدا شی[۱۴۱]
وصال نه دے چا په سر و مال موندلے
مګر غاړه په دا کار د چا ادا شی
زه به سرو مال د یار تر نا ځار کړم[۱۴۲]
دا په عشق کښے سهل کار دے که په دا شی
د رحمان په اوښیو هسے رنګ پوهیږم
چه اخر به په تمام جهان رسوا شی[۱۴۳]

۲۸۸۲ $\frac{۲۴}{۲۵۷}$ ۹

چه شهید د تورو سترګو په خنجر شی
خوشنودی ئے د سرو شونډو په کوثر شی
چه را یاد ئے سپین رخسار دراز مژګان کړم
هغه دم مے زړه سپند سینه مجمر شی
عندلیب خاطر مے الوځی په ګلو
که د ترکو سنبل زلفے ئے شهپر شی[۱۴۴]
که یار سل ځله جفا راسره کاندی
زما کله په جفا د یار باور شی
د ناصح په نصیحت به منع نه شم
که هزار ځله مے ورور و برادر شی[۱۴۵]
د رقیب او زما صلح سره نشته
که مو چرے لاس و دست و بله بر شی[۱۴۶]

صبوري او قراري له ما خطا دي
ترهغه ساعته پورې چه محشر شي (۱۴۷)
تير ساعت به د هيڅا په لاس کښېنوځي
مګر تللې اشنا بيا په اشنا ورشي
خوبرويان به د سپوږمۍ تو کړې ور واخلي
که رحمان کچکول په لاس کا قلندر شي (۱۴۸)

۲۸۸۹ ۲۵/۲۵۸ ۷

که غبار د ستا د لارې په خوا ورشي
که په دوارو سترګو روند وي مبصّر شي (۱۴۹)
تازه نوې سر پيدا کا لکه شمع
چه ئې غوڅ د ستا په مينه د زړه سر شي
چه کيميا د قناعت ئې په لاس کښېوځي (۱۵۰)
که ګدائې وي د قارون په خير توانګر شي
ستا د در ګدايان واړه بادشاهان دي
خوچه ستا له دره ووځي دربه در شي (۱۵۱)
تل ئې مخ وي له عالمه جاروتلې
د هغو چه ستا په مخ باندې نظر شي
که د درست جهان له حاله خبردار وي
چه تا ووينې له واړو بې خبر شي
آئينه که د جمال کړې ور څرګنده
دا ګدائې رحمان به شاهِ سکندر شي

۲۹۰۵ ۲۶/۲۵۹ ۱۶

تبسّم ے د وګړی په روزګار شي
چه ئے نه له مرګه ویره نه ئے ډار شي[۱۵۲]
له دهٔ وزیږی د دهٔ د وړاندے ومری
لا ئے مینه د دنیا په کاروبار شي
که ئے هرقدم د مړیو په سرلاروی[۱۵۳]
یو قدم هسے وانه خلی چه په لار شي
د ژوندیو نصیحت پر اثر نه کا
مګر مړه له قبره پاځي په ګفتار شي
د امید مزے ئے هسے رنګ دراز وی
چه ترخضره ورته خپل عمر بسیار شي
سپینه ږیره په ورنی کښے زویه واخلی
چه به ما لره سپاهی ومنصب‌دار شي[۱۵۴]
د خرما زړے نهال کا ورته ګوری[۱۵۵]
چه دا سیورے دا میوه به مے په کار شي
هر هر فصل چه تر ریبدی هوسیږی[۱۵۶]
چه به ګانده راته بل فصل تیار شي
لا ئے لپه تخم هم کرلے نه وی[۱۵۷]
ناکشته ئے څنے طمع د خروار شي
غږوندے د نا زوکړیو ښسیو غږی[۱۵۸]
چه سبا بیګاه به ما لره ګوهار شي

(۱۵۹)
لکه وورکی کتوری غواړی له زانو
په دا هسے پوچ کوی ئے اعتبار شی
چه هرګز په عمر نه وی چړے شوی
د هغو ناشدنیو امیدوار شی ق
هلکانو غوندے پاس په کوټه زغلی
خو چه دوه قدمه واخلی نو رحصار شی ق
په زحمت د تن له مالګے هم پرهیز کا
(۱۶۰)
هغه نه کا چه له نهی پرهیزګار شی ق
د ژوندون په تیریدوئے نظر نه وی
چه دا ګنج به ےله لاسه تار په تار شی ق
رحمان څه دے چه به پند وَچا ته وائی
هدایت د هر بنده په کردګار شی

۱۴ ۲۷/۲۶۰ ۲۹۱۹

کر د ګلو کره چه سیمه دِ ګلزار شی
اغزی مه کره په پښو کښے به دِ خار شی
ته چه بل په غشیو وے هسے پوه شه
چه هم دا غشی به ستا په لور ګوزار شی
کوهے مه کنه د بل سړی په لار کښے
(۱۶۱)
چه هم ستا به د کوهی په غاړه لار شی
و هرچا ته چه په خوارو سترګو ګورے
(۱۶۲)
لا بروبے به ستا صورت تر هغه خوار شی

آدم زاد په معنیٰ واړه یو صورت دے
هر چه بل آزاروی هغه آزار شی
که ته نه کوے نظر د چا په عیب[۱۶۳]
هر سړے به ستا د عیب پرده دار شی
دهقان کر په لوړه مزکه باندے نه کا
سرکوزی کړه چه پټے دِ مرغزار شی
د مات لوښی آواز کله ثابت خیژی
د هر چا عمل څرګند په خپل ګفتار شی
نن چه صبح ده روښانه لار صحیح کړه
ناګهانه به دا صبح شبِ[۱۶۴] تار شی
لږ ئے مه ګڼه که هر څو ګناه لږ وی
چه لږ لږ وبله جمع کړے بسیار[۱۶۵] شی
که بل بد کاندی ته ښه کړه مه رنځیږه[۱۶۶]
هر یو نخل چه میوه لری سنګسار شی
تل وَ ښو وَ ته آزار د بدو رسی
هر پچینجے وَ نرم چوب وته دوخار شی
هغه زړه به له طوفانه په امان وی[۱۶۷]
چه کشتئ غوندے دخلقو باربردار شی
خدائے دِ بد له لاسه مه کړه اوکه وی هم
د رحمان دِ په کل بدو استغفار[۱۶۸] شی

۱۹ $\frac{۲۸}{۲۶۱}$ ۲۹۳۸

هر وګړے چه منصور غوندے په دارشی
دارئے پس له مرګه نخل میوه دارشی
روغ صورت که روغ عالم لره کمال دے
لیونی لره کمال دے چه سنګسار شی
هر ګیاه چه و کمال ته ورسیږی
سر و زمکے و ته کوز کا نګونسار شی
نرے باد بهٔ داخل په خپل منزل کا
که ځوک پانے د خزان غوندے طیار شی[169]
غفلت هیڅ مناسب نه دے د سپین ږیریو
صبحدم که حیوانات وی هم بیدار شی[170]
چه یو موتے ایرے ناز په ائینه کا
په دغه خبره فخر د خاکسار شی[171]
کریمانو سود موندلے دے په زیان کښے
لکه ښاخ د ونے وتراشے باردار شی
خزانه په سخاوت سره زیاتیږی
د کوهی اوبه چه وکاږے بسیار شی[172]
مرید ه د وږے کیدے مشکل نه وی
مړیده د وږیو سترګو مشکل کار شی[173]
کم خوراک سړے فرښتو وته نژدے کا
هر سړے چه بسیار خور شی بسیار خوار شی[174]

صاف دِلانو لره لږ نصیحت ډیر دے [۱۷۵]
د کوهرو پیوستون په نری تارشی
غلبه د عشق بهنه د حُسن غواړی
توره شپه په عاشق زلفے د خپل یارشی
د توفیق له مخه هر مشکل اسان دے
و ستړی و ته داور لمبے گلزارشی [۱۷۶]
ناز د حُسن پرورش موهی له عشقه [۱۷۷]
هسے نه چه د خوبانو په سنگارشی
راحت بے زحمته نه دے چاموندلے [۱۷۸]
د وصال خوښی د هجر په مقدارشی
عاشقانو لره واړه سعادت دے
که ئے سرومال د یار تر نامه ځارشی [۱۷۹]
یار یار هرڅوک سره وائی په جهان کښے
زه به پس له مرگه وائیم چه یار یارشی [۱۸۰]
لکه داړ کاندی ورغوے له گرگانو [۱۸۱]
هسے رنگ له جدائیه زما داړشی
د رحمان دا پوچ گوئی څه په کار نه ده
عاشقی په گفتار نه شی په کردارشی

۸ $\frac{۲۹}{۲۶۲}$ ۲۹۴۶

که دِغم د درست جهان تر زړه چاپیرشی
دلگیر مه شه هسے وایه چه به تیرشی [۱۸۲]

غم هغه دے هرچه خیرمه وی وچا ته
وړومبی واړه تر وروستنیه پورے هیر[۱۸۳] شی
بے له خدایه چه مدام په یوه حال دے
سړے کله شیرشاهی وی کله سیر[۱۸۴] شی
یو ادم دے چه په څو رنگه جلوه کا
یو رقم دے کله زور شی کله زیر شی
د دنیا چارے مدام په قرار نه وی
د بهو په ځمبول کښے په بل پیر[۱۸۵] شی
په لږ عمر کښے ډیر غم له کومه راغے
خوله خپلے بے صبری په سړی ډیر شی
چه خریدار و فروشنده وبله راضی[۱۸۷] شی
په سودا کښے سختی نه کا تیروبیر شی
ښائسته په جهان ډیر دی بے حسابه
بارے څوک به د رحمان د یار په څیر شی

۲۹۵۸ $\frac{۳۰}{۲۶۳}$ ۱۲

که د زړو مړو سر وی خوچه مړ شی
نه ئے نوم په خوله اخست شی نه نوم[۱۸۸] مړ شی
که هیچا پر کړے نه وی په جهان کښے
واجل ته لکه خر په خټه پړ شی
راشه راشه دا ډیر ناز و کبر مه کړه
یاره څو به د دا ناز په جهان وړ شی

دا رخسار چه دِ روښان تر آئینے دی[۱۸۹]
عاقبت به دَ لحد په خاورو خړ شي

مراد همه له دلبری دے غزا و شوه
که دَ سروے په څیر څوک په قامت[۱۹۰] لوړ شي

نیک نامي له نیک خوئیه پیدا کیږی[۱۹۱]
دغه چاره نه په سُوک نه په لوړ شي

عاقلان چه پښیمانیږی هغه نه کا
هغه شکوے د بے هنرو وی چه سپړ[۱۹۲] شي

دا خو زه له شفقته تا ته وایم
کنه ځان له سر نوشته په چا ژغړ[۱۹۳] شي

د هوا په نغوته مه ځه که دانائے
هوائی ویشتلی غشی ژر په ځوړ[۱۹۴] شي

وران به نه کاندی یو حرف د خپلے بخرے
که په اوښیو د چا درست جهان چقړ[۱۹۵] شي

په تدبیر به د تقدیر شوی نور نه کړے
د قسمت علاج په عقل کله کړ[۱۹۶] شي

په رحمان بے یاره صبر هسے گران دے
لکه زهر چه دیده دانسته نغړ شي

۶ $\frac{۳۱}{۲۹۶۴}$ ۲۹۶۴

هر چه ستا په زنخدان کښے ئے منزل شی
لکه خس په تناره کښے به جلبل شی

خوک چه نوم د ستا د شونډو په خوله واخلی
که ئے زهر وی په خوله کښے هم عسل شی
زه په هجر کښے بے برګ و بے نوا یم[۱۹۷]
لکه کښت چه اوبه نه مومی شډل شی
په عاشق باندے ګمان دا هسے مه کړه
چه یار زړه ورځنه یوسی تش ګوګل شی
په جهان تر اشنائی خواږه نشته
ولے حیف چه هجران پکښے حنظل شی[۱۹۸]
زه رحمان بے یاره هسے شول وشل یم[۱۹۹]
لکه کب چه بے محیطه شول وشل شی

۹ $\frac{۳۲}{۲۶۵}$ ۲۹۷۳

که د زړه په وینو رنګ د چا ګوګل شی
چه بیلتون په جهان شته دے خو به بیل شی[۲۰۰]
که د اوښیو په دریاب باندے ئے نهل کړے[۲۰۱]
نیشکر به نیشکر شی نل به نل شی
مشقت د سړی واړه حبطه دے
په بوره کښے چه د ګلو بوټے نهل شی[۲۰۲]
د دنیا یاری دوستی څه په کار نه ده
له اوّله یار و دوست وی پسے غل شی
که هر څو ئے وبله مهر و محبت وی
نهایت سره په جنګ و په جدل شی[۲۰۳]

په مثال د دروغژنے مرغلرے
اب و تاب ئے په دوه ورځے کښے بدل شی (۲۰۴)
که ئے زنه د ځوانئ په وقت کښے سیب وی
هغه سیب ئے په پیری کښے حنظل شی (۲۰۵)
د رقیب له بده خویه به څه وایم
ترو ئے کوره چه لا یار ورسره مل شی (۲۰۶)
زه رحمان د یار په ښه او بد پوهیږم (۲۰۷)
کشکے زهر په دهن د چا عسل شی

۲۹۸۳ $\frac{۳۳}{۲۶۶}$ ۱۰

که سل ځله هم کنار و هم بغل شی
د دنیا میئن به واړه سره بیل شی (۲۰۸)
دا چه اوس په یوه کور کښے سره ناست دی
عاقبت به ئے جدا جدا منزل شی
دا کلونه چه ئے ځائے دی په دستار کښے (۲۰۹)
همه واړه به تر پښو لاندے غوبل شی
دا پے مخی چه ئے مخ د نمر په شیر دے
تور وینښته به ئے په مخ باندے ځنګل شی (۲۱۰)
دا شیرین شربت چه د وصال دے
د هجران په وقت به زهر هلاهل شی
ما د یار په بیلتانه کښے دی لیدلی (۲۱۱)
که دانا د زمانے وی مبدل شی

پښه له ويرے د وصال په زمکه نه بږدی (۲۱۲)
چه خبر د جدائ په دلدل شی
د دے هسے رنځ علاج به څوک په څه کا
چه نه فهم د چا رسی نه اټکل شی
که د غرونو په سرګرځی سرے تيټ وی
هر چه زړه ئے د خوبانو ير غمل شی
د رحمان خاطر غمونو هسے زنګ کړ
مګر جام د ميو نابو ئے صيقل (۲۱۳) شی

۵۴ $\frac{۳۴}{۲۶۷}$ ۳۰۳۷

هغه دم چه زړه ملال شی
يو ساعت ورباندے کال شی (۲۱۴)

حيران تللے وی په فکر
فراموش ئے قيل وقال شی

نه ئے ګفت نه ئے شنود وی
په غوږ کوڼ په ژبه لال (۲۱۵) شی

نه خواب وچاته کاندی
نه ئے غوږ د چا په سوال شی

علم عقل ځنے (۲۱۶) پاڅی
درست صورت ئے خواب وخيال شی

په رڼو سترګو وُودهٔ وی
لکه نقش د ديوال شی

قوت ئے وينے د ځيګر (۲۱۷) شی
هم دغه ئے اشتغال شی

دَ چشمانو له بارانه (۲۱۸)
په رخسار ئے پشکال شی

په سبب د عاشقيه
تير تر اَل وترعيال شی

هم تر اَل و ترعياله
هم ترمال و ترمنال شی

په خپل درد و په خپل غم کښے
له عالمه فارغ بال (۲۱۹) شی

نه طاقت نه ئے مجال وی
بے طاقته بے مجال شی

که ژوندے وی په جهان کښے　　د مرده وُ په مثال شی

په خشکۍ کښے ماهی کوره[۲۲۰]　　هسے بے تیغه حلال شی

پاخیدے نه شی له ځایه　　په زره غوخ په تن کهال شی

د ویشتلیو په څیر یون کا　　د کل خلقو په دنبال[۲۲۱] شی

لکه خس د لوئے لارے　　تر قدم لاندے پائمال شی

خدائے له غمه سرے ژغوره　　بیا لا بویه چه خوشحال[۲۲۲] شی

چه د زره ولے شی غوښے　　نور ژوندون ئے په اشکال[۲۲۳] شی

د باغبان ستر کے کا سپینے　　چه تازه نخل ونهال[۲۲۴] شی

روئیدن د کښت اسان دی[۲۲۵]　　پرورش ئے لوئے جنجال شی

ویرانی په یوه دم شی　　ودانی په ډیر اشکال[۲۲۶] شی

چه پلار ومری بیا لا بویه　　چه ئے زویه په کمال[۲۲۷] شی

څوک خبر دے له دے دوره　　چه زمان لره څه حال[۲۲۸] شی

چه په حال کښے ئے حال نه وی　　څه امید په استقبال شی

د یوه ساعت له مخه　　خدائے زده څه رنګ به احوال[۲۲۹] شی

د دُنیا چارے فانی دی　　رفت آمد ئے په یرغال شی

په مثال لکه د سیوری　　خوا و شا د هر دیوال[۲۳۰] شی

اعتماد په اوبو مه کړه　　چه استاد ئے په غربال[۲۳۱] شی

د بنو په ځمبول کښے　　شال شړی کا شړی شال شی

که بادشاه د ولایت وی　　کنډ ولے په لاس کنکال شی

په ثواب ئے غلط مه شه　　په یوه ساعت وبال شی

په کمال ئے مه نازیږه　　په یوه کړی زوال شی

د هاتیانو سوداګر وی　　کاؤ دلال وخر دلال[۲۳۲] شی

جوهری وی دَ ګوهرو (۲۳۳) خاورے اغبری کلال شی
کلالی و ګلکاری کا فروشنده د مات سفال (۲۳۴) شی
په هستیه کښے اشراف وی په نیستیه کښے ارذال شی
دځوانیه په وقت شیر وی په پیرئیه کښے شغال (۲۳۵) شی
چه مشهور په صداقت وی پوچ ګوئی واخلی بطال (۲۳۶) شی
محتسب وی احتساب کا کوتوالی واخلی کوتوال شی
نیکوکار و نیک افعال وی بدکردار و بد افعال (۲۳۷) شی
سرنوشت د سړی ګوره (۲۳۸) یو عیسیٰؑ وی بل دجال شی
چه نیک بخت وی نیکوئی کا چه بد بخت وی بد سګال (۲۳۹) شی
لاس و پښے دَ هغه نسه (۲۴۰) چه خوش خویه خوش خصال شی
په هجران کښے نومید مه شه (۲۴۱) خدائے قادر دے که وصال شی
په حرامو امیدوار شه ګوندے مخ دِ په حلال (۲۴۲) شی
کافر و باسی له کفره په یوه ساعت ابدال شی
تور بهتر کاندے ترسپینو په سپین مخ د پاسه خال شی
ارزومند دَ یوه خس (۲۴۳) وی خداوند د ملک و مال شی
چه سیالی ئے وی (۲۴۴) کذابه د سیالانو سره سیال شی
چه په عُمر منفصل (۲۴۵) وی په ساعت کښے اتصال شی
ممکنات به منع نه کا که څوک سل ځله سمبال شی
چه دخدائے رضا شی پیښه رمل پاتو د رمال شی
فال به څه ګورے رحمانه
خپل افعال د سړی فال (۲۴۶) شی

۳۰۴۶ ۳۵/۲۶۸ ۹

هغه زره چه خدائے روښان کا جام د جم شي
په دا جام کښې ورښکاره تمام عالم شي
په آدم کښې دَ حیوان خُویونه شته دے (۲۴۷)
بیا هاله ئے آدم بوله چه آدم شي
چه خویونه د چارپایو پکښې نه وي
سرې هوښ په سرې هله مسلّم شي
چه اغوستے ئے لباس وي د پاکانو (۲۴۸)
د ناپاکو چارے کاندي خو به ګرم شي
که هر څو لذیذ طعام وي مزه نه کا
چه یوه ذره نمک ئے زیات و کم شي (۲۴۹)
ښادي هرچرے د غم په اندازه وي
د هغو به څه ښادي وي چه بے غم شي
هرچه خپله رضا پاسلي وَ قضا ته
که هر څو په ځان ناخوښ وي خوښ خرم شي
عاشقي چه تر کماله ورسیږي
د خپل یار له لاسه زخم وي مرهم شي (۲۵۰)
که په ځان باندے قدم کیږدے رحمانه
نُه فلکه به دِ لاندے تر قدم شي

۳۰۶۳ $\frac{۳۶}{۲۶۹}$ ۱۷

چه مجنون غوندے یو موټے استخوان شي
په قوّت د عاشقۍ به پهلوان شي
عاشقانو په خپل ښکست کښے برے بیاموند
دلته توان د هغو رسي چه ناتوان(۲۵۱) شي
زیرے رنګ د عاشق هسے مراتب دي(۲۵۲)
چه افتاب غوندے ښرکند په درست جهان شي
له چشمانوئے باران د رحمت ووري
زرغونه ئے په څهره باندے زعفران شي
له رخساره حال د زړونو معلومیږي
له بهاره نیک و بد د کال عیان شي(۲۵۳)
له یوے نکتے تمام علم حصلیږي
درست خروار له یوه مشته نمایان شي(۲۵۴)
پکار نه دي مخالف هزار تقریره
موافق له حاله نیم کلام داستان(۲۵۵) شي
لکه مړه له کاروباره وي وتلي
د هغو خاورے په سر چه غافلان شي
که دِ ډیر عمر پکار دے غفلت مه کړه
په وده باندے سل کاله یو زمان شي
دَ غفلت بنیاد دَ اوښیو په موج خیزي(۲۵۶)
یو څڅویکے خواب الود لره طوفان شي

ړوند په خپله عصا پریوځی وکوهی ته
خپل دلیل دکم دلیل دَ ځان تاوان شی[۲۵۷]
سرکښی د عاجزانو په کار نه دهٔ
هر میړے چه وزر وکاندی پښیمان شی
موم دِلان ئے له شرره لمن ژغوری[۲۵۸]
سنګدلان که عین لعل د بدخشان شی
بل پوشاک ئے پکار نه وی بے نمده[۲۵۹]
هغه زړهٔ چه آئینے غوندے روښان شی
چه کیمیا دَ قناعت ئے په لاس کښیوځی
د شړیه په خرقه کښے بادشاهان شی
عاشقی ده ترجمله بلا په هورته
و مجنون ته دیو و دد واړهٔ حیران شی[۲۶۰]
پر به ورکا بُتان دُر دَ خپلو غوږو[۲۶۱]
که ئے تیر تر غوږو شعر دَ رحمان شی

۱۳ — ۳۷/۲۷۰ — ۳۰۷۶

د سکوت په تیغ چه ژبه بریده شی
لا قلم غوندے په قال کښے دویده شی
همرهٔ اور د عاشقیه په زړهٔ یوسی[۲۶۲]
چه لاله ئے له تربته دمیده شی
خم ابروئے د یار نقش وی په لیمه کښے
لکه میاشت چه په لوئے بحر کښے لیده شی

همیشه ئې د خپل یار په لوری دَو وی
نهایت چه په دا دَو کښې رسیده شی
څه حاجت دے چه زه یار وَچانه ستائیم[۲۶۳]
کار همه د خپلو سترګو په دیده شی
کله وی چه یو د بل په ویَل غلیږی
مګر صافه د چا خپله عقیده شی
خود څرګند وی لکه صبح په جهان کښې
هر ګریوان چه په یاری کښې دریده شی
ابروئی د عاشق هلته ځان څرګند کا
چه ئې نم دَ زړه له سترګوچکیده شی
د اه غشے ئې په زمکه کله لګی
هر قامت چه کمان طوره خمیده شی
بے مطلبه ئې هیڅ فهم په چا نه وی[۲۶۴]
هرطالب چه په طلب کښې فهمیده شی
هرچه زړه په مهرویانو باندے بائلی[۲۶۵]
بے درمه بے دیناره خریده شی
ما د یار په څیر بل مخ لیدلے نه دے
مګر پس له نَنے ورځے افریده شی
یا به شهد یا به قند یا به نبات وی
هر کلام چه له رحمانه شنیده شی

۸ $\frac{۳۸}{۲۷۱}$ ۳۰۸۴

د عاشق بې خپله یاره قرار نه شي
بې طبیبه قراري د بیمار نه شي
چې په لوح محفوظ کښلې لیونے وي (۲۶۶)
په تعلیم د معلّم به هوښیار نه شي
د خپل پلار په غیر کښې پروت وي روح ئې واخلي (۲۶۷)
د قضا علاج په مور و په پلار نه شي
و هغو چه خدائے کمال د حُسن ورکړ (۲۶۸)
هیڅ نقصان ئې د منکر په انکار نه شي
درد و غم د عاشقیه ډیر مشکل دے
هیڅ سړے دِ په دا رنځ گرفتار نه شي
زه همه عمر دغه له خدایه غواړم
چه دِ یار د یار له لاسه ازار نه شي (۲۶۹)
یار له یار سره جفا کا هسے ډیره
چه هیڅ فرق ئې د اغیارو دَ یار نه شي (۲۷۰)
که هر څو ئې دلبري و دلجوئي کا
دَ رحمان په ترکو هیڅ اعتبار نه شي (۲۷۱)

۹ $\frac{۳۹}{۲۷۲}$ ۳۰۹۳

چه سړے له بله بد وائي بدگوے شي
لا تر بل پخوا روان دَ دهٔ بدبوئے شي (۲۷۲)

مُردہ شوے چہ هوس کا د بل وَمرګ نہ
بل هم پس دَ دہ لہ مرګہ مُردہ شوے شي (۲۷۳)

دوست دښمن دَ سړي واړہ خپل عمل دے
هم پہ دا مقدار ئے اجر موئے پہ موئے شي (۲۷۴)

هرہ ونہ چہ کږہ پہ هغہ لوروي (۲۷۵)
عاقبت ئے پریواتہ پہ هغہ سوئے شي

د اوبو اصل لہ خاورو پیدا کیږي
خاکساري د خاکسارانو پہ ابروئے شي

پہ لوی کښې نور څہ نشتہ بے زوالہ
هلکان د هلکتوب پہ سبب لوئے شي

هومرہ زیان لہ خُوکہ خرسہ نہ رسیږي (۲۷۶)
لکہ څوک پہ ادمیانو کښې بدخوئے شي

سړي هوښ چہ د سړي لہ تنہ پاڅي
د سړیو پہ جامہ کښې خربشوئے شي

و هغو وتہ چہ خدائے پخپلہ وښوو (۲۷۷)
څہ حاجت ئے د رحمان پہ ګفتګوئے شي

۳۱۰۵ ۱۴۰/۲۷۳ ۱۲

ق

هرچہ پہ حیات صورت لہ مرګ سرہ اشناوي
خلاص بہ دَ قیامت لہ خرخښو پہ دادنیاوي (۲۷۸)

سخ د هغو ګلو چہ برګ ریزئے پہ بهار دے
کل سرانجام وکا لہ خزانہ بے پرواوي (۲۷۹)

(۲۸۰)
غم وهم هغه کا چه هیڅ غم ورسره نه وی
ولے چه نا ګاهه به یو ورځ ورباندے را وی
حکم د نیستیه په هغو دے هر چه هست وی
هر چه هستی پریږدی له نیستیٔ ئے څه پروا وی
زړه د عاشقانو له د ښنه لاسته بے غم دے
(۲۸۱)
شمع د مقراض له خصومته په خندا وی
لوړه تنده نشته د قانع په قناعت کښے
دا کیمیا چه زده کا په خرقه کښے امرا وی
هیڅ سیر چشمی حاصله نه کړه په حرص کښے
بلکه د قحطیٔ په ملک که شاه وی هم ګدا وی
ما به ښتیا نه وے اے یارانو بارے څه کړم
حقه کلمه نغړدل هر ګور سخته بلا وی
زور دَ سیلاب واړه دَ ترل په مقامات وی
زړه د خاموشیٔ په ځائے کښے لا زانه ګویا وی
بے خس و خاشاکه د آتش بقا په څه وی
آه و فریاد واړه په مقدار د تمنّا وی
زه د رقیب چارو نا ویسا کړم له حبیبه
زلفے په نسبت دَ مار خوړلیو اژدها وی
اے رحمانه هر راحت په اجر د زحمت دے
هر چه ډیر ډیر خاندی هسے ډیر به په ژړا وی

ق

تل دِ ستا دَ خواب الودو سترګو خواب وی
(۲۸۲)
چه فتنې په خوب وودے شي ډېر صواب وی
لکه مے چه په مینا کښې تجلی کا
نُور دَ حُسن په حجاب کښې بے حجاب وی
ته چه ما ته لُولوے پټې د صبر
زه هم ډېر په دا راضي یم که مے تاب وی
(۲۸۳)
زه په دا واسطه په ترکو پسے ژاړم
چه ژړا دَ عاشقانو دَ مخ اب وی
که نادان وی هم دا هومره خو پوهیږی
(۲۸۴)
څوک چه نه ژاړی په یار پسے کذاب وی
د عاشق سترګے په دا سبب شوے پاکے
چه مدام د جوئے په سر لکه حباب وی
له خالی خونے به څه وړی چه څه نه وی
(۲۸۵)
که ختلے د حباب په کور سیلاب وی
هم په دا ئے د نغمے اثر پیدا شه
چه په تشه ګیډه صبر د رباب وی
(۲۸۶)
د حریص له خپله نقده بهره نشته
لکه مار د ګنج د پاسه پیچ و تاب وی
کاملان تعلّقات د دنیا نه کا
(۲۸۷)
لکه پانه د خزان پښه په رکاب وی

(۲۸۸)
غفلت هیڅ عجائب نه دے په دنیا کښې
ساکنان د خرابات وارهٔ خراب وی
چه بنادی غواړی بے شماره بےحسابه
په رحمان به د غمونو څه حساب وی

۳۸ $\frac{۴۲}{۲۷۵}$ ۳۱۵۵

هر چه کښت ئے په باران او په سیلاب وی
(۲۸۹)
د هغو عمر به وارهٔ په عذاب وی
هغه ملک چه پکښې سیند او رودبار نه وی
(۲۹۰)
دهقانان به ئے همه خانه خراب وی
(۲۹۱)
واسمان ته به ئے سترګے وی ختلے
د باران له انتظاره به بے خواب وی
(۲۹۲)
لکه څوک چه تلوی ئے په کرهی کښې
د هغه ماهی په طور به کباب وی
لا به کله بارانونه پر نزول شي
(۲۹۳)
چه نخیل و زراعت ئے پر سیراب وی
همیشه له خدایه خواست د اوبو کاندی
که ئے چرے خواست په عمر مستجاب وی
لکه تل چه ئے په زوړ دَ اوبو غوړ وی
هومره غوړ ئے نه په چنګ نه په رباب وی
که همه عمر باران وربانده وورى
لا ګرمی ئے په صورت کښې د افتاب وی

دگرمۍ او د خشکیه له دهشته
د افتاب په څیر کمان ئې په ماهتاب وی [۲۹۴]
د اوبو له ډیرے ډیرے قیمتیه
لړکی لوبنی ئې مردار په منجلاب وی [۲۹۵]
فرق د پاکو د ناپاکو اوبو نه کا
که اوبه ئې کړے وړے له پیشاب وی [۲۹۶]
د اوبو په غلا چه ورشی نه جاروځی [۲۹۷]
که ساکن دَ خانقاه و دَ محراب وی
د اوبو په ویش چه ورشی انصاف پریږدی [۲۹۸]
که په لاس ئې ورقونه د کتاب وی
د اوبو ثواب ئې نه کیږی له لاسه
که په کوټ اوبو ئې عن دَ حج ثواب وی
د باران امید ئې نه کیږی له خدایه
که ئې ورځ و شپه په سربانده سحاب وی [۲۹۹]
چه دَ نوکو اچولو په ځائے ورشی
تر تنځری ځان بتر کا که عقاب وی [۳۰۰]
پلیتی به ئې له تنه څنگه دروی
چه اوبه پکښې نایابے تر گلاب وی [۳۰۱]
هیڅ ئې مه پښته له غسله اودسه
چه یو څاڅکے پرے گوهر غونده نایاب وی
په سبب د ډیره ډیره تیممه
همیشه ئې سپیره بږیره په تراب وی [۳۰۲]

دَ للمی سړی په مخ کښې وی اُب چیرے
هغه خلق چه بے آب وی خو بے آب وی
په اُبی کښې ئے لا هم وی خونه ورانه (۳۰۳)
هغه کلے چه د بل کلی پائیناب وی
یو به نه سی هیڅ برے له سری ورخه
پائیناوے سړے که زویه د ارباب وی (۳۰۴)
سم حساب له عزیزانو کله مومی
تل ترتله ئے تر بل لاندے حساب وی (۳۰۵)
نه طاقت دَرد بدل لری نه صبر (۳۰۶)
لکه مار په ملاوهلے پیچ و تاب وی
نه ئے مرګ نه ئے فتنه له لاسه کیږی (۳۰۷)
لاس تړلے د خپل شرم په طناب وی
چه ئے زیست روزګار په کار وی تحمل کا (۳۰۸)
همیشه ئے له بد یه اجتناب وی
چه د تهوک د اچولو په ځائے ورشی
ق له هر څه ئے زیات په سترګو کښې عتاب وی (۳۰۹)
که یوه بده وینا ئے تر خولے ووځی
هغه وقت ئے په خپل ځان باندے عتاب وی (۳۱۰)
یو هغه سړے تیرے وربانده کاندی (۳۱۱)
چه په عمر نه د سوال نه دُځواب وی
همسایه وی چریکار د پښتانه شی
او په اصل به موچی یا به قصاب وی (۳۱۲)

ملائم وئیل اثر په هغو څه کا
چه په زړه کښې ئې نه شرم نه حجاب وی
لکه دیو چه د سړیو په صورت شی
ته گمان کړې چه سړې دے، دے دواب وی
په هیڅ رنګ له بده خویه نه جاروځی (۳۱۳)
هسې مست د جاهلیه په شراب وی
چه اشراف د هسې خرسو په لاس کښیوځی (۳۱۴)
ترو خلاصې به ئې له خونه په کوم باب وی
هسې رزق دِ خدائے هیڅ لره ورنه کا
که به رزق د چا په هسې رنګ اسباب وی
ترد اهسې زمیندارو هغه به وی (۳۱۵)
چه نوکر د یوه تور کافر کلاب وی
نوکری د یوه سپی ورلره ښه ده
هغه پریږده چه لا نوم ئې د نواب وی
د خشکۍ له غمه قوم د رحمان خوښ دے
که رفتن ئې له جهانه په شتاب وی (۳۱۶)

۳۱۶۶ $\frac{۴۳}{۲۷۶}$ ||

د هغو چه وبله مهرو محبت وی (۳۱۷)
په هستۍ او په نیستۍ کښې فراغت وی
عاشقی ده تر هغه مقام په هورته
چه د چا مقام په رنځ و په راحت وی (۳۱۸)

څه د اور په لمبو سوے څه په واورو
واړه عشق دے که هجران وی که وصلت وی (۳۱۹)
چه مطلب او مُدعا د سړی خدائے شی (۳۲۰)
ناست ولاړ ئے همه واړه عبادت وی
که په دوه قدمه ومری هم حاجی شی
چا چه کړے د مکے په لوری نیت وی
هغه ځوک چه پیروی د اولیاء کا
دا ئے واړه په معنیٰ کښے ولایت وی
که دَ زرو په تخت کښینی غزا وشوه
وَ فهیم وته کم فهمه بے عزت وی (۳۲۱)
خاورے زر په سړی واړه برابر شی
هغه دم چه له جهانه په رحلت وی
دَ دانا او دَ نادان ترمیان یو حد دے
هوښیاری د حد په هورته حماقت وی
تجاوز له خپله حده پکار نه دے
دَ هر چا په خپله خونه کښے حرمت وی
نور عالم که دَ دنیا غمونه کاندی (۳۲۲)
د رحمان سره دِ غم د اٰخرت وی

۳۱۷۹ $\frac{۴۶۴}{۲۷۷}$ ۱۳

دَ هغے بنا چه نوم محنت اٰباد وی
تر دِ خاطر به پکښے څه رنګ د چاښاد وی (۳۲۳)

په خواره او په خبنه کله وینه نسی
هرمرغه چه په قفس کښې د صیاد وی
دَ رنځور په خوله کښې کله مزه کاندی
که سل رنګه نعمتونه ئے معتاد وی
پائے بسته ؤلره هرچرته زندان وی
هغه هرچرے آزاد وی چه آزاد وی (۳۲۴)
عِشق تغیر وتبدیل نه لری یک رنګ دے (۳۲۵)
دَ اشنا له لاسه داد وی که بیداد وی
بنیادی بیخی هغه دے په یاری کښې
چه په یار پسے بے بیخه بے بنیاد وی (۳۲۶)
بودنی هغه باله شی په دُنیا کښې
چه د تن په نابودی ئے اعتقاد وی (۳۲۷)
نقصانی دی د دنیا عمارتونه
که تر لاندے سل ستونه د فولاد وی (۳۲۸)
زندګی که څوک پوهیږی حضور دم دے
آئنده و رفته کله د چا یاد وی (۳۲۹)
دا دُنیا لکه سیلاب هسے بهیږی
نه ئے چا څخه استوګه نه استاد وی
چه کامله اراده لری په زړه کښې
دَ مرشد له اشارته ئے ارشاد وی (۳۳۰)
وَ هغو ته چه خدائے خود پخپله ؤښو
څه حاجت ئے په ښوونه د اُستاد وی (۳۳۱)

ډیر یاران ورځنه بیل شو هیڅ کرم نه دے
که رحمان له جدائیه په فریاد وی (۳۳۲)

۳۱۹۰ ‖ ۴۵ / ۲۷۸

په دُنیا کښے که هرڅو وبله پیوند وی
پس له مرګه به ئے درست صورت بند بند وی
زه به وخورم په دا باب هزار قسمه
که باور دِ په قسم و په سوګند وی
یا به وړاندے ترتا دروهی یا دَ وروستو (۳۳۳)
که دِ ورور که دِ عزیز که دِ فرزند وی
زمانه به ئے تر پښو لاندے پائمال کا
که په قطع تر اسمانه سربلند وی (۳۳۴)
هم ئے هسے پیمانه ګنه په خاورو
که دِ ډکه خوله تمام عمر په قند وی (۳۳۵)
هرچه کاندی ازادی په دا جهان کښے (۳۳۶)
پس له مرګه به همه واړه په بند وی
هرچه غاړه ئے وحق ته یښے نه وی
همیشه به ئے په غاړه کښے کمند وی
دا چه زه وتاته وائیم که ئے خدائے کا
په آیات و په حدیث کښے به څرګند وی (۳۳۷)
ته چه نه کوے باور په آیتونو
ترو زما وئیل به څه درلره پند وی

نا پسند به دَ منکر په انکار نه شی
هر کلام چه دلپذیر و دل پسند وی
خدایه گنج دقناعت وَ رحمان ورکړے
چه بے ملکه بے حشمه دولت مند وی (۳۳۸)

۱۲ $\frac{۱۴۶}{۲۷۹}$ ۳۲۰۲

که د درستے دنیا غم ے په سر بار وی
واړه سهل دے که یار راسره یار وی
هزار واړه به د یار تر نامے ځار کړم (۳۳۹)
که په قطع ے دا یو صورت هزار وی
هغه نه دے په شماره د عاشقانو
چه د خپل تنتر داغونه ئے په شمار وی
مشکل کار دَ عاشقئ چه خدائے پیدا کړ
کله بل په جهان هسے مشکل کار وی
خوئے اوښے په مخ لارے روغے نه کا (۳۴۰)
د هغو ومعشوقو ته کله لار وی
ته چه گل زما د یار په جنس غواړے (۳۴۱)
کله دا رنگه گلونه په گلزار وی
نه مونده شی په بازار کښے نه په ښهر
هغه رخت چه د خوبانو په بازار وی
زه د یار په څیر بل نه وینم په سترگو (۳۴۲)
که په هره خوا خوبان هزار هزار وی

د عاشق نظر په لبړ او په ډیر نه وی
د خپل یار مهرکه لبړ وی هم بسیار وی (۳۴۳)
شته هزار هزار خوبان ولے سوګند دے (۳۴۴)
که زما د یار په څیر په هیڅ دیار وی
ق که ئے هر زمان په اٰبِ زمزمِ وینځم
بے مئینه ے په زړه باندے غبار وی (۳۴۵)
مرګ له هیچا سره وار نه کا رحمانه (۳۴۶)
یار به ځان تر یار ورومبے کا که په وار وی

۳۲۱۲ ۱۰ $\frac{۴۷}{۲۸۰}$

له هغو سره به څه فکر د یار وی (۳۴۷)
چه یاران ئے په هر لور هزار هزار وی
په اشنا پسے ویشتلے هم هغه وی
چه له نورے اشنائی ئے استغفار وی
صبوری او قراری دِ په ما ژَوَم شی (۳۴۸)
که بے تا به ے یا صبر یا قرار وی
هر ژوندون دَ یار په وصل ښائسته وی
بے مئینه که ژوندون وی څه په کار وی
که دَ یار له لاسه اور په یار بلیږی
ق هغه اور وعاشقانو ته ګلزار وی (۳۴۹)
په یاری کښے ازار نشته خدائے دِ نه کا
که ذره به زما زړه له تا ازار وی

وهغو ته عاشق نه وئيلے بويه
چه ئے فکر يا دَ سر يا دَ دستار[۳۵۰] وی
ځائے ئے اور شی چه زنار ئے شی په غاړه
ولے نه چه ستا دَ زلفو زنار دار[۳۵۱] وی
ستا د زلفو زنار دار که په اور سوزی
دغه اور به هم همه ستا دَ رخسار وی
هغه جونه به ليلے غوندے رسوا شی
چه رحمان غوندے مجنون ئے په ديار[۳۵۲] وی

۳۲۲۰ ۴۸/۲۸۱ ۸

که دَ ستا د خاطر مينه په اغيار وی
ستا د پاره دِ اغيار هم زما يار[۳۵۳] وی
چه سړے په يوه مخ باندے مئين[۳۵۴] شی
له يوه مخه ئے سل مخه پکار وی
هر چه کاندی نوکری دَ بادشاهانو
خواه ناخواه دَ دربانانو منت بار[۳۵۵] وی
زه به ستا له رقيبانو څه مانه کړم[۳۵۶]
دا دستور دے چه له ګله سره خار وی
څو سل خاره ئے ښخ نه شی په ټټر کښے
کله وی چه دَ بلبل وګل ته لار وی
سجاده به دَ ساقی د لارے فرش کا
هر صوفی چه دَ سرو سترګو خريدار[۳۵۷] وی

په جذبه د عاشقۍ به لیونے شي
که په قطع افلاطون غوندے هوښیار وي
په رحمان بانده به هیڅ ملامت نه کا
هر سړے چه ستا له حُسنه خبردار وي (۳۵۸)

۱۵ $\frac{۴۶۹}{۲۸۲}$ ۳۲۳۵

چه په مخ بانده د اوښیو یو رقم وي
عین د توُرو له پرهره سره سم وي
که ګریوان مے دَ سپوږمۍ د نمر مشرق شي (۳۵۹)
زه چه یار په سترګو نه وینم تورتم وي
کږ و وروځو غوندے نیش وهلے نه شي
که د زړه د پاسه پروت د ځا لړم وي
دلته سر پورته کول د ځا رسیږي
چه پخپله د یار زلفے خم درخم وي
قاعده د دردمندۍ هسے نه ده
چه په درد کښے یو دردمند تر بله کم وي (۳۶۰)
معشوقه چه دَ عاشق په غم وي غوښه
دَ عاشق سترګے دِ ووځي چه بے غم وي (۳۶۱)
همدمي دَ دوو همدمو هسے بویه
چه دَ دواړو زندګي په یوه دم وي (۳۶۲)
که د درست جهان خوښي وربانده راشي (۳۶۳)
مه کړه خدائے چه څوک بے یاره خوښ خرم وي

بل ستم دَ بیلتانه دَپاسه نشته
که لیدلے چا په سل رنګه ستم وی
دا قضا خو په قاضی موقوفه نه ده (۳۶۴)
خود پخپله یار تر یاره پورے کرم وی
راحت هرچرے هغو لره لازم دے
چه په درد و په محنت کښے مقدم وی
چه خوناب ئے د چشمانو مئے ناب شی (۳۶۵)
پیوسته له دغه جامه سره جم وی
هیڅ حاجت دَ هُنر نشته و نصیب ته
که په اصل څوک عرب وی که عجم وی
هُنر مه غواړه طالع له خدایه غواړه
بے سلیمانه پکار نه دے که خاتم وی (۳۶۶)
دَ رحمان خندا په اجر دَ ژړا ده
تازګی د ګل په قدر دَ شبنم وی

۳۲۴۲ $\frac{۵۰}{۲۸۳}$ ۷

همیشه دِ زما سرا و ستا قدم وی
تر هغه ساعته پورے څو مے دم وی (۳۶۷)
زه بے تا هسے ګمان کړم چه بے حال یم (۳۶۸)
که نسکور مے په لبانو جام دَجم وی
ستا له لاسه واړه ما لره نافع دی
که مے زهر وی په زخم که مرهم وی (۳۶۹)

نور عالم که دَ دنیا په ښادی ښاد دے (۳۷۰)
زما زړه دِ مدام ښاد دَ ستا په غم وی
که په زړه باندے مے سل غمونه راشی
دَ ستا غم دِ تر همه وُ مقدم وی (۳۷۱)
ما دِ خدائے دَ ستا له غمه بے غم نه کا
تر هغه ساعته پورے څو مے دم وی (۳۷۲)
رحمان ستا په څ میئن دے حق خبر دے
که په دے کښے به هیچرے زیات وکم وی (۳۷۳)

## ے

۳۲۵۳ ۱/۲۸۴ ۱۱

زړه مے ورکړ وخود رائے
هر چه شوه تکیه په خدائے (۱)
په سودا د عاشقئ کښے
یا به شاه شم یا گدائے
یا به کښینم وَ دوئے ته
یا په سیوری د همائے
چه خدائے کا هغه به وشی
نه بل خدائے لرم نه ځائے (۲)
بے دلبره به ورنه کړم
نور وَ هیچا د زړه رائے (۳)
پائے بوسی به ئے پرے نه ږدم (۴)
څو مے رسی دست و پائے
یا خندا ده په جهان کښے
یا ژړا ده په وائے وائے
تر دا دوه چارو په هور ته (۵)
نور څه نشته په دا سرائے
عاشق بویه چه صادق وی
نه خودکام و نه خود رائے (۶)
خدائے د نه کا څوک په عشق کښے
جو فروش گندم نمائے
زه رحمان په کار پوهیږم
که مے مل وی کار فرمائے (۷)

۳۲۶۸ $\frac{۲}{۲۸۵}$ ۱۵

که له ډیره غمه دم دَ چا ځنے
زهٔ به مړ وم ستا په غم کښے لړغونے[۸]
زړه ے هسے رنګ په تورو زلفو بائیلو[۹]
لکه ورک په توره شپه کا څوک کالے
په یوه ساعت مے رد هم مے قبول کا
نه پوهیږم چه ئے خپل یم که پردے[۱۰]
په یوه لاس ئے مرهم په بل خنجر دے
نه په مړیو کښے حساب یم نه ژوندے
که په مرګ دعاشقانو ئے رضا وی
خدائے دِ ما کا ترهمه وارو ورومبے[۱۱]
خون بها مے دَ ستیه په خیر نشته
ما پخپله قبول کړے دے خپل سوے
وَ کوم کوم ته به ادراک دَ پارو رسی[۱۲]
هر وینبته ئے دَ کاکل شه منکرے ق
څوک دِغم زما د ډیرو اوښیو نه خوری[۱۳]
کم به نه کا په خوردن سره ندے
دَ هجران په توره شپه کښے زه ویرېږم[۱۴]
چه ئے نه وینم دَ وصل سپین سپوږمے
دَ یار غم لکه مزرے راباندے راشی[۱۵]
خدائے دِ پیښ په هیچا نه کاندے مزرے

چه ئې غم غلطومه دَ شپې پاڅم[۱۶]
کله مې په شونډو کیږدم کله نې
ګه کتاب ګڼې رباب په لاس راواخلم
بارې دردې په هیڅ رنګ نه کاکې[۱۷]
همسایه مې واړه ووته له خوابه
که په سل کوټو دننه کړم زبیر کې[۱۸]
که عاشق ترمعشوقې پورې یوسپې دې
خدائې د هجر په تیغ مه وژنه یو سپې[۱۹]
زه رحمان دَ یار په غم کښې هسې ډوب یم
چه هیڅ نه وینم په سترګو مکر دې

۸ ۳/۲۸۶ ۳۲۷۶

چه دارو دَ درد و غم وی هغه مې
ساقی ماره یو دوه جامه پیاپې[۲۰]
مې د خپلو لبو را نهٔ دَ انګورو[۲۱]
چه اول ئې نوشیدن وی پسې قې
په هر تیغ کښې چه آب نه وی دَ شرابو
څوک دَ غم په غلیم نه مومی برې[۲۲]
جام دَ میو چه غم خوار د کل جهان شه[۲۳]
زه به اوسم په دا غم کښې تا به کې
راشه یو ځله مې هسې مست خراب کړه
چه خبر نه شم له حاله دَ هیڅ شې[۲۴]

بے خودی هسے پناه ده زورا وره[۲۵]
چه له هره غمه خلاص کاندی سړے
زه هغه تحصیل تمام کړم په عشق کښے[۲۶]
چه ئے روغ وکړے بولی لیونے
رحمان صُلح له رقیب سره په دا کا
اشنا ښه دے البته خوږونکے سپے



ورک شه ورک شه بدکرداره بدسړے[۲۷]
که دِ ورور که دِ عزیز وی که پردے
تر هغه لا نیکوکار بیګانه ښه دے
چه بدکار شی دَ چا زویه یا نمسے
لړکی لوښی همه واړه پر مردار وی
بدکرداره لکه سولند وږے سپے[۲۸]
هغه خلق همه واړه لیونی[۲۹] کا
چه په کلی کښے یو سپے شی لیونے
بل علاج دَ لیونیو سپیو نشته
بے له مرګه چه پر ډک شی یو کوهے[۳۰]
حرام خور دَ مخنثو په حساب وی
که په توره یا په تیغ وی مړنے[۳۱]
مړنے وئیلے بویه وَ هغه ته
چه بے وجهے زار نه کاندی یو شے[۳۲]

دیک ئے یښے په دیګدان وروبے ترتیغ وی
چه ئے سور په آه سرد نه شی نغرے
هسے فیض ئے وَ هر چا وَته رسی[۳۳]
چه باله شی دخپل وقت حاتم طے
اے رحمانه چه بد فهمه بدکردار شی[۳۴]
راته وایه سپے بهتر دے که سړے

۳۲۹۵ ۵/۲۸۸ ۹

غم دِ هسے غلبه شه په ما باندے
چه مے نهٔ دننه ځائے شی نه دَ باندے[۳۵]
له زبیرګیه مے نور خلق په عذاب شه[۳۶]
تل دَ وچو له کبله سوزی تاندے
زه دَ ستا په غم کښے شمع غوندے ژاړم[۳۷]
ته زما په ژړا صبح غوندے خاندے
زړهٔ مے هسے ستا په لوری اویزان دے[۳۸]
لکه زلفے دِ په مخ دی اویزاندے
ما د ستا داندیښنو په اور دی سوے
دَ دنیا اندیښنے واړه لکه سپاندے[۳۹]
دا دستور دے چه یو غم په سړی زور شی
نور غمونه ئے همه شی تر پښو لاندے[۴۰]
هرچه ما په نصیحت له تا جارباسی
بیا دستا په لوری درومی له ما وړاندے

زه رحمان ئے شدنی په ځان کنمه
که یار سل ناشدنی چارے راکاندے[۴۱] ق
سره لمبه کوره چه څه کا په وچ ړکی
مخ دَ یار په رحمان هسے چارے کاندے

۳۳۰۷ $\frac{۶}{۲۸۹}$ ۱۲

په هرځائے چه ستا ثنا شی بنیوه کرے
خرمهرے شی هلته در ومرغلرے
دَ هغو سترګو به اوښے وی ګلرنګے[۴۲]
هر چه ستا په ګل رخسار وی منتظرے
هغه کله دَ ناصح خبرے اوری
هر چه اوری ستا ورے ورے خبرے[۴۳]
مرور کاندی عاشق له جُمله خلقه[۴۴]
معشوقے له هیچا مه شه مرورے
په ساعت کښے سرے مرهم ئے ژوندے کا
طائفے دی دَ خوبانو سِحرکرے[۴۵]
زه ځان ړوب کنم بے تا په خپلو وینو
که مے ړوب کاڅوک په شهدو په شکرے
لرے لرے غم دِ وارۀ رانژدے کړ
چه له مخه دِ حجاب کړ راته لرے
چه مے نوم دَ ستا د تورو زلفو واخست[۴۶]
را پسے شوے دَ بلا تورے لښکرے

هیڅ په حق دَ حقدارانو نه ګروهیږے
همیشه زما په وړی زره مُنکر[۴۷] ے
زما ستا مینه ښرګنده په جهان ده
ولے دا رنګه ښرګنده ګواهی نغرے
زه چه ستا له غمه ژاړم آه فریاد کړم
دَ رقیب کره هم ډول وی هم سندرے
دَ رحمان شعر به ولے نادر نه وی
چه ثنا کاندے له تاغوندے نادر[۴۸] ے

۹ ۷/۲۹۰ ۳۳۱۶

غم خواری دا هسے چرے وی غم خورے
چه ما دلے وته ناست لرے ته دور[۴۹] ے
هغه خدائے چه د ستا مخ بله لمبه کړ
دا لمبه ئے کړه زما په ګوګل پور[۵۰] ے
هم هغه دی زما تور لیمه سره کړی[۵۱]
چه ئے ستا لاسونه سره کړه ستر ګے تورے
غل دَ سر و دَ مال غلا په توره شپه[۵۲] کا
ته په ورځ زما دَ سر و دَ مال چورے
اصیل نه دی چا پیرودی نه ئے پلوری[۵۳]
ته اصیل په دیدن پیرے هم ئے پلورے
دا کوم رنګ دَ اشنائیه دَ یاری دے
چه زه ستا دَ مخ ثنا کړم ته مے زور[۵۴] ے

درخانۍ په سل غمونو خدائے اخته کړه
زه به ولے له تا زار کوم که کوړے (٥٥)
زه وَتاوته دَ ستا له جوره ژاړم (٥٦)
ته راواخلے سل ګلے نادرے نورے
دَ رحمان په عاشقۍ به آفرین کړے
که لږ مخ و آئینے ته کړے وګورے (٥٧)



خدایه مه کړه ناامید هغه وګړے
چه امید ئے دے دَ ستا په کرم کړے (٥٨)
ستا له رحمه به زه ولے نومیدی کړم
چه دِ نام دے دَ رحیم په نام نومړے (٥٩)
دا نیمګړے سړے ننګه دَ خپل نام کا
ته خو خدائے ئے چه په هیڅ نه ئے نیمګړے (٦٠)
هیڅ بنده دِ په بندګۍ کښے لیده نه شی
چه تاخط دَ ازادۍ نه دے ورکړے (٦١)
(٦٢) دا همه واړه شومیت دے د شومانو
ګنه ته دَ چا په زیرمه نه ئے سترے
چه بے تا ئے په زړه بله هوا ګرځی
تر مقصوده به وُ نهٔ رسی دوه زړے (٦٣)
(٦٤) هر چه ستا په لار قدم دَ راستۍ کیږدی
که ئے زیان وی زه رحمان ئے پوره وړے

۷ $\frac{۹}{۲۹۲}$ ۳۳۳۰

دَ اشنا له لاسه ناست یم په زړه سترې
په فلوس مې په کار نه دې درست وګړې
چه په ژوندٔ ئې طمع پرېکړې شي له ژوندهٔ
نور به څه باندې ویرېږي سر پرېکړې (۶۵)
که ژوندون دَ عاشقانو په وصال وي
زهٔ مهجور یم په دغه روایت مړې (۶۶)
خوږ ژوندون مې جدائیه هسې تریخ کړ
چه دَ غم له تلخئ دَم نه شي رانغړې (۶۷)
دا صورت په مثال خس محبت اور شه
تړو د اور په مخ کښې څهٔ کاندي خسړې (۶۸)
لا علاج به لکه اوښ باربرداري کا
چه په پوزه ئې پېزوان شي دعشق پړې (۶۹)
له احوالهٔ ئې ورو ورو پښتئ یارانو (۷۰)
بېلتانه دَ رحمان وار دې خطا کړې

۱۵ $\frac{۱۰}{۲۹۳}$ ۳۳۴۵

ما چه سترګې وَکل رُخ ته واړولې (۷۱)
په هغو سترګو مې وینې وژړلې
دَ عمل جزا مې بیا مونده برحقه (۷۲)
دا دستور دې چه کړې هغه اخلې

ترغمز وئیو په سله زره قاتل دے [۷۳]
تل چړے تورے په کاڼی تیرولے
خودکرده به څه تاوان له چانه غواړی
چه ئے غوځے په خپل تیغ کړے سپینے خپلے
ما لا مرګ دَ ستا په مینه کښے هاله لید
چه ګدائے دَ بادشاهئ لاسے وهلے [۷۴]
له خوبانو به څوک څرنګ وفا غواړی
سروے کله کشمشی میوه نیولے [۷۵]
په دربار ئے سنډاسی شه ورته کښینه
تار په تار دَ سر ویښته ایرے مښلے [۷۶]
که ئے لاس دَ خدائے په کار کښے رسیدلے
بده بخره به چا چرے قبلولے [۷۷]
چه نیکی دِ و نیکانو ورکوله
دے بدانو څه بدی نه وه غوښتلے [۷۸]
څوک له خاورو ایرو پاڅوے تخت ورکړے
څوک له تخته دَ ایرو په ډیران ولے [۷۹]
ورکړه راپیروده دواړه په خپل لاس دی
که وچائے ورکوے که ئے اخلے [۸۰] ق
ځار تر هسے رنځ نیولو شه رحمانه
چه شهی ئے په پښتنه وی راغلے [۸۱] ق
خدائے طاعت (دَ بنده) څه کوی رحمانه
خوئے مینه دَ سړی ده آزمائیلے [۸۲] ق

ستا چه نیت دَ اشنائۍ نه ووصنمه
دَ رحمان سترګے دِ وے نه ګنډ لے (۸۳)
دَ ازل په ورځ دَ بخرو جواری وه
اے رحمانه چا بائیلوے (۸۴) چا ګټلے

۳۳۵۵ ۱۱/۲۹۴

هسے ډوب یم ستا د غم په دریاب تللے
چه ماهی غوندے بے تیغه یم (۸۵) کوتلے
ما لیدے لیندے چه لندیو به راکښلے
تا دَ وروځو په لیندو یم زه (۸۶) راکښلے
په خپل ځان ـــے تر هغه پورے نظر وو (۸۷)
څومے ته ٔ په نظر نه وے کښیوتلے
اوس ـــے ستا په مینه ځان وجهان هیر شه (۸۸)
دَ سیلاب په مخکښے لاړم لکه خلے
عاشقي به ـــئے دَ باد په مخ بنه کا
که چا ځائے وی کوه قاف غوندے نیولے (۸۹)
چه د عشق له بحره روغ سلامت ووځی
زه ـــئے نن ګڼم له موره زیږیدلے
هر چه واوری په بلا د تورو زلفو
هغه بیا تر کوره نهٔ دے ورغلے (۹۰)
چه له غرونو پریوتلے وی بیا پاځی
پاځیدے نه شی له زړونو پریوتلے

چه دَ اور لمبو وهلے وی بیا روغ شی
نه رغیږی دَ ازار لمبو[۹۱] وهلے
زه رحمان ئے هر دم وینم ستا په غم کښې[۹۲]
که خپل مرګ په سترګو نه دے چالیدلے

۸ $\frac{۱۲}{۲۹۵}$ ۳۳ ۶۳

نه چه خپله بے عقلی هوښیاری بولے
کشکے بیا موے دَ غوښتو په نرخ شولے
عشق یو داد دے په عاشق باندے لهٔ خدایه
هسے نه دے چه ئے پیرے یا ئے پروولے[۹۳]
زلیخا غوندے به بله شیدا نه وی
که دَ مصر مستورے شی وارہ توولے[۹۴]
هغه بحر څه په بحر حساب نه دے
چه اوبه ئے خاک الودے وی ختولے
له هغو سره به څه فکر دَ یار وی
چه په غم وی دَ کالهٔ یا دَ کهولے[۹۵]
عاشقی دَ خپل نغری په غاړه نه شی
څو په یار پسے وانخلے ځلے ځولے
دَ وصال په نعمتونو غره مه شه
جدائیه خلقے کړے په زړه زمولے
دُر ګوهر په تله نه دی چا تللی
دَ رحمان شعر ګوهر دے څهٔ ئے تولے

۳۳۷۲ ۱۳/۲۹۶ ۹

زه دَ ستا له غمه ژاړم واړه وینې
واړه وینې واړه وینې واړه وینې[۹۶]
خود مې وینې چه په تش کاته دِ مړیم[۹۷]
لا خنجر په کاڼي مږې دِل سنګینې
هر زمان مې په حضور دَ سترګو وژنې
لا یقین دِ دَ زړه نه شي بې یقینې
عالم ستا په مینه ژوی نه پوهیږم
زه په څه سبب وژلې یم ستا مینې[۹۸]
ډیر عالم به نمري رنګ کا معلومیږي
تا چه هسې جامې واغوستې رنګینې[۹۹]
پټې ئې نه وي چه وَبله خواته دروي[۱۰۰]
هسې سکڼي په غمزه دَ عاشق سپینې
که صورت مې پربله پورې معلومیږي[۱۰۱]
زړه مې ستا له غمه چاود دې نازنینې
هغه څوک دې چه تر تا به بهترین وي
اې تر واړو مهرویانو بهترینې
چه دِ زلفې دَ رحمان په زړه وریځ کړې
تر بڼوئې ځکه څاڅي اوبه سپینې[۱۰۲]

۳۳۸۵ ۱۴/۲۹۷ ۱۳

هسې رنګ نعمت ورکړې خدائې وما دې
چه مې هیڅ بهائې نشته بې بها دې[۱۰۳]

یو خو دا چه ئے په شکل دَ اٰدم کړم
دوئیم دا چه مُحمّدؐ ے رهنما دے
(۱۰۴)
لاس وپښے وغوږ وسترگے خوله وژبه
یو صورت ے په ښواسمه مسمیٰ دے
اسمان زمکه نمر سپوږمۍ و روښان ستوری
درست جهان ے و نظر ته تماشا دے
شپه و ورځ دَ ماه و مهر له پرتوه
مخ دَ زمکے راته درست نقره طلا دے
په شپه مشک په ورځ کافور راباندے ووری
(۱۰۵)
درست صورت ے پکښے ډوب ترسرو پا دے
چه هر دم زندگانی بخښی وما ته
هر نسیم د یار له لوریه مسیحا دے
دَ چمن و سرو گلونو ته چه گورم
(۱۰۶)
هر هر گل راته له ورایه په خندا دے
د گلگونو میو ناوے راته ناسته
(۱۰۷)
زنگاری قمیص اغوستے وَ مینا دے
خپلے وینے په ورغوی کښے نیولے
هر ساغر دَ ے پرستو جان فدا دے
(۱۰۸)
دَ شنه رود په غاړه ناست سرود په لاس کښے
هر مطرب لکه بلبل هسے گویا دے
سپین مخونه سرے لبنتیه دَ دلبرو
(۱۰۹)
هر دیدن ئے دا افتاب په خیر رنا دے

چه دا هسے معرفت ئے پر پیرزو کړ
په رحمان باندے منت د پاک مولا دے[110]

۳۳۹۹ ۱۵/۲۹۸ ۱۴

یو یو داغ په تتر یښے دَ هرچا دے
که بادشاه دَ ولایت دے که ګدا دے[111]
سیرابی په سرچشمه دَ دُنیا نشته[112]
تشنه لب ئے ګوښے ګوښے په غوغا دے
لږ راحت ئے په ډیر ډیر زحمت مونده شی[113]
دَ دے دهر خس حرام شه که ویړیا دے
د دنیا ښادی بے غمه مونده نه شی
لږ خیرات د شوم له کوره په بلا دے
فراغت پر باندے وے حرام نه وی
چه داخل په سراچه د دے دنیا دے
دَ مجنون د حال پښتنه به څوک څه کا
جهان واړه کوراکور مجنون لیلیٰ دے
عشق یو هسے رنګ افسون په عالم پو کړ[114]
چه عاشق په تورو سترګو نابینا دے
وَهرچا ئے بخره ورکړه ګوښے ګوښے
خپل قسمت دَ هر سړی جدا جدا دے[115]
ورکړه راپیروده تول دَ بل په لاس دی
دلته دخل نه زما دے نه دَ ستا دے[116]

پہ هر کار چه دَ صاحب دَ زړہ رضا شي (۱۱۷)
پہ بندہ که ناروا وي هم روا دے
خواہ ناخواہ که ئے رضا وي که ئے نه وي
دَ قسمت رسد رضا و نا رضا دے (۱۱۸)
ځان ایمان سپارلے بویه و هغه ته
چه ئے حکم جاري شوے پہ هرچا دے (۱۱۹)
دَ هرچا پہ لاس چه حکم حاکم ورکا
جهان واړہ دَ هغه پہ مدعا دے (۱۲۰)
چه مولیٰ ورسرہ مل نه وي رحمانه
که لښکرے ورسرہ وي یک تنها دے

۳۴۰۵ $\frac{۱۶}{۲۹۹}$ ۶

دا چه مست پہ میو راغے یار دَچا دے
بیا به تاخت کا پہ کوم غولي وار دَچا دے
چه زړہ سوے ئے دحرم پہ صید نه شي
دا د غشي بے صرفے گوزار دَچا دے (۱۲۱)
ما خو بے وجهے څوک نه دي ازار کړي (۱۲۲)
دا چه ما ازارہ وي ازار دَ چا دے
چه ئے درست جهان دَ مخ پہ رڼا زلیست کا
دا افتاب غوندے روښان رخسار دَچا دے
چه بلبل ئے رسیدے تر گله نه شي (۱۲۳)
دا دننه پہ حرم گلزار دَ چا دے

چه هیڅ ترس په زړه کښې نه لري رحمانه
دا ناترس و بې پروا نګار دَ چا دے

۳۴۱۴ ۹ $\frac{۱۷}{۳۰۰}$

غواصان که ګوهر غواړي ګوهر دا دے
بیدلان که دلبر غواړي دلبر دا دے
زما یار غوندے به بل یو دلبر نه وي[۱۲۴]
دَ جمله وُ دلبرانو سرور دا دے
خوند دَ لبو او دَ چاهِ زنخدان ئے
راشئ ګورئ زمزم دا دے کوثر دا دے[۱۲۵]
چه دِ وصل او هجران وته نظر کړم[۱۲۶]
زه ګمان کړم جنت دا دے سقر دا دے
ته خطبه په منبر څه لولے خطیبه
قدم کیږده په ځان باندے منبر دا دے
دَ کعبے سفر اسان دے مرد هاله ئے[۱۲۷]
که له ځانه سفر وکړے سفر دا دے
هر منعم چه دِلجوئ دَ قلندر کا
هغه نه دے قلندر قلندر دا دے
چه توانګر دَ قناعت په خزانه شي
بل توانګر په جهان نشته توانګر دا دے[۱۲۸]
دا هنر نه دے چه خاورے څوک سره زر کا
چه زر خاورے کا رحمانه هنر دا دے

۳۴۲۶ $\frac{۱۸}{۳۰۱}$ ۱۲

دَ ساقي په لاس کښې جام دَ ميُوناب دے
مطرب ېښې په زانو باندے رباب دے
محتسب په رقص کړ شه پائے کوب کا
(۱۲۹)
صوفي پروت په ميخانه مست وخراب دے ق
په رقيب باندے غفلت راغے وودہ شه
(۱۳۰)
يار پلو له مخه واخست بے حجاب دے ق
(۱۳۱)
ته چه ما وته توبه وائے ناصحه
په دا وقت کښې چا څخه دَ توبے تاب دے
زه چه ځان منع کوم دَ عشق له کاره
په دا هسے کار کښې کوم سود وثواب دے
دا اسمان چه لوئے په عقل کښې باله شي
په محيط دَ عاشقۍ کښې يو حباب دے
(۱۳۲)
هر چه ژغوري سر و مال په عاشقۍ کښې
هغه کړے کور په مخکښې دَ سيلاب دے
(۱۳۳)
ته چه خواب غواړے په عشق کښې راته وايه
کوم چا کړے دَ مزرۍ په خوله کښې خواب دے
بے عمل که کتاب کيږدي په سر څه شو
ګويا ېښې ئے ترپښو لاندے کتاب دے
چه دَ شر له عملونو خير غواړي
(۱۳۴)
تشنه لب غوندے سيرشوے په سراب دے

دَ دښمن له مکاریه وویریږه[۱۳۵]
په نرمیٔ ئے غلط مه شه سنګ دراب دے
عبادت په شتاب هسے کړه رحمانه
لکه عمر چه دِ تلو نے په شتاب دے

۷ ۱۹/۳۰۲ ۳۴۳۳

هغه زړه چه ستا دَ عشق په اور کباب دے
که مرهم وربانده کیږدے ډیر ثواب دے
حجابونه له اغیارو مناسب دی
له یارانو په یاری کښے څه حجاب دے[۱۳۶]
بے له تا چه ښائسته ئے بے حسابه
نور ښائست دَ جهان واړه په حساب دے
ښاپیریٔ که هرڅو ډیرے ښائسته دی[۱۳۷]
په هغو کښے هم ستا حُسن انتخاب دے
لکه ګل چه تر افتاب پورے خجل وی[۱۳۸]
دغه هسے ستا ترمخ پورے افتاب دے
دا دَ میو دَ مستیه سُرخی نهٔ ده[۱۳۹]
تیغ دَ سترګو دِ په وینو کښے غرقاب دے
زه رحمان به څه خُواب کوم وَ یارته
و ژوندیو ته دَ مړیو څه خُواب دے

۳۴۳۹ ۲۰/۳۰۳ ۶

چه ترسنګ و تراهنه ئے زړه سخت دے[۱۴۰]
زړه هغه لره ورکړے ما کم بخت دے
خدایه کله به هغه یاغیان را ایل کړے
چه لوټلے ئے زما دَ خاطر رخت دے
همره غم به نور په هیچا باندے نه وی[۱۴۱]
لکه غم چه دَخپل یار په ما یک لخت دے
مګر بیل په تیره تیغ شی یار له یاره
ګنه ښاخ له خپله ډرخته سره ډرخت دے[۱۴۲]
دَ پهلنګ او دَ پیرڼیه حاجت نشته
دَ یارانو نشستن دَ زړه په تخت دے
چه له ډیره غمه وقت پیژندے نه شی
په رحمان دَ یار له غمه هسے وخت دے[۱۴۳]

۳۴۵۵ ۲۱/۳۰۴ ۱۶

که ئے مهر و محبت که ئے عناد دے
ما دَ یار په یاری کړے اعتقاد دے[۱۴۴]
لکه زه چه په خپل یار باندے میئن یم
یو په سله دَ یار مهر په ما زیاد دے[۱۴۵] ق
زه و یار که په تن دوه په معنیٰ یَو یو
هزار خونے واړه یو ښهر بغداد دے[۱۴۶]

هيڅ بيلتون زما دَ يار وبله نشته[۱۴۷]
کار هسه واړه موقوف په خپل ميعاد دے
زه خپل آه اتشين له خدايه غواړم
دَ اشنا خاطر که موم دے که فولاد دے[۱۴۸]
په جذبه دَ عاشقئ که برهم نه شي
بے دادي دَ مطلوبانو واړه داد دے[۱۴۹]
هيڅ موقوف دَ معشوقو په حُسن نه دے[۱۵۰]
دعاشق خاطر په خپله مينه ښاد دے
چه دَ آه و دَ فرياد طاقت ئے نه وي[۱۵۱]
هر سکوت دَ بے طاقتو آه فرياد دے
سل په دا رنګه نومونه دَعشق نور دي
لکه نوم چه دَ مجنون او دَ فرهاد دے
چه ئے زړه شي هلته کښيني هلته پاڅي
عشق دَ عقل و دَ هنر کره داماد دے[۱۵۲]
بادشاهان په عاشقئ کښے ملنګان شي
ما و تا غوندے وګړے دَ چا ياد دے
چه پريشان دَ يار دَ زلفو په څير نه وي[۱۵۳]
جمعيت دَ هغو زړونو لوئے فساد دے
که رښتيا له خرابيه سره ګنج وي
خرابات دَ بے بنيادو بيخ بنياد دے
که کمال دَ کمينئ په اندازه وي[۱۵۴]
فوقيت دَ شاګردانو په استاد دے

ق

چه به یار پسے ترځان وجهان تیرشي
پہ رحمان زمونږه هسے اعتقاد دے [۱۵۵]
چه دا نورشاعران کاندی هغه نه کا
رحمان کړے نوے نوے اجتهاد دے

۸ ۲۲/۳۰۵ ۳۴۶۳

ستا دَ لاسه په ماجور دے که داد دے
زما مراد خو واړه ستا دَ خاطر مراد دے [۱۵۶]
ستا په مینه کښے زما له محنه تبشتی
که افت دے که اسیب دے که فساد دے
هراهداد چه راکاوه شی ستا په مینه [۱۵۷]
په لیمه زما قبول هغه اهداد دے
که تمام جهان مے پریوځی په لیمهٔ کښے
بے تا نه راځرکندیږی نه مے یاد دے [۱۵۸]
ما چه غوږ دَ ستا دَ عشق په ترانه کړ [۱۵۹]
نصیحت مے نور دَ زړه په غوږ وباد دے
اوس زما له ننګ و نامه سره څه دی
چه دِ نام دَ عاشقۍ رابانده زیاد دے [۱۶۰]
هر ګلشن چه له ګل رخه بے بهره وی
دَ عاشق په نظر غولے دَ صیاد دے
دَ رحمان و توان ته ګوره هومره نازکړه
څه دَ اوسپنو روغ نه دے ادم زاد دے [۱۶۱]

۳۴۷۴ $\frac{۲۳}{۳۰۶}$ ॥

دُنیادار که دُنیا دار په سیم وزر دے
هنرمند و سره گنج دَ خپل هنر دے (۱۶۲)
بیهوده به زوراور و ځان ته وائی
دَ دنیا سړے که هرڅو زوراور دے (۱۶۳)
هسے مه وایه چه زه یم په جهان کښے
پیدا کړے خدائے دَ سر د پاسه سر دے
ځنے ځنے ئے ولیان پیغمبران[۴] کړه
نه چه هر یو اولیا او پیغمبر دے (۱۶۴)
جو دا نه قدرے یو لعل پکښے پیدا کا
نور جهان واړه دَ تورو کاڼو غر دے (۱۶۵)
یو بادشاه وی چه لښکرے پسے درومی
نهٔ په هر چا پسے کړے خدائے لښکر دے (۱۶۶)
پیدا کړی خدائے سړی په تفاوت دی
هسے نه چه جهان واړه برابر دے
که دَ عمر و رفتن ته ځوک نظر کا
دا به وائی چه افتاب دَ نمازدیگر دے
چه ئے سر په زمکه یښے وی و یار ته
په اسمان باندے ختلے لکه نمر دے (۱۶۷)
ته زما په ډیرو اوښیو عیب مه کړه
ما موندلے په دا بحر کښے گوهر دے

دَ ریا خرقه ئے خدائے مه کړه په غاړه
رحمان کوړ دستار تړلے قلندر دے

۳۴۸۲ $\frac{۲۴}{۳۰۷}$ ۸

ق

زړه مے ستا دَ غم وغشیو ته سپر دے
بیا دا شپر په معنیٰ امن دَ خطر دے (۱۶۸)
چه دَ یار له لوریه غشے په یاری کښے
هغه غشے غشے نه دے نیشکر دے (۱۶۹)
دَ دنیا ښادی همه غم ژنو وکړه
بے روژے عالم له عید څه خبر دے
که ستا هیڅ په ما پوره نه دی دلبره
خدائے گو ما لره بے تا دَ دین ضرر دے
که ظاهر په صورت یم په معنیٰ نه یم
لکه حرف چه دَ لا کښلے په دفتر دے
بے له اسمه مے نور هیڅ نشته له جسمه
د الام په خوله دَ نورو مکرر دے (۱۷۰)
خو ستا قد زما په سترګو کښے خدائے نقش کړ
ګنه دلته یو وینته په مثال غر دے
دَ رحمان عقل تر ځارشه څو څو واره (۱۷۱)
هر کم عقل چه دَ ستا په عشق اوتر دے

۹۰ ۳۴ $\frac{۲۵}{۳۰۸}$ ۸

په خاطر باندے مے ستا دغم غبار دے
همیشه مے په زړه پروت انبارانبار دے
که رهبر دے ګمراهانو لره خضر
عاشقانو لره خضر ستا رېبار دے
ګوندِ چرے ښوک دَخدائے په درقبول وی (۱۷۲)
ستاله لاسه مے فریاد په هردیار دے
دَ شهیده پرهارونو ته نظر کړه
هسے رنګه مے له دوه سترګو خونبار دے (۱۷۳)
چه دَ غم په بارئے زړه دے زما لښلے
هم هغه مے په زړه کښلے په باربار دے
چه هردم بے دَ غمزے په توره وژنی (۱۷۴)
لا مے زړه دَ هغو سترګو منت بار دے
دا اسمان دِ دَ هغو په مُدعا وی (۱۷۵)
چه په ما باندے ئے کړے ستا اخبار دے
که یار سل ځله جفا ورسره کاندی (۱۷۶)
دَ رحمان دا هسے کله اعتبار دے

۳۵۰۱ $\frac{۲۶}{۳۰۹}$ ۱۱

کمینی یو نادر کار دے — چه کمال ځنے اظهار دے
چه اختیار ئے کمینی کړه — په دانه کښے پټ خروار دے (۱۷۷)
چرګ په دوه پیسے حلال شی (۱۷۸) — باز په سل روپۍ مردار دے

فقیران دَځان ځواب کا | شاه دَخلقو تاوان دار دے[۱۷۹] ق
چه اسمان شه سرګردان شه | چه زمین شه برقرار دے[۱۸۰]
جهان وارہ زمکے وخوړ | کیښنی عجب لوئے کار دے[۱۸۱] ق
نښتر کورہ سرکشی کا | انګور کورہ نګونسار دے[۱۸۲]
ذرہ ضعف شوہ افتاب شوہ | ابر خورب دے غبار دے[۱۸۳]
کوہ بلند شه سیه سنګ شه | لعل ووړ شه بزرګوار دے[۱۸۴]
لوئے اسمان تورہ تبی شه[۱۸۵] | هلک نمرخړہ انوار دے
ووړ سړے کورہ رحمانه[۱۸۶] | چه لوئے فیل ئے باربردار دے

۹ $\frac{۲۷}{۳۱۰}$ ۳۵۱۰

ستا له غمه مے په سر کښے هسے شور دے
ګویا میشت مے په سر ښهر دَ لاهور دے[۱۸۷]
په افسون او په جادو دَ تورو سترګو
خراب زړہ مے له جمله عالمه تور دے
که مے زړہ له غمه څوی راته وائی
غم د هجر دغه مه ګڼه لا نور دے
دَ هجران په بیماری کښے را معلوم شه
چه اخستے مے ازار دَ پلار و مور دے
درد و غم دَ عاشقیه ډیر مشکل دے
خدائے ورکړے وَ داناؤ دا سُوراور دے[۱۸۸] ق
دا دنیا په مثال کور دے دَ غمونو[۱۸۹]
چه په هسے کور نازیږی هغه کور دے

دا جهان نه دَچا خپل دے نه به خپل شي
چا په خپله رضا پرېښوو چا په زور دے [۱۹۰]
چه دَ مرګ په پور وړيو کښې يو ومري
دے دَ واړو پور وړيو زوئے او وروړ دے [۱۹۱]
که رحمان په عاشقۍ بے عزت کيږم
ما په سترګو قبول کړے دا پيغور دے [۱۹۲]

۳۵۱۹ ۲۸/۳۱۱ ۹

چه دَ ښکلے دلبر په لاس ئے جام دے
نن اورنګ دَ زمانے زما غلام دے [۱۹۳]
مدام کله وی دنيا دَ دنيا دارو
بے له عشقه چه دولت ئے مستدام دے [۱۹۴]
دا هارون څرخ پائے نيلے د دے سپهر
څو به دَو کا چه ئے دو په سر دَ بام دے [۱۹۵]
دَ دنيا چارے په مثل دى دَ سيورى
دَ افتاب په مخ دَ سيورى څه مقام دے [۱۹۶]
که ئے صبح ښائسته ده خنده رويه
بيا ئے هسے په هر صبح پسے شام دے [۱۹۷]
نه په مهر کښے ارام شته نه په ماه کښے
په دُنيا راغلے هر يو بے ارام دے [۱۹۸]
ته چه خپل فراغت غواړے په جهان کښے
فراغت خاطر را وښيه کدام دے [۱۹۹]

صورت روغ دَ خاور و خامو دے رحمانه
چه په خامه چار ناز یږی هغه خام دے[۲۰۰] ق
بے غمی په دُنیا چرے ده رحمانه
یو بے غم خوشوک راو ښیه کدام دے[۲۰۱]

۳۵۲۶ $\frac{۲۹}{۳۱۲}$ ۷

ما دَ ستالمن ته اچولے دا خپل ځان دے
ستا دے زما نهٔ دے که دانا دے که نادان دے
خپله سرکشی لوئی ے واړه فراموش شوه
هسے ے زړهٔ ستا وَ لوئے قامت وته حیران دے[۲۰۲]
بے تاکهٔ گذر په گلستان کړم دَ گلو نو
نه پوهیږم هیڅ چه گلستان دے که زندان دے[۲۰۳]
چا پیژندم زه چه عاشق نه وم په جهان کښے
اوس ے ستاله رویه نوم رسوا په درست جهان دے[۲۰۴]
ډیر هځولی تیرشو دَ مجنون بے نام و نقشه
عشق دے چه عاشق لره هم نام دے هم نښان دے
لوئے ترکوم چینجی دے پروانه چه افسانه شه[۲۰۵]
واړه په سبب دَ عاشقیه نمایان دے
واړه دَ خپل ځان په نظر گوره که دانا یئے
اے عبدالرحمانه جهان درست عبدالرحمان دے

۳۵۴۷ $\frac{۳۰}{۳۱۳}$ ۲۱

زړه ے ستا په ذکر فکر گلستان دے
تن ے ستا له غمه پاڼه دَ خزان دے

ستا دَ غم له بحره هسے بهره مند يم
چه په سترګو کښے مے جوړ دَ دُروکان دے (۲۰۷)
ستا کتوے عجب زخم په زړه وکړ (۲۰۸)
چه هم وينے تر بهيږی هم خندان دے
هسے رنګ مے دَ خپل زړه له وينو واخست
چه ځان درست راته په شکل دَ جانان دے
که دَ ستا دَ زلفو مار کاندی خونونه
ما موندلے ځنے عمر جاودان دے
ځنکدن که هرڅو تريخ و تلخ وايه شی
ستا دَ لبو په مدد آبِ حيوان دے
اشنائی ترجدائی کمزورے نه ده
معطر په بوی دَ مصر درست کنعان دے
لکه نمر په څلورم اسمان ليده شی
محبت په سل حجابه کښے عيان دے (۲۰۹)
نور دَ شمع په فانوس کله پټيږی
عشق دَ عقل په پرده کښے نمايان دے (۲۱۰)
که دَ ستا په مخ کښے بوی دَ حجاب نشته
زه له ډيرے ځلے وايم چه نهان دے (۲۱۱)
طاؤس رنګے زلفے چا دی سهی کړے
چه هرموئے ئے په څو رنګه په خوشان دے (۲۱۲)
بے پردے به حُسن نه وی چا ليدلے (۲۱۳)
که څوک وائی چه ليده شی تش ګمان دے

بنادی غم غونډے اسانه مونډه نه شی
سُور په خپلو وینو لعل دَ بدخشان دے
که وصال په هر زمان وے هسے دریغه
لکه غم چه دَ هجران په هر زمان دے
(۲۱۴)
بے دَ ستا له ملاقاته چه مشکل شه
نور مشکل واړه په ما باندے اسان دے
(۲۱۵)
هم په دا راته اسان شو نور غمونه
چه ستا غم دَ حد په هورته راته گران دے
یو نفس به دِ له دره بیرته نه شم
(۲۱۶)
ځو ے یو نفس باقی په دا جهان دے
قافله دَ صبر هیڅ ویسا پرِ نهٔ کا
ستا له غمه ے منزل دَ زړه ویران دے
لکه سرو سامان ستا دَ زلفو نشته
هسے زړه زما بے سر و بے سامان دے
لکه تا چه تور گیسو په مخ پریشان کړ
(۲۱۷)
هم ے هسے خراب زړه پسے پریشان دے
خوار خاطر به دَ رحمان سلامت ځووی
(۲۱۸)
چه گذر ئے ستا په چاهِ زنخدان دے

۳۵ ۳۱/۳۱۴ ۳۵۸۲

په نامه دَ هغه خدائے ے دا بیان دے
چه یو نوم ئے په نومونو کښے سُبحان دے

(۲۱۹)
هم بادشاه دے دَ جمله وُ بادشاهانو
هم دَ هر یوه سلطان په سر سلطان دے
(۲۲۰)
هغه کار چه وَ هر چا وته مشکل وی
هغه کار واړه وَ دهٔ وته اسان دے
څوک افتاب شی په اسمان راخیژولے
دهٔ افتاب راخیژولے په اسمان دے
څوک دَ نمر په مخ حجاب شی غوړولے
(۲۲۱)
دهٔ پټ کړے نمر په ابر کښے پنهان دے
څوک په شپه کښے شی مهتاب پیدا کولے
دهٔ په شپه کښے پیدا کړے مه تابان دے
څوک یو څاڅکے پرے یستے شی له اسمانه
نزول کړے دهٔ په موږ باندے باران دے
څوک له اوره شی اوبه پیدا کولے
(۲۲۲)
دهٔ له اوره پیدا کړے زمستان دے
څوک شی روح ننه یستے په یوه ماشی
(۲۲۳)
ژوندی کړے دهٔ په روح تمام جهان دے
څوک وسنګ شی رنګ دَ ګلو ورکولے
دهٔ وسنګ ورکړے رنګ دَ ارغوان دے
څوک له خاورو شی یو ګل پیدا کولے
(۲۲۴)
دهٔ له خاورو زرغون کړے ګلستان دے
څوک له سنګه شی ګوهر پیدا کولے
(۲۲۵)
دهٔ له سنګه پیدا کړے دُر مرجان دے

ثوک شی رزق و هر مخلوق ته رسولے[۲۲۶]
دے دَ هر یوه مخلوق روزی رسان دے
ثوک بنده لره ایمان شی ورکولے
دهٔ ورکړے هر بنده لره ایمان دے
ثوک له زمکے واسمان وته ختے شی
دهٔ عیسیٰؑ لره ورکړے دا مکان دے
ثوک له خدائے سره خبرے شی کولے
دهٔ موسیٰؑ مشرف کړے په داشان دے
ثوک یېنودے په توسن دَ هوا زین شی
یښے دهٔ په هوا تخت دَ سلیمانؑ دے[۲۲۷]
ثوک په سپینه بږیره پائی تر قیامته[۲۲۸]
دهٔ په خضرؑ باندے کړے دااحسان دے
چه په دهٔ شی هغه کار په هیچا نه شی
هر توانا دَ دهٔ تر توان پورے ناتوان دے
په اوبو کښے ئے دَ کانی کوټ بنا کړ
دهٔ ورکړے پکښے اور لره امان دے
په سجده ئے زمکے سر دے لګولے
هم ئے زوړند په رکوع سره آسمان دے
هره ونه په قیام ولاړه ولاړه
هر ګیاه ئے په تسبیح سره زبان دے
همه واړه په تسبیح د دهٔ مشغول دی
که سړے دے که پیرے دے که حیوان دے[۲۲۹]

هر ماهي ئے په درياب کښے حمد[۲۳۰] وائی
هر مرغه ئے په چمن کښے ثنا خوان دے
حق په حق ثنا ئے هيڅا کړے نه دهٔ[۲۳۱]
نهٔ له هيڅا واقع شوے دا بيان دے
مخلوقاتو هسے نه دے پيژندلے
لکه دهٔ څخه چه قدر دخپل ځان دے
حد پايان ئے هيڅ سړی موندلے نه دے
معرفت ئے هسے بحر بے پايان دے[۲۳۲]
نهٔ هيڅوک دَ دهٔ په څير دَ دهٔ په شان دی[۲۳۳]
او نهٔ دے دَچا په څير دَچا په شان دے
نه ئے زيان نه ئے زوال نه ئے نقصان شته
دے بے زيانه بے زواله بے نقصان دے
نه ئے مثل، نه مثال، نه ئے مکان شته
دے بے مثله، بے مثاله، بے مکان دے
پاک ئے وګڼه بے شکه بے ګمانه
له هغو چه دچا شک دَچا ګمان دے[۲۳۴]
نه ئے څوک په سترګو وينی نه ليده شی
او بے چونه بے چګونه نمايان دے
که څوک وائی ليده نه شی ليده نه شی
او که وائی و هرچا و ته عيان دے[۲۳۵]
منزّه دے له جمله وُ جهتونو
او بيا هر جهت په دهٔ باندے ودان دے

له هزارو صفتونو باور وکړه
چه ئې کړے نیم صفت عبدالرحمان دے (۲۳۶)

۳۵۹۴ $\frac{۳۲}{۳۱۵}$ ۱۲

په دُنیا کښې که څه کار دے خو دَ دین دے
دَ دے کار په کنندهٔ افرین دے
چه تقوٰی او دینداری ئې شي په بخره (۲۳۷)
دَ هغو دَ سعادت ستورے قرین دے
قناعت ئې هسے خوند په خوله کښې کښیښوو (۲۳۸)
چه وچ ټوک ئې په دهن کښې انگبین دے
بے هاتیانو بے اوښانو بادشاهي کا
دَ زاړه پوزي ټوکرے ئې قالین دے (۲۳۹)
چه په خواست دَ حاجت پورته کا لاسونه
دَ اسمان دَ ملائکو پر امین دے
چه قبوله کهتري کا په دنیا کښې
دَ هغو په بهتري باندے یقین دے
تل دَ لوړے اوبه دروهي و ژور ته
حق تعالٰی کمال ورکړے وَکمین دے (۲۴۰)
خاکساري دَ خاکسارانو مرتبه ده
کهٔ زړوکي ئې خیرن وي زړهٔ ئې سپین دے
دَ سرکښو سر کهٔ ورشي تر اسمانه
په دوه ورځے پس ئې ځائې زیر زمین دے

چه بنیوه په سرکښی او په لوئی کا
(۲۴۱)
دَ رحمت لائقت نه لری لعین دے

که صورت ئے دَ سړی باله شی څه شو
(۲۴۲)
په معنیٰ کښے سړے نه دے شیاطین دے

دَ رحمان څخه متاع دَ دُنیا نشته
(۲۴۳)
شُکر دا چه نهٔ خود رائے و نهٔ خودبین دے

۳۶۰۷ ۳۳/۳۱۶ ۱۳

زهٔ بُلبل ستا دَ وصال یم بوستان څه دے
ستا دَ وصل په نسبت ګلستان څه دے

چه اشنا شی ستا له دره له دیواره
انتظار ئے په روضه دَ رضوان څه دے

چه روزی ئے شهادت شی ستا له تیغه
احتیاج ئے په چشمه دَ حیوان څه دے
(۲۴۴)
چه مسکن ئے دَ زړه ستا دَ زلفو خم شی
وَ هغو ته دَ عطارو دکان څه دے
(۲۴۵)
هر چه لاندے خپل صورت ترخپل قدم کا
عرش ئے لاندے تر قدم شی اسمان څه دے

بوالهوس که بوسه غواړی له تا څه شو
هر رنګ هر رنګ وئیل کاندی نادان څه دے

زه چه ستا له غمه ژاړم اه فریاد کړم
برق و رعد چکاره دے باران څه دے

ځان جهان مے هسے ستا په مینه هیر دے
نه پوهیږم چه ځان څه دے جهان څه دے
ته چه نه کورے وما ته لرے پوه کړه
په دا کار کښے دِ ضرر او نقصان څه دے
که ستا سترګے دی قاتلے زه مقتول یم
وایه نور دِ په خاطر کښے ارمان څه دے
زه بے صبره یم که مهر دَ ستا نشته
له دے دواړو دِ په زړه کښے ګمان څه دے
چه مے وینے ثروے څه پښتے له حاله
له عیانه احتیاج دَ بیان څه دے
هرچه وائے ستا رسی دَ رحمان غاړه
وَ توانا وته حجت دَ ناتوان څه دے

۳۶۱۷ $\frac{۳۴}{۳۱۷}$ ۱۰

دَ عاشق نظر په خوردو په خواب نه دے
مراد ئے بے دَ یار له بابه بل باب نه دے (۲۴۲۶)
ته نظر په خپل هنر په عقل مه کړه
دا اسباب دَ عاشقیه اسباب نه دے
چه دَ یار سره حساب دَ دنیا کاندی
دغه هیڅ په عاشقی کښے حساب نه دے
چه عاشق په عاشقی کښے ارباب نه وی
که دَ درست جهان ارباب شی ارباب نه دے

(۲۴۷)
هر چه یار منع کوی له خپله یاره
دا کتاب دَ عاشقانو کتاب نه دے
دا حجاب چه عام عالم ئے حجاب بولی
دا زما دَ یار ترمیانه حجاب نه دے
(۲۴۸)
که ثواب دے هم سیوا دَ یار له مخه
ما گڼلے دا ثواب په ثواب نه دے
(۲۴۹)
که لیدلے زلیخا یوسفؑ په خوب دے
ما په ویښه دے لیدلے په خواب نه دے
(۲۵۰)
صبر ونسه په مخ کښے که مراد غواړے
هیڅا کړے دغه کار په شتاب نه دے
رحمان سوال دَ بوسے کړے دے له یاره
لا ئے هیڅ ځنے موندلے ځواب نه دے

۷ ۳۵/۳۱۸ ۳۶۲۴

هغه یار چه بے وفا دے څه یار نه دے
هغه کار چه بے بقا دے څه کار نه دے
که دَ سر ښندل دشوار په ما او تا دی
(۲۵۱)
دا په عشق کښے سهل کار دے دشوار نه دے
اندیښنه سړے بیدار کاندی له خوبه
کم اندیشه که بیدار دے بیدار نه دے
که څه عمر دے عاشق لره وصال دے
(۲۵۲)
دَ هجران عمر په عمر څه شمار نه دے

دَ چشمانو په ځمبل کښې تیرو بیر شی
اعتبار دَ زمانے اعتبار نه دے
که دَ سلو زویو پلار شے به ئے څه کړے
بے وقوفه زویه زویه دَ پلار نه دے (۲۵۳)
معشوقے همیشه ناز په عاشق کاندی
رحمان هیڅ له خپله یاره ازار نه دے

۳۶۳۵ $\frac{۳۶}{۳۱۹}$ ۱۱

په تلخئ دَ میو هر څوک میخوار نه دے
هغه خار چه بوئے دَ گل لری خار نه دے (۲۵۴)
هر نگار چه بے وفا وی نگار نه دے
په گلزار کښې چه گل نه وی گلزار نه دے (۲۵۵)
دینداری دنیا داری دی و بله لرے (۲۵۶)
مالیدلے هیڅ دیندار دنیادار نه دے
که روزگار دے په جهان کښې عاشقی دہ (۲۵۷)
دَ دے نور عالم روزگار څه روزگار نه دے
چه بنائے دَ تصدیق محکمه نه وی
دا ظاهر په خوله اقرار څه اقرار نه دے (۲۵۸)
په هر زړه چه دَ خپل یار دغم غبار وی
دغه ابر دَ رحمت دے غبار نه دے (۲۵۹)
چا به کسب دَ عشق نه کړ بارے څه کا
چه دا گنج و هر یوه ته اظهار نه دے (۲۶۰)

معشوقے وفا لہ هيچا سرہ نہ کا
کنہ کوم یو دَ دے رخت خریدار نہ دے
دَخپل یار وصال دَخدائے پہ دادموندہ شي
دغہ کار دَ هیڅ بندہ پہ اختیار نہ دے (۲۶۱)
کہ یار سل ځلہ وعدہ دَ وصال وکړہ
دَ رحمان پہ ترکو هیڅ اعتبار نہ دے (۲۶۲) ق
پہ رحمان باندے منت دَخپل محبوب دے
دَبے حسنو معشوقو منت بار نہ دے (۲۶۳)

۳۶۴۵ ۳۷/۳۲۰ ۱۰

دَعشق زخم څہ دَ زخم پہ شان نہ دے (۲۶۴)
دَ بل زخم پہ څیر سهل واسان نہ دے
عاشقان او معشوقے سرہ پوهیږی
دغہ راز وَ نور عالم تہ عیان نہ دے (۲۶۵)
عاشقی نہ دہ کہ کورے حیرانی دہ
کوم سړے پہ دغہ کار کښے حیران نہ دے
یو عاشق دِ څوک راوښئی پہ عشق کښے
چہ ئے رود پہ مخ دَ اوښیو روان نہ دے (۲۶۶)
هومرہ اوښے دَعاشق پہ گریوان دروی
تہ بہ وائے چہ یو سیند دے گریوان نہ دے
داهجران دے چہ ئے مرگ پہ عاشق گران کړ
کہ هجران ورسرہ نہ وی هیڅ گران نہ دے

نورغمونه که په ځان دَ سړي بد وي (۲۶۷)
غم دَ ترکو بد دَ هیچا په ځان نه دے
دَ دوزخ اورکه ډیر تاؤ لري دے ګرم
برابر دَ بیلتانه له نیران نه دے (۲۶۸)
که باله شي څوک په عشق کښې کم عقل
دا کم عقل ډیر هوښیار دے نادان نه دے (۲۶۹)
چه بے یاره وجهان و ته نظر کړم
رحمانؔ وائیم چه ویران دے ودان نه دے (۲۷۰)

۳۶۶۷ ۳۸/۳۲۱

که دَ خلقو و نظر ته اُدے دے
خوار عاشق دَ معشوقے دکوڅے سپے دے (۲۷۱)
هر چه ځان دَ یار په سپیو کښې داخل کا
ترو هاله به ورته وائیم چه سړے دے (۲۷۲)
ما دِ خدائے دَ یار له غمه بے غم نه کا
دا په ملک دعاشقۍ کښې لوئے ورانے دے (۲۷۳)
زه دَ یار په غم کښې زیړه ځهره خوښ یم
دا زما خزان خزان نه دے پسرلے دے (۲۷۴)
زه ژوندون دَ یار وَ وصل و ته وائیم
ګنه هر یو دوزخي په ژوند ژوندے دے
ته چه ما منع کوے دَ یار له دره
کوم یو در له دغه دره بریالے دے

زه دَ یار مینے په یار بانده شیدا کړم
که څوک ماکښي زه نه یم واړه ده دے (۲۷۵)

چه وحشي مجنون ئے ښهر لره راوست
دَ لیلیٰ دَ زلفو هسے غړوند ے دے (۲۷۶)

زرداران که اوبۀ څښي په جام دَ زرو
خوښ زما دا خپل دَ خاورو کنډولے دے (۲۷۷)

اورنګ زیب که دَ ډیلي په تخت نازیږی
خپله خونه هرګدائے لره ډیلے دے

چه له خپله کوره ووځي مسافر شي
څوک ئے پیژني ساهو دے که مرئیے دے
چه ئے خاورے شي له خاورو سره کړے (۲۷۸)
تروچا څه زده چه دکوم نیکۀ نمسے دے

توره شپه په اشنایانو رڼا ورځ ده (۲۷۹)
رڼا ورځ په نااشناؤ توروږ ے دے

ستر ګے غوږ ستر ګے غوږ نه دی دَ کم شناختو (۲۸۰)
په معنیٰ کښے یو دیوال سورے سورے دے

عاشقان ئے د دنیا له غمه خلاص کړه
عشق په مثل دَ سلیمانؑ بادشاه غمے دے

هرچه حُب دَ عاشقي لري په زړه کښے
که په قطع صد ساله وی هم زلمے دے

دا هلال دے چه لیدے شي په شفق کښے
که په لاس دَ ګل اندامے سپین وښے دے

نا اشنا به بهره څشکل ځنے مومی
چه مدام ئے په اشنا باندے غورزے دے (۲۸۱)
څربوی ے قربانئ لره پو هیږم
دا چه کړے ئے په ما باندے زړه سوے دے
چه په نوم باندے باله شی لیده نه شی
معلومیږی چه نه حُورنه بناپیرے دے (۲۸۲)
چه دَخط په دورئے خلق پکښے پریوځی (۲۸۳)
زنخدان ئے تر سبزے لاندے کوهے دے
زه رحمان له یاره خوښ یم که جفا کا
که جفا نه کا وفا کا څو تیرے دے (۲۸۴)

۳۶۷۴ ۳۹/۳۲۲

په ظاهر صورت چه ستا دَ درګدائے دے
په معنیٰ کښے دَجمله جهان کدخدائے دے (۲۸۵)
مجنون بید غوندے رونق دګلستان شی (۲۸۶)
چه ئے ستا له غمه سر په پشت پائے دے
چه له غمه دِ جرس غوندے ناﻻن شه (۲۸۷)
دَ جمله وُګمراهانو راهنمائے دے
چه څوک زړه وستا وَ تورو سترګو ورکا (۲۸۸)
ستا دَ وروځیو تر محراب لاندے ئے ځائے دے
چه مسکن ئے دَ زړه ستا دَ زلفو خم شی (۲۸۹)
دَ هغو ناستے په سیوری دَ همائے دے

چه تا ووینی و ما ته نصیحت کا
شک پر مه کوه بے شکه چه خودرائے دے
که زردار وی اشنایان دَ زردارانو
دَ رحمان دَ اشنایانو تکیه خدائے دے

۱۰ $\frac{۱۴۰}{۳۲۳}$ ۳۶۸۳

که مطلب و مدعا دَ سړي خدائے دے
(۲۹۰)
هر هر مړے دَ ژوندیو رهنمائے دے
مسافر چه په رحلت کښے وبله غبر کا
(۲۹۱)
هر آوازے خواب آلود لره درائے دے
که سړے وَحقیقت و ته نظر کا
ژوندے خلق واړه ناست دَمړوپه ځائے دے
(۲۹۲)
داخوبخت دے څوک ئے تورکړڅوک ئے سپین کړ
کنه عین لکه زاغ هسے همائے دے
(۲۹۳)
لکه فرق چه دَ همائے و دَ زاغ نشته
هم دغه دلیل دَ شاه او دَ ګدائے دے
ته نظر د کاریګرو په کار مه کړه
کار همه واړه موقوف په کارفرمائے دے
سالکان چه دَ جهان تماشا کاندی
له جهانه ئے مطلب جهان آرائے دے
که څوک خپل دست وپائے وباسی له میانه
خدائے په خپله دَ بے دستو دست وپائے دے

(۲۹۴)
په هغه جهان نيکي و بدي نشته
هر مطلب دَ طالبانو په دا سرائے دے
رهٔ رحمان يواځے نه يم په دا کار کښے
هميشه دَ يار په يار پسے وائے وائے دے (۲۹۵)

۹ $\frac{۱۴۱}{۳۲۴}$ ۳۶۹۳

(۲۹۶)
تهٔ په هره کړی غم دَ سيم و زر خورے
زهٔ دِ هره کړی وينم چه خپل سر خورے
عاقبت به دِ يو خندا تر سينے (۲۹۷) ووځي
ته چه تل په هر هر ښاخ باندے ثمر خورے
معلوميږی چه خپل غم درسره نشته
ځکه غم دَ برادر و دَ پسر خورے
په عوض ئے کوم طاعت کړے راته وايه
دا نعمت چه په هر شام په هر سحر خورے
روژتي هم څلور پهره پس افطار (۲۹۸) کا
ته څلور ځله طعام په هر پهر خورے
که يو ځله تر کماله ورسيږے
نور به غوښے دَ خپل ځان لکه قمر خورے
که ښيښه دَ نام وننګ دِ شي تر ځنګه
دَ هر چا په کږ روی به خپل ځيګر خورے (۲۹۹)
بے هنرو سره قند زهرِ قاتل دے
قند ئے وګڼه که زهر په هنر خورے

(۳۰۰)
نهال په زړه دَ صبر نخل کړه رحمانه
چه مدام دَ برخوردارو په ښیر برخور ے

۳۷۰۳ ۴۲/۳۲۵ ۱۰

تر ابد ے ورځے پور ے به جفا کړ ے
(۳۰۱)
که به مهر وفا هم چر ے پیدا کړ ے
(۳۰۲)
معشوقے کله جفا کله وفا کا
می باید چه کله هغه کله دا کړ ے
ما ستا خوئے د ے وهرچا وته ستائیلے
(۳۰۳)
چر ے نه چه دروغژن مے تر هرچا کړ ے
(۳۰۴)
چه دغه او ښے زما دغه ستا خوئے وی
دا پټ راز به مے په درست جهان رسوا کړ ے
ستا څه لاس راباند ے نه رسی دلبره
چه په لاس دَ رقیبانو مے سزا کړ ے
(۳۰۵)
مرم په دا چه دَ رقیب په رضا درومے
نه په دا چه ته په ځان خپله رضا کړ ے
په درست عمر به هیچا لیدلے نه وی
هغه چار ے چه ته هرساعت په ما کړ ے
(۳۰۶)
ما رنځور په کټ کښے پریږد ے چه کریږم
ته لا ګرځے دَ رقیب سره خندا کړ ے
لاس ترغاړه دَ رقیب سره خندا کړ ے
(۳۰۷)
چه ما ووینے له قصده راته شا کړ ے

(۳۰۸)
هر بېګاه وائے چه خوله به سبا درکړم
دا بېګاه به په رحمان کله سبا کړے

۹ $\frac{۴۳}{۳۲۶}$ ۳۷۱۲

په پیرۍ کښے چه هوس دَ مېُوناب کړے
بیهوده ګمان په صبح دَ ماهتاب کړے
بے طاعته عنایت له خدایه غواړے
(۳۰۹)
دَ عتاب په ځائے امید دَ آب وتاب کړے
دانسته ګناه کوے توبے وکاږے
(۳۱۰)
لکه بُت هسے په غټو سترګو خواب کړے
په هغو غوږو چه ذکر دَ خدائے اورے
بیا سماع په هغو غوږو دَ رباب کړے
په هغو شونډو چه حمد و ثنا وائے
هم هغه شونډے بیا ډوبے په شراب کړے
علم وکړے هیڅ عمل وربانده نه کړے
لکه طفل هسے لوبے په کتاب کړے
په شپه پروت ئے دَ مغان په میخانه کښے
(۳۱۱)
او په ورځے مخ په لورې د محراب کړے
تمام عمر دَ دنیا په طلب کړے
بیا دَ خدائے په طالبانو ځان حساب کړے
(۳۱۲)
له خالقه دِ نه شرم نه حجاب شی
له رحمانه ګوښه و نسے حجاب کړے

۲۱ ۴۴/۳۲۷ ۳۷۳۳

چه مدام دَ بل وعیب وته نظرکړے
خدائے له خپله عیبه ولے ناخبرکړے (۳۱۳)
که یوه جو دانه عیب وی په بل کښے
دا یوه جو دانه عیب ئے تورغرکړے (۳۱۴)
که دِ خپله ګناه لویه لکه غر وی
په حیله حیله دا غر دَ ځے وزر کړے
که څوک تله دَ انصاف درته په لاس کا
خپل تټو دَ بل له اسه برابر کړے (۳۱۵)
تو لعنت دِ په دا هسے منصفی شه
چه له حقه و باطل وته ګذر کړے
خدائے وتا دَ ملائکو مقام درکړ
ته دا خپل صورت په خپله کاؤخر کړے
چه خدائے ستا په رضا کار کا ستا هم بویه
چه دا خپله رضا واړه وخدائے ورکړے (۳۱۶)
نه هغه دَ چا، دَ ستا په رضا کار کا
ته خپل ځان دَ دهٔ په کار کښے موقر کړے (۳۱۷)
په نعمت ئے شکرانه کولے نه شے
چه زحمت دربانده درشی شوروشر کړے
که دِ یو ویښته دَ ځان دَ پاسه کوږ شی (۳۱۸)
ځان هغه ساعت له خدایه مرور کړے

که ښندلے دِ په خدائے وی یو کیکوړے [۳۱۹]
نمایان ئے په جهان کښے لکه نمر کړے
لکه څوک تر مکے ورشی بیا تر راشی
دَ دنیا دپاره هسے لوئے سفر کړے
که په (بیعه به) څوک ج درځنے پیری
و مکے و ته روان به تول تبر کړے [۳۲۰]

ق

که یوه رتیه زر دِ په لاس کښیوځی
خرڅ خروار دَ عبادت په رتی زر کړے
په دنیا پسے دِ نسری دی رنګ کړی
ځان و خلقو ته درویش وقلندر کړے
دَ ځوانئ عمر دِ تیر کړ په غفلت کښے
دَ پیریه په وقت زیرمه د محشر کړے [۳۲۱]
لکه وارچه دَ زړے لولیه تیر شی
اوس توبه له ضرورته په سپین سر کړے
په پیری کښے دَ ځوانیه چارے نه شی
دَ عاشور په ورځ به څشکله اختر کړے
لکه بیخ دَ زړے ونے چینجی وخوری
په دا تیر عمر به څه ښاخ وثمر کړے
دغه باغ به دِ خلاص نه شی له خزانه
که چاپیر ورځنے سد دَسکندر کړے
و بدخواه و ته څوک نیک نصیحت نه کا
رحمان ستا په غم شریک دے که باور کړے

۳۷۳۹ $\frac{۴۵}{۳۲۸}$ ۶

که نظر په ماتو ګوړو دَ روزګار کړے
هو مره نه دی چه حساب یا به ئے شمار کړے
په هر غم کښې خاموش اوسه اوکه نه وی (۳۲۲)
دَ بد خواه خاطر به ښه دوست به ازار کړے
صبر ونسه په مخ کښې که مراد غواړے
په تلوار به هیڅ ونه کړے که تلوار کړے
رضا پاسله و قضا ته فراغت شه (۳۲۳)
اوکه نورڅه نورڅه وائے ځان به خوار کړے
ازادی او کاروبار دی وبله لرے
لاس له کاروباره وباسه که کار کړے (۳۲۴)
چه په خپله ئے فانی بولے رحمانه
ترو بیا څه په هغو چارو اعتبار کړے

۳۷۴۸ $\frac{۴۶}{۳۲۹}$ ۹

ما په تا پسے دا سپینے جامے رنګ کړے
ته لا بیا په ما ګمان دَ نام وننګ کړے (۳۲۵)
هیڅ اثر دِ په سنګین خاطر ونه شه
که هر څو مے مُصلّے درپسے لنګ کړے
دلسوزی به دِ په نور وکړی څه شی (۳۲۶)
چه له ما غوندے مخلصه سره جنګ کړے

ته په عشق کښې ما هاله دروغژن (۳۲۷) بوله
که یو بل هم هسې ماغوندې ملنګ کړې
دا نارې سورې غمازې دي په عشق کښې
ګنې ما به د بلبل په شیراهنګ کړې (۳۲۸)
عاشقي و معشوقې ته سپینه لار (۳۲۹) ده
نه و ما و ته دا سپینه لار ګړنګ کړې
چه یو دم مې له نظره پناه کیږې (۳۳۰)
دا جهان لکه لحد رابانډې تنګ کړې
په ښه خوئ سره د خلقو افسانه (۳۳۱) ئې
خدائې زما له کم بختیه په زړه سنګ کړې
دا دِ ځوک د ځنګه ناست (۳۳۲) دې نه پوهیږم
چه خبرې له رحمان سره په جنګ کړې

۳۷۶۶ $\frac{۴۷}{۳۳۰}$

خدایه زړه د مهرویانو مهربان کړې
ما له یاره یار له ماسره یکسان کړې
هغه درد چه د اشنا د بیلتانه دې
رفع دفع ئې د وصل په درمان (۳۳۳) کړې
ته چه ما منع کوې د یار له لوری
کشکې باد د سحر منع په بوستان (۳۳۴) کړې
نه به منع کړې ته ماله خپله یاره
نه به کوز په زمکه ستوری د اسمان (۳۳۵) کړې

(۳۳٦)
غم دَ هجرچه بتر تر همه درد دے
له دے غمه مے په امن په امان کړے
کاروبار دَ عاشقيه ډير مشکل دے
دا مشکل زما په ما باندے اسان کړے
حجاب لرے کړے زما دَ يار تر ميانه
بے حجابه مخ دَ يار راته عيان کړے
که مطلب دَ نور چا نورے مرتبے وی
ما ګدا ئے په استانه دَ خپل جانان کړے
که دا نورعالم و بله خوا ته ګوری
ما په لوری دَ دلبرو نګران کړے
زه چه يار لره ورځم په هغے لارے
مهترخضرؑ مهترالياسؑ مے رهبران کړے
تاريکی دَ معصيّت را څخه واخلے
دَ طاعت په روښنائۍ مے زړه روښان کړے
چه زما په پريشانۍ ئے زړه ښهٔ کيږی
زړه ئے ما غوندے په يار پسے پريشان کړے
چه زما په چمن راشی ګستاخی کا
دَ شبنم پد څيرئے عمر يو زمان کړے
چه ازاده دَ منکر تر سره پريوځی
(۳۳۷)
دَ فلک په څرخ مے توره دَ زبان کړے
(۳۳۸)
هغه غشے چه د ترکو دَ غمزے دے
هر کلام مے دَ هغه غشی پيکان کړے

چه کشور دَ افغانانو معطر کا (۳۳۹)
دَ هر بیت مصراع ئے زلفے دَخوبان کړے
چه هرحرف ئے دَ نافے په شیرخوشبوئے شی (۳۴۰)
برکت ئے په جزودان په قلمدان کړے
الٰهی دَ خپل حبیبؐ له برکته (۳۴۱)
دا ساده انشا رنګینه دَ رحمان کړے

ق ۳۷۷۴ ۸ ۱۴۸/۳۳۱

څو به هسے ازادی په دا جهان کړے
چه خبرے به دَ سراو دَ سامان کړے (۳۴۲)
همیشه به دا بهار دربانده نه وی
چه به سیل په بوستان په ګلستان کړے
واړه دُر دی بدلوے ئے په مشکنو
هر تلاش چه دَ دنیا په سود وزیان کړے
غمخواری دَ اٰل عیال دِ احمقی ده
چه دَ بل په زیرمه کړے خپل نقصان کړے
په نفاق کښے به ضائع شے مرد هغه دے (۳۴۳)
چه پخوا تر دښمن جمع خپل کاروان کړے
چه په دوه بیړیو پښے بردی هغه ډوب شی
بیهوده ئے دلبستګی په این واٰن کړے
دَ تیر عمر ارمان مه کوه رحمانه
چرے نه وی چه په یاد ساعت ارمان کړے

دا ویئیل وارۀ دَ سود او دَ بهبود دی
که باور په دا ویئیلو د رحمان کړے

۳۷۸۴ $\frac{۱۴۹}{۳۳۲}$ ۱۰

تا چه مخ دَ پری سترګے دَ اهو کړے
ترو پری ئے که اهوئے که جادو کړے (۳۴۴)
دعا ګو چه دَ چا ومری څه بنا دی دہ
ته په څه زما ومرګ و ته ارزو کړے
په محراب دَ عاشقانو کاݩی ووری
ته چه چین دَ جبین غوټه په ابرو کړے
تا چه رنګ د ګلو واخست زۀ پوهیږم
زرغونه به په څهرۀ زما کونګو کړے
ستا له ډیرۀ ډیرۀ جورۀ معلومیږی
چه به ما په خپلو اوښیو کښے لاهو کړے (۳۴۶)
که یو ځله تورے زلفے په شانه کړے
خاکستر به په چمن کښے کشمالو کړے (۳۴۷)
درست جهان به قاف تر قافه معطر شی
که یو ځله شانه ګړه په ګیسو کړے (۳۴۸)
ستا دَ زلفو مار خوړلے به روغ نه شی
که افسون دَ مسیحا وربانده پُو کړے (۳۴۹)
لاس و پښے دِ بے زیورۀ ښائسته دی
څه منت به دَ پائیلو دَ باهو کړے

که سوزن دَ ښو راوړے تار دَ زلفو
دَ رحمان دَ زړګی زخم به رفو کړے (۳۵۰)

۳۷۹۶ ۵۰/۳۳۳ ۱۲

که دَ عشق شکرے تیرے ترکلو کړے
نور لذت به لکه زهر هسے تُو کړے
که دِ وشی ملاقات له سروِ قدو
دَ فاختے په خیر به کوکے په کُوکُو کړے
عاشقی به دَ عشق توره در په لاس کا
ترو دَ صبر دَ سکون په ملک به هو کړے (۳۵۱)
په انصاف په عدالت به نوشیروان شے
هر عمل به دَ خپل ځان په ترازو کړے (۳۵۲)
دَ شکندر په خیر جهان په درځګند شی (۳۵۳)
که سرکوز په ائینه دَ خپل زانو کړے (۳۵۴)
تریخ لوګے به دِ دَ قندو په خیر نغړ شی
که صورت دَ عشق په اور کښے تماکو کړے
و به نهٔ وینے دَ ترکو مستے سترګے
مګر ځان په خپلو وینو کښے سالو کړے (۳۵۵)
روغ به نه شے بے دَ یار له ښه دیدنه
که سل پنډه سپیلنی وځان ته لو کړے (۳۵۶)
دَ غفلت لیچن لیمه به دِ روښان شی
که دَ یار دَ کوځے خاورے دِ ښکو کړے (۳۵۷)

دا دوا که بد دوا کوے طبیبه
چه دَ یار په دردو غم کښے دارو کړے (۳۵۸)
نصیحت په عاشقانو اثر نهٔ کا
دا محنت وارهٔ بے ځایه بے قابو کړے
په رحمان باندے بے یاره خوب حرام دے
که ئے سل بیچاوڼے لاندے تر پهلو کړے (۳۵۹)

۳۸۰۸ ۱۲ $\frac{۵۱}{۳۳۴}$

ولے ولے و عاشق ته نظر نه کړے
خوار ګدائے په دیدن ولے توانګر نه کړے (۳۶۰)
ستا دے ډیرے حیا ډیر کورونه وران کړه
چه وَ هیچا ته کاتهٔ برابر نه کړے (۳۶۱)
ستا په ډیر حُسن ے دا عقیده نه شی
چه دا روغ وَکړے وارهٔ اوتر نه کړے (۳۶۲)
ته پلو له مخه واخله زهٔ ضامن یم
که اورنګ دَ زمانے قلندر نه کړے
ښبستن لاس دَ سپی په سر باندے را کاږی
ته تش سیورے دَ مخلصو په سر نه کړے (۳۶۳) ق
زما هر زمان هر دم په تا ګذر وی
ته یو دم زما په لوری ګذر نه کړے
لکه ته چه دلاور زما په مرګ یئے
چرے دارنګے رقیب دلاور نه کړے (۳۶۴)

زه دَ ستا په جفا خوښ یم تل تر تله
که غماز ے له دے رازه خبر نه کړے
گذشته جور و جفا دِ آواره وی
که دا جور و جفا بارِ ذکر نه کړے
هغه څوک دے چه به ستا له دره درومی
که ئے ته له خپله دره بدر نه کړے
سنگدلی ده هغو خلقو لره ختمه
چه ئے ته په مجلس ور شے اثر نه کړے
رحمانَ ستا مینے رسوا کړ بارے حیف دے
چه ته هیڅ په دا خبره باور نه کړے

۳۸۱۵ ۵۲/۳۳۵ ۷

وَ خوبانو و ته و لے نظر نه کړے
دَ چمن په گلو و لے گذر نه کړے
دا بهار چه درست جهان ئے معطر کړ
دماغ و لے په دا بوئی معطر نه کړے
(۳۶۵)
رضا و لے په قضا سپار لے نه شے
دغه زهر په ځان و لے شکر نه کړے
(۳۶۶)
جک زده چه په ناره دَ مرگ خبریږے
ځان پخوا تر مرگه و لے خبر نه کړے
چه دِ خاورے په سرا چوی نور خلق
ته پخپله خاورے و لے په سر نه کړے

پس له مرګه چه بیا مرے له لوړے تند ے
ولے نن ساعت توبه دَ محشر نه کړے
داویَل چه دِ اثر کاندی په نورو
اے رحمانه په ځان ولے اثر نه کړے

۳۸۲۱ ۳۳۶/۵۳ ۶

له دے کته له پوزیه خو به ولاړ شے
ترو بیا خدائے خبر چه کوم خواته به لاړ شے (۳۶۷)
په ظاهر صورت خو هسے معلومیږی
چه به خس غوندے تر پښو لاندے لتاړ شے
دا اسمان زمکه به وی او ته به نه یَے
په ودانه ودانۍ کښے به ویجاړ شے (۳۶۸)
دَ بهار دَ ګلو عمر مدام نه وی
عندلیب غوندے به پاتو په اهاړ شے
په ولاړ ولاړ به ځان ورپسے وچ کړے (۳۶۹)
چرے نه چه دَ ګل رُخونه ووئے لاړ شے
که لیلےٰ غواړے رحمانه بایَده دا دی
چه مجنون غوندے ساکن دَ کوه وکاړ شے

۳۸۲۸ ۳۳۷/۵۴ ۷

اشنائی توره بلا ده اشنا مه شے (۳۷۰)
جدائی به دِ فنا کا.. فنا مه شے

دغه غم به دِ دَ زړه ولے کا غوځے
گرفتار په دردو غم دَ جانا مه شے
په زیر رنګ به دِ تل سرے اوښے بهیږی
دَ دو رنګو په څیر ګل دَ رعنامه شے
هم په داچه دروغژن دَ خدائے دښمن دے
و هیچا ته دروغژن په وینا مه شے
خپل څربښت دَ هر څاروی په ځان قصاب دے
توانائی دَ تن تاوان دے توانا مه شے[۳۷۱]
که اعلیٰ مرتبه غواړے عاشقی[۳۷۲] ده
نور همه واړه ادنیٰ دی ادنیٰ مه شے
همیشه به سر ټکون په فکرناست یئے
دَ رحمان په څیر مشغول په ثنا مه شے

ق

۸ ۵۵/۳۳۸ ۳۸۴۳۶

ستا دَ مینے گوهر نشته په هراب کښے
مگر بیاموند شي دَ اوښیو په دریاب کښے
که ته وینے زما پټے څښے دلبره
رنګ دَ لبو دِ گواهي لی په دا باب کښے
په هر ځائے چه ستا دَ لبو نوم آغاز شي
دَ لاله وُ باران ووری په حباب[۳۷۳] کښے
له خسته زړونو به څه دلستانی کا
دَ خراج گنجائش نشته په خراب کښے

زه حیران دَ ستا دَ وروځو په تورخال یم
کافر څشکله سجده کا په محراب (۳۷۴) کښې
ګل له ډیرے باریکۍ په شبنم خورشي
نازکان زړه بد وی په صاف ځواب کښې
دَ بهار په ګلو ووری بارانونه
دَ څڅیکی طاقت نشته په حباب کښې
دَ رحمان غلطی وبخښه اے خدایه
دَ اوترو چارے نه وی په حساب کښې

۸ ۵۶/۳۳۹ ۳۸۴۴

ق

یا دا ستا چشم (و) ابرو وینم په خواب کښې
یا مستان دی وودہ شوی په محراب (۳۷۵) کښې
یا په جام کښې ستا دَ مخ عکس لیدہ شي
یا خورشید دے تجلی کا په حباب کښې
یا ترخط لاندے غوټۍ ستا دَ خولو دی
یا کوکب دے غریق شوے په سحاب (۳۷۶) کښې
یا دِ زلفے په مخ دواړه راخورے کړے
یا سنبل دی ګنجلک دَ اور په تاب کښې
یا دِ زلفو په مخ توره تاریکی (۳۷۷) کړه
یا خو تندرځان څرګند کړ په آفتاب کښې
یا دا ستا مژګان زما په خاطر ښخ دی
یا سیخونه دی پټ شوی په کباب کښې

یا خو ستا له غمه غرق زما صورت دے
یا خسنے دے جار ووځی په گرداب کښے
چه دَ یار دَ مخ کاته له میانه ووځی
دَ رحمان به څه عزت وی په حساب کښے (۳۷۸)

۳۸۵۵ ۵۷/۳۴۰ ۱۱

زړه مے بائیلو ستا په مهر محبت کښے
عاشقیه زهر را کړه په شربت کښے (۳۷۹)
لار زما و یار ته مه تړه ناصحه
ما موندلے دے دا یار په ډیر محنت کښے (۳۸۰)
که صورت دَ هغې مستے دربنکاره شی
عقل هوش به دِ هیڅ نه وی په صورت کښے (۳۸۱)
که دَ عشق ترکمر پریوځے غابښ به بائلے
ته چه ما ته غابښ چیچے په نصیحت کښے (۳۸۲)
زهٔ توبه په هغه تیر عمر وکاڼ م
چه صرف شوے دے بے یاره په غفلت کښے
دَ اشنا دَ مینے پت به رامات نه شی
که مے سر له تنه درومی په دا پت کښے (۳۸۳)
له ادبه ئے و مخ ته کتے نه شم (۳۸۴)
خدائے راپیښه جدائی کړه په وصلت کښے
په قیامت که څوک له نیته پښتیده شی (۳۸۵)
زهٔ دَ یار دَ کوځے خاورے یم په نیت کښے

لکه زه چې ئې دَ در په خاورو خوښ (۳۸۶) یم
خوښ به نه وی سلطانان په سلطنت کښې
دَ درګاه په خاک نشینو ئې تل سخ وی
دَ غمونو دخل نشته په جنت کښې
دَ دنیا له دولتونو بې پروا (۳۸۷) یُم
زهٔ رحمان دَ عاشقیه په دولت کښې

۳۸۷ ! $\frac{۵۸}{۳۴۱}$ ۱۶

مغرور مه اوسه دَ عشق په کاروبار کښې
هر خسنې تیره تیغ دے پهٔ (۳۸۸) دا لار کښې
دا سُور ګل به دِ دستار په وینو سُور کا
چه دِ ښېنې زمانے دے په دستار کښې
مخ دَ ترکو چه ترابِ حیات صاف دے
زه دے ابِ حیات سوے یم په نار کښې
چه دَ اوسپنې (۳۹۰) ائینه پر اوبه کیږی
ترو زما هستی به څه وی په دیدار کښې
په هروارئے چه وسترګو ته نظر کړم
لاس ے وللی وی له ځانه په هروار کښې
یاره ته چه له ما صبرو قرار غواړے
عاشق کله وی په صبرو په قرار کښې
هیڅ صرفه مه کړه دَ زړونو ازار اخله
که چا سود وی دربښووے په ازار (۳۹۱) کښې

که مے سر و مال دَ ستا په مینه دروی
زړه له سر و ماله تیر یم په دا کار کښې
ستا له دره له درباره به وا نه ورم
څو و نهٔ مرم ستا په دراوپه دربار[۳۹۲] کښې
عشق دَ عقل په کوښه استوګه نه کا
چا موندلے نه دے یار په دا دیار[۳۹۳] کښې ق
کم بختان دَ یار په وصل کښې مهجور[۳۹۴] دی
دَ وچ ډکی بهره نه وی په بهار کښې
مفلسانو لره عین کوهستان دے
که همه عمر ئے کور وی په بازار[۳۹۵] کښې
وَ هغو چه خدائے حق بینے سترګے ورکړے
دَ یوسفؑ تجلے وینی په دیوار[۳۹۶] کښې ق
عیَب ژن ته واړه عیَب څرګندیږی[۳۹۷]
بنائسته که ځان یوسفؑ کا په سنګار کښې
چه هنر دَ عاشقۍ ئے خدائے نصیب[۳۹۸] کړ
بے هنره نورڅه نه وینی په یار کښې
خپل داغونه دَ خپل زړه ورلره بس کا
څه حاجت دے دَ رحمان په لاله زار کښې

۳۸۸۳ $\frac{۵۹}{۳۴۲}$ ۱۲

مدام ناست یم وچ کوګل سترګے په نم کښې
عشق راوښو بحر و بر په خپل حرم[۳۹۹] کښې

(۱۴۰۰)
ما چه ستا تُوره دَ زخم په خوله ښکل کړه
نورے دالذت بیا نه موند په مرهم کښے
خوار مجنون چه سر په پښو دَلیلیٰ کښیښو
سرفراز شه په عرب او په عجم (۱۴۰۱) کښے
زوراور ملام غالب وی په کمزوری
زه له نوره غمه خلاص یم ستا په غم کښے
لکه زه چه ستا په غم کښے مستغرق یم
بل به نه وی په جمله بنی اٰدم کښے
لکه مرے دَ ژوندیو ترمیان پروت وی (۱۴۰۲)
هسے بیل یم له عالمه په عالم کښے
هیڅ دمه مے دَ دم کړیو په دم (۱۴۰۳) نه شی
هم په دا چه زما دم دے ستا په دم کښے
ندے بے تا تگ و پوئے نه جستجوئے شته
مراد مے ته یئے په هردم په هرقدم کښے
که نصیب مے شی کوغالے ستا دَ سپیو
وبه نه کړم نور نظر په جام دَجم کښے
زړه مے هسے ستا په زلفو پسے ورک شه
لکه غوټه له چا پریوځی په تور تم (۱۴۰۴) کښے
سرۀ په وینو دَ سرو کلو په څیر (۱۴۰۵) زانگی
هزار زړونه ستا دَ زلفو په هرخم کښے
زه رحمان کناره خوښ وم له (۱۴۰۶) عالمه
بارے ستا ستر کو رسوا کړم په عالم کښے

۳۸۹۱ $\frac{۶۰}{۳۴۳}$ ۸

دَ بلبلو له حال زده کړه په خزان کښې
بیا دَ گلو ننداره کړه په بوستان کښې [۴۰۷]
څو دِ تیره تلخائی ترستونی نه شی
شیرینی به خوند درنه کا په دهان کښې [۴۰۸]
ما په هجر کښې لذت دَ وصال بیاموند
له یوسفؑ ملاقی شوم په زندان کښې
لکه متن له معنو معنیٰ له متنه [۴۰۹]
یار هم هسې دے زما په دل و جان کښې
عاشقی اسانه مه گڼه خبر شه
سر بازی ده هر نفس په دا میدان کښې
دَ ناتوان له ناتوانیه وویریږه
که هزار ځله توانائے په خپل ځان کښې [۴۱۰]
هم هغه به پس له مرګه ازاریږی
هر چه بل ازاروی په دا جهان کښې
په رحمان بانده بے یاره هسے حال وی
لکه حال دَ زندانیانو په زندان کښې

۳۹۰۲ $\frac{۶۱}{۳۴۴}$ ۱۱

هسے بے یاره خفه یم په جهان کښې
چه مے نه شی ځائے په زمکه په اسمان کښې [۴۱۱]

سره ګلونه دَ چمن راته سور اور شي
چه قدم بے یاره کیږدم په بوستان[۴۱۲] کښے

چه ئے مړ نه یم له ډیرے بے نیازیه[۴۱۳]
حیرانیږم دَ ناتوان صورت په توان کښے

که هرڅو فکر دَ ځانه سره وکړم
هیڅ دَ صبر طاقت نه وینم په ځان کښے

هیڅ ساتنه دَ سرکښ خاطر را نه شي
څوک ساتلے شي بخري په ګریوان کښے

ترهغه به نادان بل په جهان نه وي
چه څوک مهر وفا غواړي په نادان کښے

که ئے سل ځله په ځار په قربان بولم
غوږ را نه باسي په ځار او په قربان کښے

هسے رنګ زما په ډیره ژړا خاندی
لکه ګل دَ پسرلي خاندی په باران کښے

جوهري شي دُر و لعل کاندی برخیره
چه مے کښیني دَ دوو سترګو په دکان کښے

چه مے هیچرے په خوا په خاطر نه وي[۴۱۴]
زمانه ئے راڅرګند کا په زمان کښے

چه په وصل کښے ئے اوښے نه وچیږي
ترو به حال دَ رحمان څه وي په[۴۱۵] هجران کښے

۳۹۰۹ ۶۲/۳۴۵ ۷

زړه مې ډوب ډوب کيږي ستا دَ غم په غلغلو کښې
هسې لکه څوک چه مستغرق شي په اوبو کښې [۴۱۶]

ستا دَ عشق له موجه په هيڅ لوري وتې نه شم
دواړه لاس مې پريوا ته دَ عقل په لامبو کښې

سل توبې مې ماتې کړې وانه وښتم له عشقه
ساويسا مې نوره پاتو نه شوه په توبو کښې

ته چه له ماځې زما دَ اوښيو باران ګوره
رخ دَ سفر هيڅ نشته په داګنو شيبو کښې

نه يوه سپوږمۍ نه هزار ستوري له اسمانه
بې تا به څوک څه وکا دَ خلقو په جنبو کښې [۴۱۷]

عشق او عقل دواړه سره ضد دي که پوهيږې
کله ودري دَ اور بخرې په پُنبو کښې [۴۱۸]

هر څوک چه دَ عشق په اٰتش سوی دی رحمانه
خدائې ئې ابراهيمؑ غوندې نڅاه کا په لمبو کښې [۴۱۹]

۳۹۱۷ ۶۳/۳۴۶ ۸

هسې خوښ يم ستا دَ در په خاکسارۍ کښې
لکه خوښ وي سرداران په سردارۍ کښې

عاشقي که نورو خلقو ته خوارۍ ده [۴۲۰]
ما موندلې دې دولت په داخوارۍ کښې

وَ بيمار ته که ناخوښ وائې وګړې [۴۲۱]
خوښ يم زه دَ ستا دَ عشق په بيمارۍ کښې

دَ خپل بام و روزنونو ته نظر کړه
هسې سترګې وي زما په بیداري کښې
یار دَ یار له سترګو اوښې پاکیزه کا [۴۲۲]
تا دریاب کړې زما اوښې په یاري کښې
ما له ډیرې ناچارۍ وَ یار ته شا کړه
سرې عذر دې په ډیرې ناچارۍ کښې
غم به هیڅ یوه هوښیار خوښ کړې نه وي
ما خوښ کړې دې ستا غم په هوښیارۍ کښې
دَ رحمان اوښې به څرنګه په قرار وي
چا لیدلې دې دریاب په قرارۍ کښې

۳۹۲۵ ۸ ۶۴/۳۴۷

سپین مخونه تورکودې شي په پیرۍ کښې
سم قدونه کوږ لرګي شي په پیرۍ کښې
لکه شمع دَ سحر افتاب دَ ژمي
هم بې تا به هم زیږې شي په پیرۍ کښې [۴۲۳]
که پل یو سر بردې و بلې خواته درومي
خپل صورت تمام پردې شي په پیرۍ کښې [۴۲۴]
دَ مرده ؤ په حساب وي غزا وشرې
که څرګند لیده ژوندې شي په پیرۍ کښې [۴۲۵]
مړ لا ښه دې پس له مرګه بیا ژوندې شي
نشته دا چه ژوک زلمې شي په پیرۍ کښې

(۴۲۶)
که څه وخورے لکه زهر نه ارزیږی
نه څه ښځښے نه څه خوړے شی په پیری کښے
داځوانی ده چه څه اورے یا څه وینے
نه لیدے نه اوریدے شی په پیری کښے
اے رحمانه پیری هسے عاجزی ده
که رستم وی زړه پرسوے شی په پیری کښے (۴۲۷)

۳۹۳۳ $\frac{۶۵}{۳۴۸}$ ۸

وقت دَ عیش و طرب تیر شه خزان راغے
ځنکدن دَ بلبلانو په ځان راغے
دلداری ے تر امید وه بارے څه کرم
هغه یار دَ دلبرانو په شان راغے
سود سودا دَ عاشقی که نفع مند وی
ما هیڅ سود پکښے و نه لید تاوان راغے (۴۲۸)
تمام عمر که وصال وو هومره نه وو
لکه یو زمان دَ بشکلیو هجران راغے
اشنائی ے په هوس وه خوچه بیل شوم
دواړه لاس ے وبله ومښو ارمان راغے
کوے زما دَ زړه ئے یو وړ په چوګان کښے
بیا دَ ناز په نیلی سور په جولان راغے
غنچه لب چه په خندا کاندی پریشانه (۴۲۹)
په شیبو زما دَ اوښیو باران راغے

دَ مرزا دَ ارزانی دعوے به پرے کا (۴۳۰)
قدردان دَ شاعرانو رحمان راغے

۳۹۳۹ $\frac{۶۶}{۳۴۹}$ ۶

ق

مست په هغه څخ یم چه مستانے لری ستر گے
بے تورے بے تیغه قاتلانے لری ستر گے (۴۳۱)
بے لیدو کتو غائبان زړونه وړی له خلقو
هسے چشم بنده ساحرانے لری ستر گے (۴۳۲)
هر څوک چه ئے وویني بل سر کتلے نه شی (۴۳۳)
کښلے په دیوار غوندے حیرانے لری ستر گے
لب اٰبِ حیات دی او نفس ئے دَ عیسیٰؑ دے
هیڅ څه عجب نه دے که خوبانے لری ستر گے
هر چه عاشقان دی هغه کله بل سر گوری
واړه ستا په لوری نګرانے لری ستر گے
اے رحمانه دا او بښے هم تخم هم باران دے
کښت دَ هغه شین دے چه ګریانے لری ستر گے (۴۳۴)

۳۹۴۵ $\frac{۶۷}{۳۵۰}$ ۶

چه وصال دَ خپل جانان مے دے موند لے
ګنج دَ دُرو دَ مرجان مے دے موند لے
هومره طمع مے له خپله بخته نه وه
نه پوهیږم چه څه شان مے دے موند لے

کہ پہ ډیر مشقت لاس لره خدائے را وست
زه خو وائیم چہ آسان مے دے موند لے
چہ مے یو نفس وصال ورسره وشه
وارہ اجر دَ هجران مے دے موند لے
څه عجب دے کہ تمام جهان زما شی
چہ بادشاه دَ درست جهان مے دے موند لے
زه رحمان پہ خپل اشعار شکر گزار یم
چہ دا هسے رنګ دیوان مے دے موند لے

۱۲ $\frac{۶۸}{۳۵۱}$ ۳۹ ۵۷

بد لوے پہ دنیا دین و ایمان و لے
نه پوهیږے پہ خپل سود و پہ زیان و لے
همیشه پہ ځائے دَ شکر شکایت کړے
منکریږے پہ عطا دَ سبحان و لے
در بخښلے خدائے دَ هرے چارے توان دے
پہ ډیر توان کښے خپسر بولے ناتوان و لے
مدام اوښے تویوے دَ رزق لہ غمه
در گوهر پہ بها پلورے ارزان (۴۳۵) و لے
چہ پہ هر بیګاه سامان دَ هر سبا کړے
کور و کړ شوے دَ محشر پہ سامان و لے
هیڅ ګیاه لہ ځایه نهٔ خوځی نم مومی
نه دَ رزق پہ طلب مړے جهان و لے

چه پخوا تر قضا خپله رضا غواړے
بیهوده په لوتو وُلے اسمان وے
په ژوند ومره چه دَ مرګ له غمه خلاص شے (۴۳۶)
اسان کار دِ کړ په ځان باندے ګران وے
غیرے مینے دِ په زړه باندے انبار کړے (۴۳۷)
په کعبه کښے ننباسے بُتان وے
زړه دَ نفس په پیروی درڅخه لاړ شه (۴۳۸)
دَ خبیث په لاس دِ ورکړ قران وے
چه یوسفؑ دَ حبشی په بها موے
دَ مطلوب په طلب نه ښندے ځان وے
بد په بد و پښیمانی کاندی رحمانه
ته په خپلو بد و نه شوے پښیمان وے (۴۳۹)

۳۹۶۵ ‏$\frac{۶۹}{۳۵۲}$ ۸

په نور چا پسے بے خدایه ژاړے وے (۴۴۰)
دَ چارپائے په خیر بے ځایه ناړے وے
چه روتی میده کوے په شخوند خوجوړے (۴۴۱)
تر و خبرے کوے لواړے لواړے وے
ته دا خپل کلام میده په دا خپل شخوند کړه
و داړل ته دِ تیرے کړے داړے وے
هغه کار چه دِ په نرم وئیل کیږی
بیهوده په پورته نوے لاړے وے (۴۴۲)

نیک لہ نیکو بد لہ بدو مناسب دی
نیک و بد وبلہ پربلہ نغاړے وے [۴۴۴۳]
یو قدم دَ خدائے پہ لورے ینبووے نہ شے
تمامی عمر پہ بیرتہ لاړے وے [۴۴۴۴]
تل پہ غاړہ کښے دِ طوق دَ تعلق دے
وُکښے نہ شے دغہ طوق لہ غاړے وے [۴۴۴۵]
چہ پہ ورځ دَ شیخی لافے کړے رحمانہ
پہ شپہ مے لہ مے فروشہ غواړے وے [۴۴۴۶]

۳۹۷۵ ۷۰/۳۵۳ ۱۰

کشکے زہ خاورے اپرے دَ ستا دَ در وے
چہ قدم دِ همیشہ زما پہ سر وے
خو یو ځلہ زما ستا وبلہ مخ شوے
نور مے موخہ ستا وغشیوتہ تہتر وے [۴۴۴۷]
تمام تن مے دَ رانجو پہ خیر اوړہ شوے
خو پہ ما دَ تورو سترګو یو نظر وے [۴۴۴۸]
پہ زیر رنګ پہ سپینو اوښیو بہ ما بیاموند
کہ دَ ترکو ملاقات پہ سیم و زر وے [۴۴۴۹]
ملامت بہ پہ ما څۀ لرہ وایہ شہ
کہ دَ ستا دَ دلبریہ څوک خبر وے [۴۴۵۰]
مرتبہ کہ ستا دَ عشق شی ورځر ګندہ
ملائک بہ واړہ وائی کہ بشر وے

تماشا به زما هله دربنکاره شوه
که ته ماغوندے بیدل وے زه دلبر وے (۴۵۱)
په خونبار به زما سترګوغوندے نه وو (۴۵۲)
که په مخ مے دَ تیرو تورو پرهر وے
یانسیم دَ صبح دم یاعندلیب شوے
چه دَ ستا په ګلشنونو مے ګذر وے (۴۵۳)
ستا په درکښے طبیب وائی و رحمان ته
لا به بنه ووکه دِحال تردا بتر وے (۴۵۴)

۳۹۸۷ ۱۲ ۷۱/۳۵۴

دَ وصال په هوا والوتے مرغه شوے
دَ هجران په اورکښے درست صورت اوبه شوے (۴۵۵)
نه وزرکا له هوس نه مری له غمه (۴۵۶)
سرے سخت دے ګنه یواثرخو وشوے
زړه که چاود وے هم له دغه غم به چاود وو (۴۵۷)
چه دَ یار دَ بیلتانه خواری په زړه شوے
چه بیلتون ورته اسان دے هغه خلق
ازمئیښت لره په بند دَ بیلتانه شوے (۴۵۸)
دَ رقیب و ناکړدو ته چه نظر کړم
دَ عاشق له اهه رونډ په تورلیمه شوے
شیخ پوره به دِ نیمګړی نه شوے خدا یه (۴۵۹)
که بیلتون دَ دوه یارانو وبله نه شوے

چه بیلتون دَ دوه یارانو وبله کاندی
دَ هغو خلقو له مرګه واوریده شوے
خدائے رضا لره چا هسے تعویذ وکړے
چه لږ زه دَ هغه یار ترفهمه بنه شوے (۴۶۰)
یو ځل یار په سترګو ولیدے چه دا دے
هرچه شوے له هغه پسه بیا هاله شوے
خولږ نوم ئے زما واخستے په ژبه
نورے نوم په دا جهان کښے پاتو مه شوے (۴۶۱)
لکه درست عمر په خوله دَ رقیب کار کا
دغه هسے یو زمان زما په خوله شوے
زه رحمان په دا معامله کښے حق حیران یم
نه پوهیږم چه دَ یار له غمه څه شوے (۴۶۲)

۷ ۷۲/۳۵۵ ۳۹۹۴

ډیرے خولے زما په یاد شکر خورے شوے
بیا زمونږ په زمانه خاورے ایرے شوے (۴۶۳)
دَ چندنو وُنے وسولیدے لا ړے
هزار ځانګے دَ شمشادو په ارے شوے (۴۶۴)
په هغو زمکو چه روغے وے مانیه
دَ ایام په ګرد شونو هدیرے شوے
په دنیا کښے چه بنیاد دَ اشنائی کا
دَ هجران تورے هغو لره تیرے شوے (۴۶۵)

دا فلک چه خدائے پیدا کړ دائے خوئے وے
چه وچا وته دعا چاته بنیرے شوے (۱۴۶۶)

خپل قسمت په سړی کاندی هرچه کاندی
دَ چا بخره خاموشی دَ چا نارے شوے (۱۴۶۷)

دَ دُنیا دَ مخلوقو خبتے واړه
و رحمان ته دَ سرونو منارے شوے (۱۴۶۸)

ق

۴۰۰۱ ۷۳/۳۵۶ ۷

ته چه ماته وائے چه په چا باندے شیدا یې
زه په تا شیدا یم وایه ته چه یار دَ چا یې (۱۴۶۹)

زه به تا په کومه زیرکی شم پړولے
چا زده لکه تا زده هومره وایه چه څه وائے (۱۴۷۰)

زه چه کبرژن وم عاشقی مے گردن مات کړ
ته چه لکه وے هم هغه هسے کبریایې (۱۴۷۱)

ځان که ستا په مینه کښے فنا کړم څه به وکړم
ته چه په دا هسے رنګ له اهه بے پروایې (۱۴۷۲)

مرګ مے په تا ولے خدائے اختر کړنه پوهیږم
څه دِ حاصل هم شته که مطلق په مړل زمایې (۱۴۷۳)

څه شوکئ یم زه انګشت نمائے په مینه ستا کښے
لا ترما نه خوښه دَ قاضی او دَ ملایې (۱۴۷۴)

ستا دَ عشق ترتُورے کګری دَ رحمان ځارشه
دا هم سهل کار دے زما یاره که په دا یې

۸ ۷۴/۳۵۷ ۴۰۰۹

خو زما په ورمیږه ماتول شیر ـ ئے
که په مرګ دَ رقیب هم هسے شمشیر ـ ئے
مرګ خو وینے چه په خپله راپسے دے
څه محتاج زما ومرګ وته ډیر ډیر ـ ئے (۴۷۵)
کبر وخیال خو لا له ځایه ستا عادت وو
اوکه نن زما له قصده په بل پیر ـ ئے (۴۷۶)
دا بے شماره عاقلان به شی کم عقل (۴۷۷)
ته چه دا رنګه په زړه وکښه دلیر ـ ئے
ستا خویونه به په خپله ځان څرګند کا
زه به څو وایم چه څو تر بلا تیر ـ ئے
له حیرته دِ تعریف کولے نه شم
چه په څه رنګ دِ ستایم دچاپه څیر ـ ئے
ما چه ستا دَ لبو خوند بیاموند محظوظ شوم (۴۷۸)
که سل ځله په ترخه وئیل ګنډیر ـ ئے
دَ جهان ښکلی که وارہ دَ رحمان شی
خدائے دِ نه کا چه ئے ته له دله هیر ـ ئے (۴۷۹)

۸ ۷۵/۳۵۸ ۴۰۱۷

په یوه ذره به وږے یا به موږ ـ ئے
په یوه ذره به ګرم یا به سوړ ـ ئے

که ځوانی له خدایه غواړے ځوان به ومرے (۴۸۰)
او که پس له ځوانئ پائے خو به زوړ ئے
بنده کان خو کله جوړ کله ناجوړ وی
څه خدائے نه ئے چه به تل تر تله جوړ ئے (۴۸۱)
عاشقی به دِ اسمان غوندے څرګند کا (۴۸۲)
که مجنون غوندے هر څو په صورت ووړ ئے
عبادت خو په ځوانئ کیږی رحمانه
په پیرئ کښے به څه زهد کړے چه زوړ ئے (۴۸۳) ق
بدئے واړه په بنه ونسه رحمانه ق
چه پائے بند دَ یار په مینه یا په مروړ ئے
که دِ شعر دَ رحمان مومند تر غوږ شی ق
دواړه لاس به په ارمان ورپسے مروړے
عاشقی بے جذبے چرے ده رحمانه
ته مجذوب دَ یار په مهر کښے لا ووړ ئے (۴۸۴)

۸ ۷۶/۳۵۹ ۴۰۲۵

ق

که په قطع دَ تمام جهان ملک ئے
چه له ځانه خبر نه ئے لا هلک ئے (۴۸۵)
ادمیت خو څه په مال او په شال نه دے
ته چه خیال په شال و مال کړے ځکه سپک ئے (۴۸۶)
منصفان به دَ انصاف خبره وائی
څه شو څه شو که په خپلو کښے شیرک ئے (۴۸۷)

که دَ نمر په شیر څرگند شي په جهان کښې
څو په زړونو پسندیده نه شي لا ورک یٔ (۱۴۸۸)

بزرگي په دلجوئي کښې ده دَ خلقو
ته چه خلق ډوبوې څرنگه بزرگ یٔ (۱۴۸۹)

په لوی کښې لوئي چرې ده احمقه
کیینیه وته مټ کړه که سالک یٔ

فلک تا غوندې هزار فنا پیدا کړه
ته لا نوې نوخاسته په ناز نازک یٔ

دانایان په دیوال کښلې پند اخلي
ته رحمان په خوار نظر کورې مورک یٔ

۴۰۳۹ ۷۷/۳۶۰ ۱۴

په ځوانۍ کښې بد دماغه بدگمان یٔ
چه پیري دربانده ډریشي ناتوان یٔ (۱۴۹۰)

که په دا دِ زړه بنه کیږي داخو نشته
چه به تل ترتله ژوې هم به ځوان یٔ (۱۴۹۱)

چه بې خدایه زړه ترې په نور څه پورې
هم په خدائې هسې باور کړه چه نادان یٔ (۱۴۹۲)

پښېماني تر پښېمانیه ښخوا بویه
نه هغه چه بیا په تیر ساعت پښیمان یٔ

هسې رنگ دِ وَ هغه جهان ته شا کړه
گویا تل به مستقیم په دا جهان یٔ

هومره سر دِ وخپل خدائے وته تېښته نه دے (۴۹۳)
لکه تېښت په لور دَ خان ودَسُلطان ـــ ئے
یوه شپه په طاعت نه ـــ شے رونوے
هره شپه په مال وملک باندے پاسبان ـــ ئے
په تسبیح دِ تانده ژبه وچ لرګے شی
پوچ ګوئے لره بلبل غونډے ګویان ـــ ئے
وَ نمانځه ته چه نمر خیژی هاله پاځے
په قلبه پسے لا نیمه شپه روان ـــ ئے (۴۹۴)
اوداسه لره کوزه اخستے نه ـــ شے
چه په لو او په لور ورشے پهلوان ـــ ئے (۴۹۵)
دَ هلک په ځیر لاس اچوے واور ته
نه خبر په خپل بهبود نه په نقصان ـــ ئے (۴۹۶)
پټے سترګے لکه شتور په کانی کرځے
چه پریوځے وکوهی ته هم دوان ـــ ئے (۴۹۷)

چه وبل ته نصیحت کاځان دِ هیر دے
نور څوک نه دی هغه ته عبدالرحمان ـــ ئے (۴۹۸)

# مخمّس

هغه یار چه ښائسته دے تر افتابه
مخ به کله راڅرګند کا له نقابه[1]
بیلتانه په زړه زهیر کړم بے حسابه
یو سبب وکړے مُسبِّبُ الاسبابه
چه زما ملاقات وشی له احبابه

ملاقات دَ ښائسته ؤے نصیب کړے[2]
دَ ښائست په ګلستان ے عندلیب کړے
عندلیب ے په ګلشن دَ خپل حبیب کړے
خدایه ما په دلبرانو کښے قریب کړے
وے ژغورے دَ دے اهل له عتابه[3]

هغه یار چه زړه ئے مینه په دیدار کړم[4]
همیشه ئے و دیدن ته انتظار کړم
شپه و ورځ پسے نارے وهم کوکار کړم
که په روئے ورته تمام جهان روئیدار کړم
سترګے نه پورته کوی دَ نازله خوابه

بیلتانه ئے پټ پنهم په زړه تاراج کړم
و دیدن ته ئے په هسے رنګ محتاج کړم
چه غرقاب ئے دغمونو په امواج کړم
هیڅ پایاب ئے موندهٔ نهٔ شی څهٔ علاج کړم
دَ اشنا دَ مینے غم شه ناپایابه

ته چه کس یٔ دَ جمله وُ بیکسا نو
هم کارساز یٔ دَجمله وُ خام کارا نو[5]
الٰهی په بزرګه دَ بزرګا نو[6]
زهٔ وصال په دُعا غواړم دَ خوبا نو
لا به کله دا دُعا کړے مستجابه

اسیر کړے دِ دَ زلفو په طناب یم
تکبیر کړے دِ دَ سترګو په قصاب[7] یم
دَ کشتیٔ غوندے مدام په اضطراب یم
لکه زهٔ چه ستا له غمه په عذاب[8] یم
خبر مه شه هیڅ بنده له دے عذابه

دریغه مه وے په دنیا کښے پیدا شوے
اوکه وے هم خو دا هسے شان خومه[9] وے
لکه زهٔ یم د هجران په لمبو سوے
څو به کرځم په دا هسے اور اولوے
چه سینه مے په درست عمر شوهٔ کبابه

هے هے څه مے دا خراب خاطر ناښاد شه
زیست روزګارے همیشه آه و فریاد شه
عمارت مے دَ زړهٔ هسے رنګ برباد شه
چه حباب غوندے بے بیخه بے بنیاد[10] شه
دَ بنادئ طمعه به څه کړم له حبابه[11]

پټ پټ ګرځم دَ ناصح له نصیحته
را ته کاندی نصیحت په څو صورته

چه توبه کړم دَ خوبانو له قربته
هیڅ ځواب ئے په ما نه شي له غیرته
درمانده ورته ولاړ یم بے ځوابه

دا ځواب څه هسے نه دے چه په خوله شي
دَعشق راز څه هسے نه دے چه وایه شي
دا مشکل حکایتونه په ما نه شي
دَ دے بحر بے پایان حساب په څه شي[12]
چه ئے زه وچاته وائم له حسابه

چاموندلے دَ دے بحر پایان نه دے
دغه راز و هرسړي ته عیان نه دے
هیچا کړے د دے چارے بیان نه دے[13]
دغه واړه عاشقي ده رحمان نه دے
چه په خوله کښے لعل و دُرلري سیرابه[14]

## مسبّع

ستا جفا دَ حد په هورته شوه صنمه
تل مے اوښے موج وهي دَ زړه له یَمه
ږکښے ډوب شومه له سره ترقدمه
دَ زړه زخم مے محروم دے له مرهمه[15]

څو به پته واقعه اوسی پنهمه
هسې ډوب په فکر تللې یم له غمه
نه پوهیږم چه په غریم که په سمه
که مې زده وې له دې هسې رنګ خواریه[16]
ما به نوم اخستې نه وو دَ یاریه
(خبر نه وم دَ هجران له دلګیریه
صبر وکړم عاقبت له ناچاریه)
ستا دَ غم په دریاب ډوب یم تر مریه
بې تا نه لرم هیڅوک دَ دستګیریه
مګر ته په خپله لاس راکړې همدمه
ما وې نور به اشنائي له هیچا نه کړم
هم په دا رنګې مې نیت وو بارې څه کړم
(دانسته دَ غم کوهې ته پریواته کړم
په هنر به شلومبې څه رنګه شوده کړم)
دَ قسمت علاج په چاشي چه ئې زه کړم
که په سل رنګه تالاش و تدبیر[17] وکړم
خلاصې نه مومم له لوحه له قلمه
خوبرویان که بې وفا دي هم خو ورځ دي
عاشقان که وفادار دي هم خو پرځ[18] دي
(په ژوند وني په حساب کښې دَ دوې مړه دي
مقتولان واړه دَ مینې په چاړه دي)
ستا له غمه هرڅه دي زما په زړه دي

اوس به حال وچا ته څه وائم چه څه دی
غرض دادے چه زهٔ کرم یم ته ناکرمه

یو خو دا چه په صورت یې پری رویه
هم په خوی او په خصلت یې فرښته خویه[۱۹]
(ګلاب اب وابرو واخست ستا له رویه
په تخته دَ زړهٔ نامه ستا کښلے بویه)
هم په قد و په قامت هر ګوره لویه[۲۰]
بیا به نه مومی څوک تا غوندے دلجویه
که یې غواړے په هژده هزار عالمه

ستا له غمه زهٔ په ځان کړم هسے چارے[۲۱]
چه دښنه یې وبله نه کا کل عذارے
(که باور نه کړے دا حال وګوره بارے
چه له سترګو مے دَ وینو دروی دارے)
ته په څه سبب زما له لاس ازارے
دا زما ګناه را وښیه دلدارے[۲۲]
چه توبه کړم نصوحا غوندے محکمه

لاس ترغاړه دَ رقیب سره خندا کړے
چه ما ووینے له قصده رانه شا کړے[۲۳]
(په غمونو دَ عیش ورځ زما بیګا کړے
پخوا نه وے په دا خوئ اموخته چا کړے)
خدائے یې وینی هغه چارے چه په ما کړے
ترابدے ورځے پورے به جفا کړے[۲۴]

که به کله هم جار ووځے له ستمه [۲۵]

تا چه هسے بے نیازی دَځان پیشه کړه [۲۶]
په عاشق دِ دَ خندا زمکه متره کړه
(جور ستم دِ په عاشق دَځان بشیوه کړه
زه غبن نه کړم چه دِ زړه غواړی هغه کړه)
بیا دِ ورځ په غریبانو توره شپه کړه
نور دا هسے دَجفا خویونه مه کړه

خلقه به دِ له جوره شي برهمه

ستا زما له مینے هرڅوک خبردار دی [۲۷]
دا خبرے کورا کور په هردیار دی
(دَ پیغور مالگے پرتے مے په پرهار دی
دا خبرے شپه او ورځے (څه) پکار دی) [۲۸]
چه فلانا فلانا سرِی سره دوستدار دی [۲۹]
اوس په بیرته جار واته وماته عار دی

چه رسوا شوم تر عربه تر عجمه

هغه ژوی چه په تاباندے مئین وی
په وگړی کښے رسوا لکه کوهکن وی
(په داغونو ستا دَعشق ئے زړه گلشن وی
دَ کاکل ناز ته عشاق لکه سوزن وی)
همیشه انگشت نما په مرد و زن وی
چه دا نخښے پکښے نه وی دروغژن وی [۳۰]

که په هره گړی خوری هزار قسمه

نښـانه دَ عاشقانو اول دا ده
چه مدام ئے سریکار وی له فریاده
ښکلے یار یوه دم نه وباسی له یاده
شیرین نوم خپل برابر کاله فرهاده
تل نامه دَ بدنامیه وی پر زیاده
نه ویریږی له پیغوره له اهداده
بے دَ یار دَ جدائیه له ماتمه
هرچه زړه ئے مبتلا شی په بتانو
زیست ئے نه شی یو ساعت بے مهرویانو
خپل روغ ځان کاندی حساب له دیوانګانو[۳۱]
کا دَ عشق په اور بازی دَ پتنګانو
که څوک ورکا بادشاهی دَ بادشاهانو
په نسبت دَ هغو سویو سوختګانو
دا متاع ده تر یوه خسنی کمه[۳۲]
که سلیمانؑ غوندے مسند ئے په هوا وی
په سبب دَ عاشقۍ به خاکِ پا وی
قیس مجنون غوندے له خلقه به جدا وی
له خاطرئے هرڅه هیر بے دَ لیلیٰ وی[۳۳]
همیشه به په فریاد و په غوغا وی
چه دا هسے نښانے پکښے پیدا وی
ترو هاله پر عاشقی ده مسلّمه[۳۴]
عاشقي دِ هیڅوک نه ګڼی اسانه

دا خبره دہ دَحد پہ هورته ګرانه
(دَ بهار راتله خو نشته بے خزانه
غواص نه مومی ګوهر بے له عمانه)
وصال نه دے چاموندلے بے هجرانه
ته له زړه سره اتکل وکړه رحمانه
پہ دُنیا کښے ښادی چرے ده بے غمه (۳۵)

# ضمیمه

## ا

دا شعرونه دَ 'ط' او "یو" نسخوکښې دَ غزل ۲۹۳ په ذیل کښې نقل شوی دی. ځکه چه ددے شعرونو قافیه ددغه غزل د قافیې نه بدله ده او مطلع نه لری نوځکه ضمیمے په طور را نقل شو:

دَ زړه حال و تاته څه وائم په ژبے
ته خبر دَ خوږ و زړونو په ښمځل یې
هم دَ ګل په څیر بلبل سیزے په مینه
هم مئین لکه بلبل هسے په ګل یې
بے لیدو درځرګند یږی غیب واړه
په کمال دَ جملګی چارو کامل یې
هم قاضی و هم ملا هم محتسب یې
هم ساقی دَ مے پرستو په محفل یې
یو دِ ذات په دواړو کونو کښے شهره دے
بل په نام له هرچا لویه یو په سل یې
چا ته مخ په عبادت کښے نه جار باسے
څوک که درسته شپه بدی کا ته یې ځیل یې

# ضمیمه

## ب

دا شعرونه بناغلی برنهارډ ډورن (مؤلف د کرستهو میتهی) په جرمن ژبه کښې لیکلی

دَ پښتو ګرامر کښې دَ مثالونو په طور راوړی دی:

خپل جانان مے هسے (رنګه) وی په زړه کښے
نه پوهیږم چه رحمان یم که جانان یم

(نوټ عـ۴/۱۳۵ وګورئ)

طفلان هم په یو دوه کاله سخندان شی
رحمان زوړشه ولے نه شه سخندان

(نوټ عـت/۲۲ وګورئ)

هیڅ سړے به په دنیا کښے پاتونه شوے
که هندکے وی که مغل وی که پښتون وی

یار له یاره بیلول هسے وبال دے
لکه چاچه په ناحقه کړے خون وی

چه بیلتون دَ دوه یارانو سره کاندی
دَ عاشق په نظر واړه ملعون وی

---

نه مونده شی په بازار کښے نه په ښهر
زه دَ یار په خیر بل نه وینم په سترګو

---

دَ وسیلو حاجت نشته واړه دے دے

(یوه مصرعه)

---

# ضمیمه

## ج

دا غزل دَ کرستهو میتهی په متن کښې راغلے دے:

| | |
|---|---|
| چه دوے ښځې وي دَ چا | هم سني وي هم پارسا [۳۶] |
| خدمت کړونې دَخښتن وي | په ښه خوی وي اراستا |
| تفاوت پکښې حرام دے | که شړې وي که خاصا |
| لازم دادی وخښتن ته | تفاوت دِ نه کا بیا |
| په خوراک هم په پوشاک کښې | که کانړه وي که خذوا (؟) |
| او که دا هسې به نه کا | خپل عمل به کا بید یا |
| یو دے به مجنون ومري | بل هورے به شي روسیا |
| دا حدیث دے وارد شوے | که څوک فهم کا په دا |
| هغه څوک چه تفاوت کا | زه ویزار یم دے له ما |
| په مشکوٰة کښې دي راغلي | ورشه وپوښته علما |

رحمان ژغورے یوه خدایه
له عذابه له خطا

# ضمیمه

## د

(۱)

هغه غزلونه چه د کابل د پښتو ټولنې چاپي دیوان (سنه ۱۳۵۶ هش / ۱۹۷۷ ء) کښې چه د چاپ پر له پسې نمبر ئې ۲۲۵ دے چاپ شوي دي خو زموږ په قلمي نسخو او چاپي دیوانونو کښې نشته -

که ترستوني دِ شي کوټ له جامه خاصه
هغه دم به شي دَ غم له شیبو خلاصه (۱)
تل په سپینه جامه تکي بد لیده شي
ته دا عامے چارے مه کړه خاص الخاصه
که دِ وړے نهنګ ځان ته یوه لقمه کړي
زړ به راوړے په تحقیق سره غواصه
په لباس به دِ اسان په صورت ګران شي
مشکلات به دِ اسان شي له اخلاصه
که نغمه دَ محبت په غوږو واورے
په فلک به شي زهره غوندے رقاصه
معنوي صورت پیدا کړه که میړه ئے
فائده څه ده دَ بوتانو له اشخاصه
دَ بل څیز په خاصیت به هغه ګوري
چه خبر نه دي دَ ځینې له خواصه

چه پارچه درځنې رخت دَ مینې نه که (ب)
فهم دار وسه رحمانه له رصاصه

(ا - دا غزل دَ پښتو ټولنې دیوان کښې د 'ص' په پښتې کښې راغلے دے خو دَ مطلع دَ دوئمې مصرعې نه بغیر نورے ټولې مصرعې دغسې مناسبې دی لکه چې مونږ ولیکلې - ځکه نو په کا پښتې ولیکلې شوے - (ب) چاپي نسخه کښې مصرعه داسې ده: "چه تارچه ودځنې رخت دَ مینې نکه"۔ دَ دے غزل په باره کښې دا وضاحت شوے دے چه د اطلاعاتو او کلتور د خطي کتابتون له دوئمې نسخې ځنې اخستے شوے دے.)

❀

که گوهر دَ عشق په لاس راکړې غواص
بیا هاله ئے دے له ما سره اخلاص
په کاله به دَ رقیب غمونه زور شي
که مے یار کاندے حساب لہ خاص الخاص
په کمند دَ مستې مینې دَ خوبانو
بندي مه کړے خدائے دحشره پورے خلاص
په رحمان باندے نظر د کرم وکړے
اے چه ئے د پاک الله په دربار خاص

سند: دَ اطلاعاتو او کلتور دَ خطي کتابتون دوئمه نسخه -

❀

ساقي راکړه ته وَ ماته جام دَ رقص
زه ارزو په زړه لرم مدام دَ رقص
ده نورے اوس به دَخوښۍ ساعت په تا شي
مغني راکړو و ما پیغام د رقص
مستي علم خپل استاد راته تعلیم کړه راښمائے کړه هر تار مقام دَ رقص (ج)

سرے پاس ترنهٔ فلکه څرکندیږی
چه په چا وشی ارشاد اعلام دَ رقص
چه جلوه پر دَ محبوب له لوری کیږی
هرګز نشته په هغه اشام دَ رقص
لیاقت ئے هر وګړی څخه نشته
په لائقو باندے وی انعام دَ رقص
څوئے سا په وجود شته عبدالرحمانه
حقیقت به هومبرے نه که تام دَ رقص

(ج) دَ وړومبی مصرے وړومبے تورے "موسیقی" دے. او په دے شان په دے مصرعه کښے "خپل" زائد دے. دَ غزل دَ سند دپاره دکومے قلمی نسخے حواله نه ده ورکړے شوے)

❀

په دربار کوم دَ ښکلی دلبر عرض
په هردم په هرساعت مکرّر عرض (د)
که قبول شی دَ مولا په پاک دربار کښے
دا په روئ دَ شاه نبیؐ پیغمبر عرض
په مانند د کړیال په پنځه وخته
په شورش دغه له خوفه د سفر عرض (ه)
بے خاونده د کار (و) کله څه کیږی
څه که کار ته همیشه که قلندر عرض
دا رحمان بے نبی کله وښبتن ته
شوے کولے د بل کار سراسر عرض (و)

(د: چاپی دیوان کښے مقرر دے۔ (ه) دلته او له دے نه پس ته شعر کښے وزن بدل دے۔

و- وړومبۍ مصرع دیوان کښې داسې ده: دا رحمان بې نبي کله د رخښتن ته -
دَ غزل سند- دَ اطلاعاتو او کلتور دَ خطي کتابتون دوئمه نسخه -

❀

که مې یار په دیدن سر غواړي عوض
ورقربان شه چه دلبر غواړي عوض
چه هستي واړه نیستي کاندي واصل شي
کند کچکول دِ قلندر غواړي عوض
دَ دو نحې په اور به څه حاجت موقوف وي
عاشقي تر خاکستر غواړي عوض
خپل صورت ورته نافه کړه ته دَ مښکو
یار مجمر سره عنبر غواړي عوض
دَ لباس له ښکلیو طمع بوسه مه کړه
دَ بوسې په ورکړه زر غواړي عوض
دَ دې دهر له تکیه ویره وکړه
دَ کهتر په ځائې بهتر غواړي عوض (ز)
دَ عشق درس څه په اسانه لوسته نه شي
په دا ځائې کښې زیر و زور غواړي عوض (ح)
په یو ځله به تر خلاص نه شې رحمانه
سر و مال دِ مکرّر غواړي عوض (ط)

(ز- چاپي دیوان دوئمه مصرعه کښې د کهتر په ځائې "کهتری" راوړې ده- ح- چاپي دیوان کښې وړومبۍ مصرع داسې ده: دَ عشق د رڅه په... الخ - ط- چاپي دیوان کښې د مکرّر په ځائې مقرّر دې- دا غزل چاپي دیوان کښې د کومې نسخې د حوالې نه بغیر درج شوې دې).

نن نګار وماته راکړ دَ یارۍ خط
وې ئې واخله دا دې دَ دلدارۍ خط

دَ غماز له دوراهیه ترهه وکړه
ځان به بائلې دَ مکار په جوارۍ خط (ی)

چیرې نه وی چه ئې څیرې په غفلت کړې
تل ئې لوله په تمیز په هوښیارۍ خط

په مدت سره به ستا انجام ته رسی
اسان کله دې دا ستا دَ ریبارۍ خط (یا)

دَ غفلت له خوبه پاڅه بیداری کړه
تل وتا ته سپارلې دَ بیدارۍ خط (یب)

برابر دَ خط په حکم قدم کیږده
که ته غواړې په عقبیٰ د نامدارۍ خط

له میزانه که امان غواړې رحمانه
تل خو لوله په ډیر عجز په زارۍ خط (یج)

(ی- داشعر په دیوان کښې داسې دې: دَ غماز له دوراهۍ تراهی وکړه ؛ ځان به بائلې ... الخ.

یا- وړومبۍ مصرع کښې مدت او مدد دواړه صحیح معنی ښندی - یب. دوئمه مصرع کړۀ وړۀ ده.

یج- دوئمه مصرع دَ دیوان مطابق ولیکلې شوه. دَ "عجز" تلفظ دپاره به دَ ضرورت شعری بانه لټوو- دا غزل دَ دیوان په مطابق د اطلاعاتو او کلتور د خطی کتابتون له دوئمې نسخې نقل شوې دې.

❀

بلبلان که له ګلزاره موی حظ
مشتاقان له خپله یاره موی حظ

زه دَ عشق له تاوده اوره بهره مند یم
سمندر له سره انګاره مومي حظ

دَ چمن غوټیه وا دَ سحر باد کا
عاشقان خو له ریباره مومي حظ

په طلب ئے نفع مند شوم له هرچانه
تل ښکاری له خپله ښکاره مومي حظ

مجنون بیاموندہ خوښی په بیابان کښے
هر منصور له تیره داره مومي حظ

څو چه ملک دَ جهان زیر دَ قدم نه کا
په خپل ځائے به څوک قراره مومي حظ

شګفته چه دَ غنچے غوندے سحروی
هغه ژبی به بے شماره مومي حظ

په ښندل دَ سرے سر دَ وصل بیاموند
وپاری تل له وپاره مومي حظ

چه نیولے ئے خپل ځان دَ غم وَ اور ته
رحمان ځکه له انواره مومي حظ

(دا غزل دَ اطلاعاتو او کلتور د خطی کتابتون له دوئمے نسخے نه منقول بیان شوے دے)

❁

که دِ پریکړه له وکړیو رښتیا طمعه
نور بادشاه ئے هرګز مه کړه لچا طمعه

زیړے رنګ دَ اشنائیه مبدل شی (ید)
پیدا مه شه دَ اشنا له اشنا طمعه

چه له ښکليو دَ دے دهر وفا غواړی
دَ نادان په څير ئے شی له کيميا طمعه
چه مراد غواړے دَ زړهٔ له مهرويانو
ستا په دام کښے نيوے شی دَ عنقا طمعه
خدائے دَ عقل جواهر ورته بخښلی
له نادانو په څه شان کا دانا طمعه
ځکه سپے دَ فقير پښے او لمن نسی
چه دَ خدائے له دره پرے کا ګدا طمعه
له دغه رنځ ئے طاعون تبه بهتر دی
اے رحمانه ! خدائے دِ مه کړه پيدا طمعه

(يد۔ ښائی چه دَ "زيړے رنګ" په ځائے "ژړے رنګ" وی۔ دا غزل د اطلاعاتو او کلتور دَ خطی کتابتون له دوئمے نسخے نه منقول بيا نيږی)

❀

چه هردم له خپله ځانه ګريزان يم
هم په دا لکه درياب دَ دروکان يم
مرګے تريخ دے چه ژوندون دچاشيرين شی
زهٔ خورسند دَ يار تر وصله په هجران يم (يه)
نادانی مے دانائی شوه لکه طفل
په ناپاکو کو هره کښے پاک دامان يم (يو)
چه دَ نفس دَ حرص ملک مے مسخر کړ
په هوا دَ پاسه تخت دَ سليمان يم (يز)
تن مے څه کړے چه زړهٔ يار راڅخه يووړ
بيهوده دَ خالی خونے نګهبان يم

لکه گل چه په نار مات کړے اویزان وی
زه هم هسے دَ ژوندیو مړیو ترمیان یم (یح)
کله ځان راته ولی کله عاصی شی
نه خبر په خپل کمال نه په نقصان یم
خپل جانان مے هسے نقش دے په زړه کښے
نه پوهیږم چه رحمان یم که جانان یم (یط)

(یه - وړومبی مصرعه په دے شکل کښے زیاته معنی ښندی: "مړګ ئے تریخ وی چه ژوندون الخ دویمه مصرعه دیوان کښے داسے ده: "زه خورسند دَ یار ترو وصل په هجران یم". یو. دویمه مصرعه داسے لوستل پکار وو: "په ناپاکه گهواره کښے پاک دامان یم - یز. د سلیمان[۴] تورے رحمان بابا عام طور سره په دوه سیلابیز شکل کښے پکار وی. دلته ئے شکل درے سیلابیز دے - یح. وړومبی مصرعه کښے د "نار" په ځائے نار لیکل پکار وو. دویمه مصرعه کښے څه تصرف ښکاری. دیوان کښے دا مصرعه داسے ده: "زه هم هسے دَ ژوندو دَ مړو ترمیان یم" خو دَ ژوندی او مړی جمع ژوندیو او مړیو صحیح ده - یط. وګوری زمونږ دَ متن دَ $\frac{۲۰}{۱۳۵}$ غزل دویمه مقطع. دیوان کښے دا غزل د اطلاعاتو او کلتور د خطی کتابتون دَ دوئمے نسخے په حواله رانقل شوے دے.)

❀

زړه مدام راته وئیل چه ژاړه ژاړه
په ژړا سره دِ تللے اشنا غواړه
مصلے دَ بے ننګئ وړ پسے لنګ کړه
بیچاوښیه دَ ننګ کیږده وئے نغاړه (ک)
که دَ یار په سرلوړی دا ستا رضا وی
په خندا خندا راځه په لکه غاړه

دا فلک چه دَ اسیا په دود گردش کا
په دنیا کښې به پریښږدی دانه لواړه
په دنیا کښې کوره هر چې زندَه سر دے
دَ اجل په تیغ به پرے کا دَ دوی غاړه
دَ مکے زنځیر حاجیان په لاس کښې نسی
رحمان وینوے دَ یار زلفینې دواړه

(ک. وړومبۍ مصرعه کښې د مصلے په ځائے دیوان کښې مسلے لیکلے شوے دے. دا مصرعه دے ضمیمه کښې له دیوانه نقل شوے دَ ۲۱/۱۷۷ غزل د پنځم شعر دَ وړومبۍ مصرعے په حیث هم راغلے ده. دیوان کښې دا غزل د اطلاعاتو او کلتور دَ خطی کتابتون د دوئمے قلمی نسخے په حواله رانقل شوے دے)

⁂

چه ښکاره شو راته راز دَ یار له پته
پریشان شوم په زړه حیران له دے نمطه
ځوک به څه دَ وفا طمع کا له ښکلیو
چې دَ طمع لفظ خالی دے له نقطه
په کشتۍ دَ عاشقۍ به پل کښیښږدم
که شم دا ځله خارج دَغم له شطه
پرے کړه سر چې شے منصور و هر اشیا ته
تیره والے دَ قلم راځی له قطه
بیا به څو زړونه محبوبه په منګل وړی
هسے راغله لکه تکه سپینه بطه
دَ یار غم به دِ هاله په زړه میشته شی
که دِ غیر غمونه شی له دله حطه

نن کاغذ راته ربیار دَ یار راوړے
کوره څه به شی معلوم له دغه خطه
چه ے قد دَ یار دراز او نه کوته دے
رحمان واخسته په لاس ځکه اوسطه

(دا غزل چاپي دیوان کښے دَ اطلاعاتو او کلتور دَ خطی کتابتون دَ دوئمے نسخے په حواله رانقل شوے دے)

❀

تل ژړا فریاد کړم دَ دلبر پراستانه
کله به وماته مخ ښکاره کا مستانه
زه لکه مجنون ولاړ په طمع دَ لیلیٰ یم
اوس به لیلےٰ راشی پر سپین مخ زلفے شانه
راغلم ستا زیارت له که ے زړه یقین نو رننشی
ښیک پیزوان ئے دواړه پیره ستا دی شکرانه
تیغ د معشوقو دِ په گردن دے عاشق ینبے
هسے رنګه زیب کا لکه ے په پیمانه
چرے دَ منصور په دود سنګسار نه شے رحمانه
مه کوه دَ عشق خبرے ډیرے رندانه

(دَ مقطع په لړ کښے وګورئ زموږ متن دَ $\frac{۳۰}{۱۸۷}$ غزل وروستیئ مقطع او دَ "ه" نوټ ۱۷۸- دا غزل دَ اطلاعاتو او کلتور دَ خطی کتابتون دَ دویمے نسخے په حواله رانقل شوے دے.)

❀

پټ پناه ے په خاطر نګی اوروته
چه رایاد شی دَ مئینو بشروته
تل جرس درته واهه دکوچ ډلیال شئ
پردیسیانو زلمیو! وترئ بارونه (کا)

راشه ورشه حال ئې وګوره چه څه دے
پر مئينو باندے پريواته قبرونه
تا چه دا شيرين بشرخاورے بيابان کړ
تر شيرين بشرے وخاته خارونه
دا مئين چه تا ليده اوس ليده نه شي
دي بند شوی دَ لحد په حصارونه
يوه ذره دَ محبت ورکړه رحمان ته
چه بے تا ئې په زړه نور نه شي فکرونه

(کا- وړومبۍ مصرعه کښے راغلے تورے "ډلیال" صحیح نهٔ ښکاری - دَ دیوان فرهنګ نویس دَ دے لفظ معنیٰ"دَ ډلے ملګرے" لیکلے دے چه دلته څه مناسبت نه لری- کیدے شی چه دا تورے "دَ لیار"وی - د دے غزل قافئے هم غلطے دی- دیوان کښے د اطلاعاتو او کلتور دَ خطی کتابتون دَ دوئمے نسخے په حواله رانقل شوے دے -

٭

له چشمانو ے دَ غمه اوښے اوری
چه اغيار (ته) يار زما له قصده ګوری
سر و مال به دَ قاصد تر راتلو ځار کړم
چه خبر راله راوړی دَ يار له لوری
تر سورکی پيزوان ئې ځار شه قلندره
لکه مست اتی مدام په زنځير شوری
ته چه راغلے خوبان واړه پسی شاشول
نمر چه وخيژی نور ځی پټيږی ستوری
شينکے خال دِ دَ جبين په مخ کښے زيب کا
لکه حوره دَ طوبیٰ ونے تر سيوری

# ضمیمه

## د (۲)

هغه شعرونه چه د کابل ذکر شوی دیوان کښې شته خو زمونږ قلمی نسخو کښې درج نهٔ دی :

| غزل نمبر | شعر نمبر | شعر | حواله |
|---|---|---|---|
| ۱/۱ | لسم شعر | که پیدا که پوشیده کا دی که اوسط دی<br>په هسه ئ وقوف دار دے رب زما | د نسخې حواله نشته |
| ۲۵/۲۵ | وروستے شعر :<br>(له مقطع اګاهو شعر) | د لرم چیچلے خوب کوے نه شي<br>چه خوړلے تور ښامار وي ئه به خوب کا | د نسخې حواله نشته |
| ۲۶/۲۶ | وروستے شعر | د مجاز بندی خو خوب کوے نه شي<br>چه ئې زلفې طوق رسن وي ئه به خوب کا | د اطلاعاتو او کلتور د<br>خطی کتابتون دوئمه قلمی نسخه |
| ۴۴/۴۴ | وروستے شعر | که جفا کوے که جور واړه ځائے لری<br>د ستا جور و جفا واړه دی منلی ما | د نسخې حواله نشته |
| ۴/۵۲ | وړومبے شعر<br>(د مطلع نه پس شعر) | هومره تاؤ د بیلتانه راباندے زور شي<br>چه حساب ئې بیان نه شي په کتاب | د نسخې حواله نشته |
| ۲/۷۱ | قصیده کښې د مقطع نه<br>اګاهو درے شعرونه : | که مے غواوی که مے وزه وی<br>که مے اس وی که مے خر<br>که مے میږ وی که مے مږ وی<br>که مے اوښ وی که غاتر<br>که په کور کښے مے کالی وی<br>که لونګې وی که تڼر | د نسخې حواله نشته |

(کب - وروستئ مصرعه هم دغسې په دیوان کښې ده - کج - وړومبۍ مصرعه کښې دَ "چلتار" تورے بنائی چه "چوتار" وی - دا شعر له دے نه پس ته څلورشعرونه، او مقطع ردیف هم نۀ لری - کد - داشعر او مطلع په قافیه کښې یو تر بله سمون خوری - غزل دَ اطلاعاتو او کلتور دَ خطی کتابتون دَ دوئمې نسخې په حواله رانقل شوے دے -)

❀

یو ځل ولیدے دَ یار پریشانې زلفې
په عارض باندے حلقه پیچانې زلفې
که تور تم لری ظاهر سیاهی دَ زلفو
حقیقت لری سفیدے روښانې زلفې (کھ)
دا قدرت الٰهی دے راشه ګوره
دَ دانا دَ ګردن طوق نادانې زلفې
هم په څیرئے دَ خپل ځان په زړه حیران کړم
په وږو دَ یار پرتے حیرانې زلفې
په شمیم د خوشبوئے زړه خوشبوشوم
خدائے دې نه کا په خپل داد پښیمانې زلفې
په کوم لورې به زړه سر تر نه وکاږم
وَ ګردن ته ے پرتے ریسمانې زلفې
ځکه ژاړم له دوو سترګو اوښے وینے
چه رحمان وینی دَ یار خندانې زلفې (کو)

(کھ - دوئمه مصرعه له وزنه خارجه ده - کو - وړومبۍ مصرعه کښې دَ "اوښے" تورے په دیوان کښې "اوښکے" لیکلے شوے دے - داغزل هم دَ اطلاعاتو او کلتور دَ خطی کتابتون دَ دوئمې نسخې په حواله رانقل شوے دے -

❀

# ضمیمه

## د (۲)

هغه شعرونه چه دَ کابل ذکر شوی دیوان کښې شته خو زمونږ قلمی نسخو کښې درج نهٔ دی :

| غزل نمبر | شعر نمبر | شعر | حواله |
|---|---|---|---|
| ۱/۱ | لسم شعر | که پیدا که پوشید کا دی که اوسط دی<br>په همه ؤ وقوف دار دے رب زما | دَ نسخے حواله نشته |
| ۲۵/۲۵ | وروستے شعر :<br>(له مقطع اګاهو شعر) | دَ لرم چیچلے خوب کولے نه شی<br>چه خوړلے تور ښامار وی څه به خوب کا | دَ نسخے حواله نشته |
| ۲۶/۲۶ | وروستے شعر | دَ مجاز بندی خو خوب کولے نه شی<br>چه ئے زلفے طوق رسن وی څه به خوب کا | دَ اطلاعاتو او کلتور دَ<br>خطی کتابتون دویمه قلمی نسخه |
| ۴۴/۴۴ | وروستے شعر | که جفا کوے که جور واړه ځائے لری<br>دَ ستا جور و جفا واړه دی منلی ما | دَ نسخے حواله نشته |
| ۴/۵۲ | وروستے شعر<br>(دَ مطلع نه پس شعر) | هومره تاؤ دبیلتانه راباندے زور شی<br>چه حساب ئے بیان نه شی په کتاب | دَ نسخے حواله نشته |
| ۲/۷۱ | قصیده کښے دَ مقطع نه<br>اګاهو دریم شعرونه : | که مے غوا وی که مے وزه وی<br>که مے اس وی که مے خر<br>که مے مینږ وی که مے مږ وی<br>که مے اوښ وی که غاتر<br>که په کور کښے مے کالی وی<br>که لوښګی وی که تبغر | دَ نسخے حواله نشته |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ٣/٧٢ | دَ قصیدې ۷۴ شعر | نه پخلا نه مروړ وی<br>پریشان کړځی در په در | دَ نسخې حواله نشته۔ زموږ متن کښې دَ دې شعر وړومبۍ مصرع دَ ۴۹ شعر دَ دویمې مصرع او دویمه مصرع ئې دَ ۵۰ شعر دَ وړومبۍ مصرع په حیثیت موجوده ده۔ |
| ۴/۹۰ | وروستے شعر | که ته غږ ورباندې وکړې کاربه کیږی<br>مرغاچو به دُر کوهر نه شی هرګز | دواړه مصرعے وړومبے توری دیوان کښې مرغه چیچ لوستلے شوے دے — |
| ۱/۱۰۱ | وړومبی مقطع | رحمان خویش دے دَ خپل یار په دردوغم کښې<br>ته ئے په وائے چه بادشاه دے دَ افاق | دَ نسخې حواله نشته۔ زموږ متن کښې د غزل اتم شعر ملاحظه کړئ۔ |
| ۵/۱۴۲ | شپږم شعر | لکه غم دَ اشنائ په ما وریږی<br>یاد به نه وی د چا هسے کړي باران | دَ نسخې حواله نشته۔ زموږ متن کښې دَ دې غزل څلورم شعر او دَ 'ن' دپټې ۲۷ نوټ ملاحظه کړئ۔ |
| ٦/۱۴٣ | له مقطع نه اګاهو پرله پسې درې شعرونه | شهریان دَ دنیا واړه ګدایان دی<br>زه دَ عشق په اور کښې سوے سرګردان<br>نه مے حال وچا ته ووے چه داخه دی<br>عالم واړه په فکرت تللے حیران<br>دَ عشق اور راباندے بل شه خدائے خبر دے<br>اوس رسوا شوم په عالم کښے چاک ګریوان | دَ اطلاعاتو او کلتور دَ خطی کتابتون دوېمه قلمی نسخه۔ (لکه چه دیوان کښې صراحت شوے دے۔ دا شعرونه دَ دې غزل وزن سره سمون نه خوری) دَ وزن له اعتباره دا شعرونه ۴/۱۴۱، ۵/۱۴۲، ۷/۱۴۴، ۸/۱۴۵ او ۹/۱۴٦ سره مطابقت لری، |

او که دَ "یم" ردیف ورسره اولګی (لکه چه پکار دے) نو بیائے وزن ۲۰/۱٣۵ سوره سم دے۔

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۴/۱۵۲ | ورومبے شعر | هیڅ خبر ئے په هیڅ لوری موندہ نه شی<br>که ئے غواړم شپه او ورځ په سورو پلیو | دَ نسخے حواله نشته۔ زموږ دَمتن ورومبے شعر هم ولولئ۔ |
| ۶/۱۶۲ | اووم شعر | چه دَ مخ دَ آب وتاب ته ئے نظر کړم<br>راته هیڅ شے دَ ګلونو آب و تابه | دَ نسخے حواله نشته۔ |
| ۱۵/۱۷۱ | پنځم شعر | اوس دا استا رضا جفا کړے که وفا کړے<br>دواړه لاس مے اوس ختلی له اختیاره | دَ اطلاعاتو او کلتور دَ خطی کتابتون دوئمه قلمی نسخه۔ (دوئمه مصرع داسے پکار ده: دواړه لاسه مے ختلی الخ) |
| ۱۹/۱۷۵ | اووم او اتم شعرونه | دا مے خپل نصیب طالع دے رارسیږی<br>ګنې غم کله رسیږی له غمخوره<br>قاف تر قافه بادشاهی به ئے روزی شی<br>چه په چا اوشی دا استادَ زلفی سیوره | دَ نسخے حواله نشته۔ |
| ۲۱/۱۷۷ | پنځم، شپږم او اووم شعرونه | مصلے دَ بے ننګی ورپسے لنګ کړه<br>دَ هوس مصلے قت کړه وے نغاړه<br>یاد زمادَ سترګو تور پرِ ګرځید لم<br>په هجران کښے مے دسترګو رڼا لاړه<br>په خواریه موندے نه شی له سکانو<br>په لوخ سر سره دروزی له بکاره | دَ نسخے حواله نشته۔ دَ دریم شعر اخری مصرع په دیوان کښے همدغسے ده لکه چه رانقل شوه۔ |
| ۶۱/۲۱۷ | وروستے شعر | په غفلت به څه امید دَ مرحمت کړے<br>دَ ناسور دَ زخم دوا کوے ترکومه | دَ اطلاعاتو او کلتور دَ خطی کتابتون دوئمه قلمی نسخه۔ |
| ۱۰/۲۴۳ | له وروستی شعره وړاندے : | اعتبار دَ زمانے په اشنا مه کړه<br>همګی واړه دَ خپلو رخنو چور دی | دَ اطلاعاتو او کلتور دَ خطی کتابتون دوئمه قلمی نسخه۔ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۳۱/۲۶۴ | ورو ستے شعر | په خپل حسن باندے مه نازیږه کله<br>دغه رنګ به دِ په دوو ورځو بدل شي | د اطلاعاتو او کلتور دَ خطي کتابتون دوئمه قلمي نسخه ۔ |
| ۸/۲۹۱ | دریم، څلورم، پنځم او شپږم شعرونه | خواست زما قبول کړے اے مالک الملکه<br>ستا دَ اسم اعظم روئے مے دَے دروړے<br>خلاص ئے مه کړه بندیوان یمه دَ چه مرینه<br>چه په غاړه ئے وی ستا دَ مینے پړے<br>همیشه به رنځوړے او ریمن ګرځی<br>چه ئے نهال وی په سینه دَ مینے زړے<br>که ملاح ستا دَ الطاف وی چه ئے خلاص کا<br>ګنه نه شي خلاصیدے دعشق سیند وړے | دَ مُلا بینا نُستر خان جونک |

# ضمیمه

## د (۳)

دا درے شعرونه نه په قلمي نسخو کښے شته او نه دوی مخکښے ذکر شوو چاپي نسخو نه بغیر نورو چاپي نسخو کښے موندے کیږی ۔

| | | | |
|---|---|---|---|
| • | دا زما عاجز امید دے که رب کاندے<br>په قیامت به مے شفیع شي خیر الناسؐ | ۲/۹۲ ورو ستے شعر | په حنائی کاغذ چاپ شوے یوه نسخه چه دیو سرا و بل پاڼے نه لری دکابل دیوان کښے یاده شوے دقصه خوانی چاپي نسخه شاید هم دا ده ۔ |
| • | په جذبه د محبت ے ځان ته راکښه<br>نور حاجت مے په دیدار او دلال نشته | ۴۴/۲۰۰ ورو ستے شعر | دَ پروفیسر سعدی افغاني چاپي نسخه ۔ |

چه سیلاب دَ عاشقۍ وربانده راغے
مخلوقات په مخه لاړل لکه خلی $\frac{۷}{۲۴}$ وروستے شعر دَ پروفیسر سعدی افغانی چاپي نسخه ۔

# ضمیمه د (۴)

## تتمّه

دا شعرونه په مختلفو غزلونو کښے په غلطۍ دَ نقل کولو نه پاتے شوی دی۔ دَ لوستونکو نه دَ معذرت سره ئے دلته راوړو۔

زرغونه کاندی دانه زما دَ عَیش
چه په زړه مے زرغون خیال شی دَ اشنا $\frac{۴۵}{۴۵}$ وروستے شعر

چه دَ سپی اوازئے واورم هسے خوښ شم
لکه څوک په نغمه خوښي وی دَ رباب $\frac{۳}{۵۱}$ وروستے شعر

چه رایاده اشنائی کړم دخپل یار
سر ټکوں په فکر............... (دَ ب نسخه) $\frac{۳}{۵۱}$ دَ وروستی شعر نه اګاهو

په ژړا ژړا تر هسے حده راغے
چه ځان روند کړ په یوسفؑ پسے یعقوبؑ $\frac{۵}{۵۴}$ شپږم شعر

# کتابیات

دَ دیوان دَ متن په سلسله کښې چه د کومو قلمي او چاپي نسخو نه استفاده شوې ده دَ هغو تفصیل دادے:-

(۱) ا: دَ عیدګاه وړومبۍ نسخه - په دوه دفترونو ویشلې شوې ده. وړومبۍ او وروستۍ پاڼې نه لري -

(۲) ب: دَ پښتو اکیډیمۍ پېښور مکمله نسخه - دوه دفتره لري - ډېره خوشخطه ده -

(۳) ج: دَ اکیډیمۍ ناقصه نسخه - چې ډېره بوسیده ده -

(۴) د: دَ اکیډیمۍ نامکمله نسخه -

(۵) ه: دَ بالاماڼۍ نسخه -

(۶) و: دَ عیدګاه دوئمه نسخه چې په سنه ۱۲۷۴ھ کښې لیکلې شوې ده - ۱۵۴ پاڼې لري او اوه وړومبۍ پاڼې شلیدلې دي -

(۷) ز: دَ عیدګاه دریمه نسخه چه د لیک کال ئې معلوم نه دے -

(۸) ح: زړه چاپي نسخه چه دَ ۱۸۹۵ء نه مخکښې چاپ شوې ده -

(۹) ط: دَ برټش میوزیم مائکروفلم چه اصل نسخه ئې سید غلام علي دَ سوات لیکلې ده -

(۱۰) ی: دَ اکیډیمۍ مکمله نسخه چه میاغلي ظهید افریدي اکیډیمۍ ته سوغات کړې وه او تاریخ پرې په شنه روشنائۍ غلط لیکلې شوې دے -

(۱۱) یا: دَ پښتو اکیډیمۍ دَ اول دفتر نسخه -

(۱۲) یب: دَ سرشاه سلیمان د کلکشن دَ نسخې مائکروفلم چه لیکونکے ئې ظاهرالدین دے - او اصل نسخه په سنه ۱۲۸۱ کښې لیکلې شوې ده -

(۱۳) یج: دَ اسلامیه کالج پېښور مکمله قلمي نسخه چه دَ اورینټل لائبریرۍ نمبر ۱۹۳۱ لري -

(۱۴) ید: دَ میاں سناء الدین صاحب کاکاخیل دَ چمن بے نظیر قلمي نسخه -

(۱۵) یه: انتخاب کلامِ شعراء (قلمی) چه دَ پښتو اکیډیمی دَ لائبریری نمبر ۳۱۳ دے۔

(۱۶) یو: دَ ښاغلی طاهر بخاری نسخه چه دَ دفترونو ویش نه لری۔

(۱۷) کرسټو میتهی: برنهارډ ډورن۔ سینټ پیټرز برګ۔ (دا انتخاب دَ رحمان بابا له دوه قلمی نسخو نه شوے دے۔

(۱۸) ګلشن روه: ایچ۔ جی۔ راورټی

(۱۹) کلید افغانی: ریورنډ۔ ټی۔ پی۔ هیوز۔

(۲۰) اوبر داس پښتو: دَ برنهارډ ډورن۔ Ueber Das PUSHTO 1840

(۲۱) دَ ښاغلی عبدالرؤف بینوا چاپ کړے دیوان چه نوټونه کښے ورته دَ کابل چاپی نسخه ټیکلی شوې دی۔

(۲۲) دَ مطبع مرتضائی چاپی نسخه چه دَ اردو ترجمه هم لری۔ په نستعلیق ټیک دوه چاپ شوے ده۔

(۲۳) دَ پروفیسر عبدالمجید افغانی دَ مقدمے سره چاپ شوے دیوان۔

(۲۴) دَ مولینا عبدالقادر مرحوم دَ مقدمے سره چاپ شوے دَ ادارۂ اشاعت سرحد چاپی نسخه۔

(۲۵) دَ مولینا عبدالقادر مرحوم دَ مقدمے سره چاپ شوے دَ پښتو اکیډیمی چاپی دیوان۔

(۲۶) دَ پښتو ټولنے ۱۹۷۷ء چاپ شوے دیوان چه دَ څلورو چاپی او پنځلسو قلمی نسخو نه مرتب شوے دے۔

(۲۷) دَ رحمان ادبی جرګے دَ ۱۹۷۷ء چاپ شوے دیوان۔

(۲۸) په حنائی کاغذ چاپ شوی دَ رحمان بابا دَ دیوان څلور نسخے چه ورومبه او وروستی پاڼے ئے شلیدلی دی۔ یوه نسخه کښے په حاشیه دَ عبدالحمید بابا انتخاب هم لری۔

پشتو

منظوم کلام

شیخ المشائخ

جامع شریعت وطریقت

قطب الاقطاب ولی کامل

**حضرت مولانا غلام ربانیؒ**

نقشبندی مجددی سیدپوری

جامع صاحبزادہ ابوذر غفاری نقشبندی مجددی

ادارہ بلاغ الناس

Also Avilable

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

مُصنّفہ

جامع شریعت وطریقت

سیّدنا حضرت مولانا غُلام ربّانی رحؒ



یکے از مطبوعات پیغام کچہری بازار فیصل آباد

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# ا

۱- له نیستۍ نه د هستۍ صورت پیدا کا — یو-

۲- هم صانع دے د همه وُ مصنوعاتو — یو-

۳- چه ئے هیچرته نه مثل نه مثال شته — یو-

۴- خوانندہ د نام نویسو الخ — ب- خوانندہ د نانوشتو الخ - یج

خوانندہ د نالوستلو — یو-

۵- که ظاهر دے که باطن دے که مابین — ی- یا-

۶- حاجت نه لری د نور چا و یارۍ ته — ب- ط- یا- یب- یه- یو-

حاجت نه لری د بل چا الخ — ی-

۷- څهٔ حاجت دے چه و بل خواته ئے غوارم — ط -

۸- تل تر تله په قرار دے الخ — ب- ط- یا-

۹- خدائے به نه وہ پیدا کړے دا دنیا — یو-

۱۰- که صورت ئے اخرین دے پیدا شوے — ب- ط- ی- یا-

یو- که صورت ئے پیدا شوے اخرین دے — یج -

۱۱- محمدؐ دے د ړندو په لاس عصا — یب

۱۲- که رنها دہ پیروی د محمدؐ دہ — ط- ی- یا- یج- که رنها دہ

خو په څ د محمدؐ دہ — ب -

۱۳- خدائے ئے مہ بولئ الخ — ط- یو- دا شعر ی' کښې نشته

۱۴- که مے نه کا خدائے له دے درہ جدا — ب- ی- یا- یج - یب -

که مے نه کا له دے دره خدائے جدا ــ ط ـ یو ـ

۱۵ـ دا غزل صرف د 'یا' نسخه کښے دے ـ

۱۶ـ عالمان دی روښنائیٔ د دین دُنیا ــ ب ـ یا ـ

۱۷ـ .... غواړی یو خدائے الخ ــ ط ـ

۱۸ـ .... کاهے وی یا لرته الخ ــ یا ـ یو ـ

۱۹ـ هر سړے چه نښه نه لری د علم ــ ی ـ

۲۰ـ زه رحمان د عالمانو خاکِ پا یم ــ و ـ دَ عالمانو خدمتګار یم ــ یا ـ د هر عالم حلقه بګوش یم ــ یب ـ دَ دویمے مصرعے متن دَ ب ـ ط ـ ی ـ یا ـ یه مطابق دے ـ "یو" کښے د 'عالی' په ځائے 'اعلیٰ' دے چه معنوی لحاظ سره مناسبت نهٔ لری ـ ځکه چه اوسط او ادنیٰ سره په تقابل کښے 'عالی' بهتر توری دے ـ

۲۱ـ نن دِ وقت دے الخ ــ ب ـ ی ـ یب ـ

۲۲ـ مرچا نه دے ژوندے کړے ــ ا، ب، و، ز، ی، یا، یج، یو ـ ژوندے کړے په دنیا ــ ب ـ

۲۳ـ څه کوے ثنا ــ یج ـ څرنګه کړے ثنا ــ ب ـ

۲۴ـ ویر ژړلے ارتینے الخ ــ یب ـ یج ـ دویمه مصرع یج کښے داسے ده: "تا ته وائی که پو هیږے داوینا"

۲۵ـ هم په دا کښے الخ ــ ی ـ

۲۶ـ ډیر په بیرته بیرته الخ ــ ب ـ یج ـ

۲۷ـ د عمل په ځائے به دا پښتنه نه شی ــ ب

۲۸ـ په خپل ځان ښیګړه وکړه که دانا یئے ـ ب ـ په خپل ځان ښیګړه وکړه که میړه یئے ــ و ـ ی ـ دویمه مصرع ب ـ و ـ ی کښے داسے ده: "غره مهٔ شه په ښیګړه دَ ادے او دَ ابا" په دے صورت کښے دا مصرع غیر موزونه ده ـ

۲۹- متن دَ ب، ی، یب، یج او یو مطابق دے۔ دوئمه مصرع د، ز، یج کښے داسے ده: "څوک ئے څهٔ کوی الخ"

۳۰- ...... که مے نوم واخست دچا ـ یج۔

۳۱- متن دَ، ب، ز، ی، یب، یج او یو مطابق دے۔

۳۲- دا عیبونه دی همه وارهٔ زما ــ ب۔ ی۔ یو۔

۳۳- راشه مه کړه له هیچا سره جفا ــ دا ژوندون دِ ضائع کیږی بے وفا ــ یا۔

۳۴- په دنیا کښے هیڅوک نهٔ دی پاتو شونی ــ ط۔ ...... پاتے شوی ــ یا۔

۳۵- حکماء: د عربو دا درے سیلابیز توریے "حکماء" رحمان بابا دَ دوه سیلابیز په څیر استعمال کړے دے۔ دَ رحمان بابا نه اکاهو مرزا، دولت او خوشحال خان خټک هم په دے ډول پکارولے دے۔ وګورئ ۱۱: ۴، ۳۳: ۱ او ۱۰۶: ۴
یب کښے دا مصرع په دے صورت کښے هم راغلے ده:
په حکمت ئے پیوند نهٔ کا حکماء
خو دا صورت ئے د قلمی نسخو د اکثریت سره د اختلاف له رویه ترک کړے شو۔

۳۶- ګومان مه کړه چه به ستړکو لرهٔ ورشی۔ ا، ج، و، یج، یو۔

۳۷- دا په هرهٔ ورځ چه خیژی بل بل نمر دے ــ ب۔ ط۔ ی، یو۔
دا په هرهٔ ورځ چه خیژی نوے نمر دے ــ یج۔
دا چه هرهٔ ورځ راخیژی بل بل نمر دے ــ یا۔

۳۸- که جنت په زهد نهٔ دے چا موندلے ــ ب۔ یا۔
که جنت په زهد نهٔ دے بے له فضله ـ ا۔ و۔ دوئمه مصرع یب کښے داسے ده: "هم سرے دِ خپله غارهٔ که ادا"

۳۹- که د نفس دپارهٔ سل حکمته وکړے ــ یج۔

۴۴۰- همم هغه به دِ توښه شی د عقبیٰ - یا-یج -

۴۴۱- د دوزخ دِ تاترمیان به شی دریا - یا - د دوزخ د ستا الخ - یج -

۴۴۲- اشنایان که څوک پوهیږی وقت دادے - یج

۴۴۳- چه ته بد له بله وائے بل له تا - یا -

۴۴۴- نه شکرے په فتنه او په غوغا - ب -

۴۴۵- متن د "یو" مطابق دے - نور قرأتونه دا دی:
نهٔ د غم په خاروخس نهٔ په حلوا - ب، ی، یا
نهٔ د غم په خاوروخس پخه حلوا - یب - یج
نهٔ د غم په پولاؤ ډک نهٔ په حلوا - ز

۴۴۶- پوند بهتر دے چه بےکامه بے زبان وی - ط

۴۴۷- متن دَ ا، و، ه، ط یج مطابق دے - نور قرأتونه دا دی:- که دیو تاله پخوا درشی بهتر دے - یا - دیو که چا لره په خوا ورشی بهتر دے - یا - (نسخه بدل) دیو یا دد که پخوا درشی هغه بهتر دے - ی - دَ دوئیمے مصرعے متن دَ ا، ب، و، ز، ه، ی، یا مطابق دے - 'ط' کښے دوئیمه مصرعه دا سے ده : "خدائے دِ بد سرے ورنهٔ ولی په چا"

۴۴۸- متن دَ و، ط، ی، یا، یب، یج مطابق دے - ب کښے دا شعر دَ دے نه اګاهو دوه شعره او له دے نه پس یو شعر نشته - دوئیمه مصرعه 'یا' کښے دا سے ده: "پوره مهٔ شه الخ"

۴۴۹- چه ښادی ئے یو زمان او غم ئے تل وی - یا - چه خوشی ئے یو زمان وی غم ترتله - ی - چه ښادی ئے یوګړی وی غم تر ډیره - یو - چه ښادی ئے یو زمان وی غم ترتلو - یج دوئیمه مصرعه - دغه هسے چار دِ نهٔ کاندی دانا - یا -

۴۵۰- لکه ځان دے هسے بل وته نظر کړه - ی -

۵۱۔ نهٔ چه نغوته د حرص کا دَ هوا۔ ب، و۔

۵۲۔ څوک فکر ونه د صواب وی څوک خطا۔ یا۔ څوک فکر ونه د صواب دے الخ۔ یج۔ څوک فکر ونه د صواب که څوک خطا۔

۵۳۔ یا۔ یج کښے "څوک عالی دی الخ" راغلے دے۔ وګورئ نوټ ع۲۰

۵۴۔ نهٔ چه مومی نفر ځلے د اغا۔ ط۔ ی۔ نهٔ چه ځلے د نفر مومی امرا۔ و۔ یب نهٔ چه مومی نفر ځلے له امرا۔ یا۔

۵۵۔ زهٔ رحمان به شکایت له هیچا نه کړم۔ نشته دے بل دوست دښمن زمانے ما۔ یا۔ زهٔ رحمان شکر شکایت له هیچا نه کړم۔ نشته بل دوست دښمن زمانے ما۔ و۔ ی۔ یو۔ رحمان شکر شکایت له هیچا نه کړم۔ دویمه مصرع مط متن۔ ط۔ یج۔

۵۶۔ واړه ځینے کاندی بے وفا الخ۔ یج۔ یو۔

۵۷۔ هر څوک چه دعوی په دا دنیا دخپلولی که۔ ب۔ دویمه مصرع 'یو' کښے دا سے ده۔ "واړه غلط وائی الخ"

۵۸۔ دا فلک کلال دے ماتول او سازول کا۔ ب۔ دا فلک کلال دے سازول کا ماتول کا۔ یج۔ دوئیمه مصرع ب کښے دا سے ده "هیرے ماوته پیدا کړه هم فنا"

۵۹۔ وابستګی رحمان بابا(رح) او نورو متقدمینو د څلور سیلابیزپه ځلئے درے سیلابیز صورت کښے استعمال کړے دے۔

۶۰۔ کل که همیشه وی خو هم نه ترابدا۔ و۔ کل که همیشه دے خو هم نهٔ دے ابدا۔ ز۔ کل کهٔ همیشه وی هم څهٔ نه ترابدا۔ ی۔ کل کهٔ همیشه دے هسے نه ترابدا۔ یج۔

۶۱۔ په بنادئ بناد شوے نهٔ یم له هیچا۔ یب۔

۶۲۔ کهٔ زهٔ طمع توقع له هیچا نه کړم۔ یا۔

۶۳۔ په هر لوری رنځوران راته ژړیږی کا۔ ط۔ ی۔ په هر کور کښے رنځوران راته پراته دی۔ ب۔ یا۔ یج۔ دوئمه مصرع 'ب' کښے دا سے ده:۔ "لاس ے نهٔ رسی د هیچا په دُعا"

۶۴۔ متن دَ و، ط، ی، یا، یب مطابق دے۔ دَ ا، ب، ه، یج قرأت دا دے۔

"ما به خوک څهٔ کاندے چه نهٔ لرم دنیا"

۶۵- ب : چه ئے پرخه پوره وی نه نیم کړی - ترهغه اشنا بهتر وی نا اشنا
یا - چه دِ نه پرخه پوره وی نه نیم کړی - ترهغه اشنا بهتر وی نا اشنا
ی - چه ئے نه پرخه پوره وی نه نیم کړی - دوئیمه مصرعه دَ متن مطابق ده -

۶۶- ب - چه هیڅ بنه توښه ئے وځبله نه شی - څوک به څه کوی هغه سره خندا
یا - چه ئے هیڅ بنه توښه وبله نه شی - څوک به څهٔ کاله هغو سره خندا
ی - یج - چه ئے هیڅ بنه توښه وبله نه شی - دوئیمه مصرع د متن مطابق ده -

۶۷- "یا" او "یج" کښے استوګنه ده -

۶۸- دا شعر "یب" نه رانقل شو -

۶۹- تهٔ جورجفا کړے زهٔ ژړا کوم دلبره - ی - دوئیمه مصرع - ستا کهٔ دغه وے دا به هم نه وو زما - ن -

۷۰- رسم دَ بتانو کهٔ هم دادے الخ - یج -

۷۱- دا خصلت چه ستا دے خو هم تل که دغه شان وی - یج -

۷۲- دا شعر صرف دَ "یو" نسخه کښے موندے شو -

۷۳- یو د ستا ما نے شی بل غرور الخ - یج - یو د ستاما نے شه بل غرض الخ - ب -

۷۴- زهٔ خو ئے مجنون کړمه الخ - یج -

۷۵- سپے هم په عذاب دَ جدائی دَ وژلو نهٔ دے - یج - زهٔ خو ګوندے ستا دکوڅے سپے شوم بے نوا - یو -

۷۶- دَ 'یج' متن کښے د دے مصرع قرأت دا دے - "دا زما رضا ده باقی هر چه ستا رضا" دَ یج په حاشیه کښے هغه قرأت هم شته چه موبن متن کښے راوړے دے -

۷۷- په یوه کړی د ستا وی : یا - ه کښے دا شعر نشته -

۷۸- نهٔ نښان لری نهٔ شکل - ط - یو - چه نهٔ شان لری نهٔ شکل - یب نهٔ ئے شان لری الخ - ی -

۷۹- خدائے وریبیش مه کړه رحمانه - ی -

۸۰- ملامت په دنیا مه کړه - یا- دوئیمه مصرعه - واوره واوره داوینا.
ه، یب، یج -

۸۱- که ترسره ئے صدقه کړے - یج - دوئیمه مصرعه ا، ب، یا کښې
داسے ده - " دفع رفع که بلا "

۸۲- بوئ د عود کاندے پیدا - یب

۸۳- که ئے توے کړے په صحرا کښې - ط - ی - یو -

۸۴- څو ژوندے وی په دنیا کښې - ی - یج - څو ژوندے وی په جهان کښې -
ه - ط -

۸۵- هر بخیل د خدائے غلیم دے - ط - ی -

۸۶- طالبان د دنیا ډیر دی - یا - دوئیمه مصرعه - نهٔ ئے مومی څوک له چا - یو

۸۷- دا غیر مطبوعه شعر تېولو قلمی نسخو کښې شته -

۸۸- دنیا بحر ده بهیږی - ب - یج -

۸۹- وفادار لږه وفا شته - ه - یج - وفادار لږه وفا شی - یا

۹۰- چرته خوند کوی د زهرو - ه - یج -

۹۱- هر چه کاندی هغه مومی - ی -

۹۲- لکه دے هسے به پاتې - یج -

۹۳- که دانا ئے وپوهیږی - یا

۹۴- دنیا نهٔ ده واړه دین دے - یب -

۹۵- متن د ط، یب مطابق دے - هم مشغول په پنج بنا - ا، ب، ه،
و، یا، یج، ولاړ وی په پنج بنا - ی -

۹۶- هم په جهر هم په اخفا - و - هم په جهر هم خفیا - ط - یب - هم
ئے جهر هم خفیا - ی - هم په جهر په خفیا - یا - هم په جهر هم
په خفیا - یج -

۹۷- چه بیائے وکه ما - یج -

۹۸- چه ئے مال د دنیا ډیر وی - ه - یج -

۹۹- غیر مطبوعه شعر په ټولو قلمی نسخو کښې شته - د یب قرأت دادے -
"یائے کسب په ریا وی"

۱۰۰- دَ بادشاه وکَ امرا - ب - ط - یب -

۱۰۱- نه ئے ویرۀ شي له خدایه - ط - یب، یج، یو -

۱۰۲- د فرعون په څیر به ناست وی - ا، و، یب، یج - متن دَ ب، ط، ی، یا، یو مطابق دے -

۱۰۳- متن دَ ا ب ھ و ز ط ی یا یب یج یو مطابق دے -

۱۰۴- تولاّ وتمنّا - یج - یو -

۱۰۵- و رحمان ته پیښه مه کړه - یج - دویٔمه مصرعه - ربه هسے رنګ بلا - ی - خدائے دا هسے رنګ بلا - ط - یب - یج -

۱۰۶- ما به صبر ستا په جور جفا وکړ - یا - ما به صبر ستا په جور او جفا وکړ - ی - یب - یو -

بے د ستاله مخه کون وکه مکان دے - یا - و - بے د ستاله مخه کون که مکان دے - یب -

۱۰۷- دویٔمه مصرع 'یج' کښے داسے ده - "ښه توښه ے په دانه شی نه په دا" ښه توښه ے په دا نه شی نه په دا - ھ

۱۰۸- څوے نهٔ دی روح قالب سره جدا - یا - څوے نهٔ دی روح کالبوت وبله جدا - ط -

۱۰۹- لکه ورو ستو مقتدیان امام دَ وړاندے - یا -

۱۱۰- زهٔ ئے وینم درست جهان په تا شیدا دے - که بادشاه دے دَ دے دور که ګدا - یا - دویٔمه مصرعه - که بادشاه دے د دے دهر که ګدا - ھ - ھ کښے وړومبۍ مصرعه دَ متن مطابق ده -

۱۱۱- چه له ما سره وعده وکړے فردا - ی -

۱۱۲- ستاله لوری په ما شوے ده ندا - ط - یا - دلته هم د ذړے املا مطابق "لوری" "لوریه" لوستلے کیدے شی -

۱۱۳- زهٔ په تا باندے میٔن یٔم له اوله - یا -

۱۱۴- چه د ستاد عاشقۍ په تیغ شهید شی - ھ - یا - یج - دویٔمه مصرعه "دَ رحمان به هاله غارۀ شی ادا - ط - یا - دَ رحمان به هله الخ - ی -

۱۱۵- دَ رحمان وَ زیړی رنګ وته نظر کړه - و - یا - دویٔمه مصرعه - "چه

مدام په تا پسے کاندے ژړا "۔ دا مقطع په ط۔ ی۔ یب۔یج او "یو" کښے نشته۔

۱۱۶- متن د ھ، ط۔ ی۔ یج۔ یو مطابق دے۔ نور قرأتونه دادی: "چه وادهٔ کاندی په ډول و په سُرنا" ب۔ چه وادهٔ کاندی په ډول او په سُرنا۔ یا۔

۱۱۷- که مے هرڅو دلبری الخ۔ ط۔

۱۱۸- په یوهٔ کړې مے یارهم مے اشنا شی۔ ب، ھ، و، یب۔

۱۱۹- متن دَ 'ھ' مطابق دے۔ نور قرأتونه دادی: "وا زهٔ خپله تسلی کړم یار بولم۔ ب۔ یا۔ دا خوزهٔ خپل تسلے کړم الخ۔ ط۔ دا خو خپلے تسلے کړمه یار بولم۔ ی۔ وارهٔ خپلے تسلے کړم الخ۔ یب۔یج۔ دوئیمه مصرعه: څه یاری ده د ناتوان و دَ توانا۔ ب۔

۱۲۰- یو زمان او یو دم بے خپله دلبره۔ ط۔یب۔ یو۔ یو زمان او یو ساعت بے خپله یاره۔ ی۔

۱۲۱- ما له عشقه بل هُنر الخ۔ ط۔

۱۲۲- پروانهٔ کړی اوکه وړدے که برنا۔ ی۔ پروانهٔ لری که وړی دِ په رښا۔ یا۔ پروا نهٔ لری که وړے دےکه برنا۔ یج۔

۱۲۳- دَ ا دَ متن قرأت دادے: "چه نما بنام ترستونی تیره کړے الخ"۔ په حاشیه کښے ئے هم هغه قرأت دے، چه دَ قلمی او چاپی نسخو په سند مونږ متن کښے راوړو۔

۱۲۴- لیونے کړے دِ پرحرص ډیرے هوا۔ یج۔

۱۲۵- لوئے کیږے مختورن کړم هم رسوا۔ ب۔ چاپی نسخو کښے دَ "لوئے کیږے" په ځائے "یوے کیږے" راغلے دے۔ د شعر وړومبۍ مصرعه هم چاپی نسخو کښے "تمام عمر تر اشنا تر عزیز یورے" ده چه قلمی نسخے ئے په اتفاق غلطوی۔

۱۲۶- چه په خپلے رسوائۍ ئے پروا نهٔ شی۔ نور به څهٔ کا په جهان دَ چا پروا۔ ن۔

۱۲۷- دا زحمت غواړے له خدایه که دوا۔یج۔

۱۲۸- متن دَ ټولو قلمي نسخو مطابق دے ۔ مطبوعه نسخو کښے وړومبۍ مصرعه داسے ده "دل ودین مے هغه ترکے کړو فدا" چه قافیه غلطوي ۔

۱۲۹- دَ ښائست صفت ئے څهٔ کړم حیرانیږم ۔ ب ۔ دَ ښائست صفت ئے څو وکړم حیران ئم ۔ ط ۔ دَ ښائست صفت ئے څو کړمه حیران ئم ۔ ه ۔ دوئمه مصرعه ط ، یج ' او 'یه' کښے داسے ده "چه هیچ رنګ ئے الخ "

۱۳۰- لکه ذات چه دَ ویښتو نښته په ها ۔ ط ۔ ی ۔

۱۳۱- که ئے مخ په زلفو پټ وی الخ ۔ ا ، ه ۔ ب ۔ ی ۔ یج ۔

۱۳۲- لکه زهٔ یم ستا په غم کښے یک تنها ۔ و ۔ لکه زهٔ دِ تا په غم کښے یم تنها ۔ ی ۔

۱۳۳- زهٔ رحمان نعوذ بالله منها ۔ ا ، ب ، ه ، و ۔

۱۳۴- چه غوړېږ نهٔ باسی دچا په اَو او نا ۔ ط ۔

۱۳۵- یا اسمان دے یا عاشق دے یا اسیا ۔ ب ۔

۱۳۶- تهٔ چه غواړے الخ ۔ ب ۔

۱۳۷ دَ ساقی له لاسه هسے پیاله الخ ۔ ی ۔ یا ۔

۱۳۸- چه ئے کسب عاشقی ده الخ ۔ ی ۔ چه ئے کسب عاشقی شی دَ خوبانو ۔ یه ۔

۱۳۹- دا شعر صرف کرسټو میتهی کښے وموندلے شو ۔

۱۴۰- ښختګان دی په دا غم کښے الخ ۔ یه ۔

۱۴۱- خو هم هومره ئے په نام و ننګ نظر وی ۔ یه ۔ دوئمه مصرعه متن کښے دَ 'یه' مطابق ده ۔ دَ نورو قلمي نسخو قرأت دا دے ۔"چا چه نهٔ وی اوریدلے نام دَ ستا "

۱۴۲- څو په خپلو وینو کل غوندے غرق نهٔ شی ۔ ا ، و ، ی ۔

۱۴۳- صبح وشام په هغو خلقو باندے یو دے ۔ ب ۔ یج ۔

۱۴۴- مستیء ، مستیه : رحمان بابا (او نورو متقدمینو هم) دَ یائے تانیث لرونکو تورو دجمع صیغه یا حرف عامل لرونکے صیغه په دے شکل کښے استعمال کړے ده ۔ یعنی دَ یائے تانیث نه پس ته ورسره یو ه مکسوره یا مفتوحه یَ هم راولی ۔

۱۴۵- بوئے دَ ستا د تورو زلفو الخ ۔ ب ، یب ، یو

۱۴۶۔ دا شعر دَ "ز" پہ سند راوړلے شو۔ چاپي نسخو کښے نشته۔

۱۴۷۔ رحمان تل دُعا سلام پہ هغهٔ وائیم۔ هرچا مالرهٔ راوړی پیغام دَستا ب۔

۱۴۸۔ د دے غزل قافیو کښے دَ یائے معروف او یائے مجهول فرق نهٔ دے ملحوظ ساتلے شوے۔ ځنے پښتانهٔ اوس هم دَ "لوئے" په ځائے "لوی" وائی۔

۱۴۹۔ که لوئ کړے څه بے ځایه لوئ نهٔ کړے۔ یج۔

۱۵۰۔ نو بهار دے عالم سیل دَ بوستان کا۔ ب، یب۔

۱۵۱۔ هم په داسے له چشمانو نو بهیږی۔ ا، و، ی۔ هم په داسے له چشمانو رود بهیږی۔ یج۔

۱۵۲۔ و هغو ته چه څرګند وی الخ۔ یب۔

۱۵۳۔ کهٔ سل ځله ته زما یے الخ۔ ب۔ یب۔

۱۵۴۔ دے غزل کښے دَ وزن ډیرے کمی زیاتی محسوسیږی۔ کومے طاقے مصرے چه دَ یوولسو سیلابو دی نو هغه دَ لس سیلابیزے مطلع دے غزل سره سمون خوری۔ دغسے لس سیلابیزو طاقو مصرعو کښے یوه مصرعه خیف چه اوریده شی لیده نهٔ شی "که داسے اولوستے شی چه وړومبی درے سیلابونه نازورلی او څلورم زورلے وکیښلے شی نو هم مصرعه موزونه شی۔ دغه حال دَ اکثرو مصرعو دے۔ مثلاً دویم شعر کښے "بیا دوباره نهٔ کوری و بل وته" موزونه مصرعه ده۔ دریم شعر کښے طاقه مصرعه کښے "یارے" که درے سیلابیز وکښلے شی نو مصرعه موزونه شی۔ وقس علیٰ هٰذا۔

دَ دے وجه شاید دا هم وی چه دَ رحمان بابا[?] زمانه کښے ځنے هغه سیلابونه زورلی استعمالیدهٔ چه نن ئے مونږ نازورلی ېکاروو۔ او ځنے سیلابونه چه مونږ ئے نن سبا زورلی استعمالوو هغه وخت نازورلی پکاریدهٔ۔ دا غزل بحر کښے هم دے نو شاید چه لهجه کښے دا فرق دَ بحر دَ تتبع وجه وی۔

۱۵۵ حسن و لطافت دے الخ۔ و۔

۱۵۶۔ "بیا دوباره نهٔ کوری و بل و ته" که ولوستلے شی نو وزن ئے برابریږی۔

خودا قرأت ئے یوے قلمی نسخہ کښې هم نشته -

۱۵۷- متن صرف دَ 'ن' مطابق دے - دَ نورو قلمی نسخو قرأت دا دے:
"خدائے زده چه ته یار دَ کوم یوه یئے"

۱۵۸- ما غوندے خاکساره هوادار ستا - ی - یب -

۱۵۹- متن دَ "یو" مطابق دے - نورو قلمی نسخو کښې مصرعه دا سے ده:
"بل کمان په ما بانډ ے ومهٔ کړه"

۱۶۰- متن دَ "یو" مطابق دے - دَ نورو قلمی او چاپی نسخو قرأت بے وزنه دے -

۱۶۱- جَور جفا څوک په بها پیری - ن -

۱۶۲- یو تار که ضائع کیږی ستا دَ زلفو - ا - ب - ی دوئیمه مصرعه "ځان به صدقه کړم په هر تار ستا - ی - یچ -

۱۶۳- دے مصرع کښې یو سیلاب کم دے - دَ 'ب' او "یچ" قرأت دا دے:
"تیر یم زهٔ رحمان له نوره کاره"

۱۶۴- یار دے دا کهٔ د عالم سنګار دے دا - و - یچ -

۱۶۵- خیال دَ زلفوے زما له زړهٔ چاپیر شه - ی خیال دَ زلفو ئے زما تر زړهٔ چاپیر دے - یچ - دوئیمه مصرعه که ترګنجه الخ - یا - یا ترګنجه چاپیر شوے الخ - ی -

۱۶۶- تر عشق زیات (بنه) کار به بل په جهان نهٔ وی - تر همه کارونو زیات بنه کار دے دا - ی - په میاشتو کښې دننه "بنه" زمونږ اضافه ده - دا شعر دَ برټش میوزیم په مائکرو فلمی نسخه ط کښې دا سے دے:

تر عشق واړه کار به بل په جهان نهٔ وی
تر همه کارونو واړه ښکار دنیا

دَ رحمان بابا مطبوعه نسخو کښې دَ یو بل غزل شعر دے: ـه

غوره خط دَ مهرویانو تر خط نشته
که هزار رنګ کتابونه کړے کاتبه ($\frac{14}{160}$)

دَ دے شعر وړومبۍ مصرعه دریو قلمی نسخو کښې دا سے ده:-
واړه خط دَ مهرویانو تر خط نشته

هرڅو که په دے مصرعه د "واړه" مفهوم نه اومهین هم کیدے شي بلکه د برټش میوزیم په نسخه کښے ئے ورته په حاشیه کښے "مهین" لیکلي هم دي ولے د زیر بحث شعر "غوره" د برټش میوزیم په نسخه کښے دَ "واړ" په شکل او دَ ه دَ پښتو دَ شعر په وړومبۍ مصرعه کښے هم دا تورے "واړه" لیکل بے سببه نهٔ ښکاري - دا سے معلومیږي چه دَ رحمان باباً په دور کښے دَ واړ یا واړه معنیٰ هم غوره وه - او اوس دا تورے متروک دے -

۱۶۷- دا شعر صرف دَ "یا" نسخه کښے وموندے شو -

۱۶۸- متن دَ و - ی - مطابق دے - "بل راتله و دے جهان ته الخ "- یج - چاپي نسخو او "ط" ، "یب" کښے مصرعه داسے ده : "بیا راتلۀ دِ دے جهان ته الخ" ا ، ب ، ج ، د ، ه ، ز کښے دا غزل نشته - "یو" کښے صرف دَ دے غزل مطلع دَ یو بل غزل سره راغلے ده -

۱۶۹- دَ وړومبۍ مصرعے متن دَ 'ط' مطابق دے - و ، ی - او چاپي نسخو کښے وړومبۍ مصرعه داسے ده " د حباب عمر دِ ؤکوري چه څه دے " ط کښے دوېمه مصرعه داسے ده : "څوک که شمار کاندي دَ عمر شمار دے دا "

۱۷۰- دَ "اسمان توسن هیچا تیز لے نه دے " - یو -

۱۷۱- هیڅ باور مے دایام الخ - ط -

۱۷۲- هغه چارے چه هرهر ساعت الخ - ب - ط - هغه چار چه یارئے هر ساعت الخ - یو -

۱۷۳- که دَ خاورو په ځائے پریوځم استغنا کا - ب -

۱۷۴- جدائي د خدائے بلا شوه نه پوهیږم - ا - دَ دوېمے مصرے نور قرأت نه دادي : "خوشے ذرهٔ مے په دیدن پسے هلاکه - ب - یب خوشے ذرهٔ مے په دیدن پسے ژړلا کا - و - خوشے ذرهٔ مے په دیدن پسے ویلا کا - ط -

۱۷۵- دا شعر صرف دَ 'ط' په سند رانقل شو -

۱۷۶- که د او رجا مے الخ - ب - یج - یو -

۱۷۷- عاشقي او ننګ و نام دي سره لرے - ط - عاشقي او ننګ و نام دي ځبله لرے - یو -

۱۷۸- دا شعر او د دے نه پس دوه شعرونه صرف د اسلامیه کالج په نسخه "یج" کښے شته۔ نورو ټولو قلمی نسخو کښے دا درے واړه شعرونه نهٔ یافتیږی۔

۱۷۹- چه ځان ستاد درګدا کا۔ ب۔ یب۔ چه دے ستادَ درګدا کا۔ یو۔

۱۸۰- وشاهیه وته شاکا۔ ب۔ یو۔ بادشاهی وته نورشاکا۔ یج۔

۱۸۱- نظر بے دَ ستا له لوریه۔ ب۔ یو۔

۱۸۲- ستا په مهر؛ محبت کښے۔ یب۔ یج۔ یو۔

۱۸۳- متن دَ ا ب و ن ی مطابق دے۔ "د دنیا کور او وګړی" ۔ یج۔

۱۸۴- هره خوا ته چه ستا ځی وی۔ ز۔ یب۔ یو۔ په هرخوا ته چه ستا ځی وی۔ و۔

۱۸۵- له هغو سره جفا کا۔ ب۔ یو۔

۱۸۶- له هغو سره وفا کا۔ یو۔ (ب دا شعر نهٔ لری)

۱۸۷- هسے نه چه یار زما الخ۔ یا۔

۱۸۸- زړهٔ ئے وړے په رضا دے نهٔ په جور۔ ن۔ زړهٔ ئے وړے په احسان دے نهٔ په ظلم۔ و۔ (حاشیه) زړهٔ ئے وړے په احسان دے نهٔ په زور۔ یو۔

۱۸۹- درست جهان دَ خوبرویانو ناز بردار دے۔ و۔ یب۔ یج۔
خلق درست دَ خوبرویانو ناز پرور دے۔ یو۔

۱۹۰- فرښته ئے چه دَ حسن تماشا کا۔ یا۔ دَ 'یا' دَ دے قرأت نه بغیر دلته او نورو ځایونو کښے دَ فرښته، فرشته تورے دَ درے سیلابیز په ځائے دوه سیلابیز شکل کښے استعمال شوے دے۔

۱۹۱- هغه زویه چه هوښیار وی څهٔ به خوب کا۔ و۔ ز۔

۱۹۲- کوم طالب مطلب موندلے الخ۔ یج۔

۱۹۳- دیدن نهٔ دے الخ۔ یا۔

۱۹۴- زهٔ رحمان دَ یار بنده او خدمتکار یم۔ یب۔ زهٔ رحمان دَ یار بندی هم خدمتګار یم۔ دویمه مصرعه 'یو' کښے داسے ده۔ "چه بندی او خدمتګار وی الخ"

۱۹۵ متن دَ هـ، ط، یج مطابق دے۔ نور قرأتونہ دادی: هغه زویه چه مئن وی څه به خوب کا۔ ز۔ هغه زړهٔ چه به مئن وی الخ۔ یو۔ د دویمے مصرے قرأتونہ: چه مجنون غوندے کړمن وی څه به خوب کا۔ ب۔ ی۔ چه فرهاد غوندے کوهکن وی الخ۔ یا۔ چه مجنون غوندے الخ۔ یب۔ دویمه مصرعه نہ کښے د متن مطابق ده۔

-۱۹۶ هر نفس سرے پہ تلهٔ دے له جهانه۔ یو۔ هر نفس ډکو یا تلهٔ دی له جهانه۔ ز۔

-۱۹۷ ځوک چه تړے الخ۔ ا۔ هـ۔ ی۔ هرچه تړے الخ۔ یا۔ دَ اکیډیمی او کابل چاپي نسخو کښے دا شعر نشته۔ ح کښے دَ شعر قرأت دادے: "د اوبو تږی هم خوب کولے نهٔ شی۔ هرچه تږی دَ دیدن الخ"

۱۹۸ ویرومبی مصرعه دَ ا، ی، هـ، ط، یب او دویمه مصرعه دَ او ط ی مطابق ده۔ دَ دواړو مصرعو نور قرأتونہ دادی: خوب خندا له بے غمی کیږی رحمانه۔ ب، ی، یا۔ خوب خندا په بے غمی کیږی رحمانه۔ یو۔ دویمه مصرعه: هرچه تا غوندے غمژن وی څه به خوب کا۔ ب۔ یا۔ یب۔

-۱۹۹ دَ چارپائے په دود بے ځایه محبت کا۔ یا۔

-۲۰۰ کله مدام له خپله نایه محبت کا۔ یا۔ یو۔

-۲۰۱ ټولو قلمی او چاپي نسخو کښے "ریش کنده جامه پاره" ده۔ خوعبدالحمید مومند دا ترکیب داسے استعمال کړے دے:

> ډیرے خره خصی کول وکړه پوره نهٔ شوم
> ریش کندهٔ جامه پاره له لیونتوبه

دَ عبدالحمید مومند تر اوسه معلوم شوی څلورو قلمی نسخو کښے هم دغه قرأت دے۔ کیدے شی چه د کاف عربي او کاف عجمي ترمینځهٔ د فرق نه کولو په وجه دَ رحمان بابا دَ نسخه نویسانو نه دا سهو شوے وی۔

-۲۰۲ دَ بے دردو همرهی به دِ الخ۔ ط۔ یو۔ دَ بے دردو همدمی به دِ په دردکا۔ یا۔

۲۰۳- په مجلس د ویږ ژړلیو ځوک ور مهٔ شه- یج- یو-
په مجلس د ویره ژلیو که څوک ورشی- ط-
په مجلس د ورژلیو څوک ورمه شه- ا ب و ی ("ورژلیو" د زړے املا له لوریه "ویره ژلیو هم لوستے شی) په مجلس د ورژلی څوک ورمهٔ شه- یا (د لته هم دَ زړے املا لحاظ ساتل پکاردی) د وئیمه مصرعه 'یا' کښے د اسے ده: "که صحیح سلامت روغ وی اه سرد کا"

۲۰۴- عاشقان هم دَ دلبرو الخ- یب

۲۰۵- متن دَ ب، ط، ی، یا مطابق دے- نور قرأتونه دادی:
هغه عیش چه بلبلان ئے په گلزار کا- ن- یو- هغه عیش چه ئے بلبله الخ- یج- هغه عیش چه بلبله الخ- ا دَ نسخو دَ اکثریت او دَ "عیش" د کلمے د هغه وخت دَ تلفظ په بنیاد دَ متن شعرته ترجیح ورکړے شوه-

۲۰۶- نیک عمل په بد عمل الخ- ط-

۲۰۷- نقش دَ کورو دَ کور یو دے په معنیٰ کښے- ب-

۲۰۸- متن دَ ط مطابق دے- نور قرأتونه دادی:
"یکانګیه دَ ماښکیانو کله وار کا" یو- یکانګی دَ زړونو کله هلته کار کا- ا، ب، ه، و، ن- دَ چاپی نسخو قرأتونه دادی: "مهانګی دَ زړونو کله هلته کار کا" ح- بیا ملاح دَ زړونو کله هلته کار کا- کابل او اکیډیمی-

۲۰۹- یار دَ ناز له خوبه پاڅی پسے دروهی- ز-

۲۱۰- متن دَ ط، یا مطابق دے- نور قرأتونه دادی:
"بے له تانه مدام سوزی وائے حال دے" ا، ب، و، ی- "هسے سیزی زمازړهٔ دَ یار په غم کښے"- ز- "نیمے شپے ے ترسرویژدی پورے کښینی" یب- نیمے شپے ے ترپوزیه پورے کښینی- یو- ه دا شعر نهٔ لری-

۲۱۱- متن دَ ط، یب، یا، یو مطابق دے- نور قرأتونه دادی:
"د هوښیاری دَ بیخودی یون څرګند دے" ا، ب، ه، و، ی، یج-

"دَ مستئ دَ هوښیارئ احوال څرګند دے"؛ ز - دوئمه مصرعه
پچ کښے داسے ده. "په هرچا کښے چه څهٔ وی هغه اظهار کا"۔

۲۱۲- دا غزل دَ "ط" او "یو" په سند رانقل شو. مطلع کښے عبث "عبس" لیکلے شوے دے۔

۲۱۳- دا شعر ط کښے نشته۔ دَ "یو" په سند رانقل شو۔

۲۱۴- متن د 'یو' مطابق دے۔ دَ 'ط' قرأت دا دے:

هرچه لارئے له اختیاره وی وتلے۔ الخ

۲۱۵- دَ دے دوئمه مصرعه داسے پکار ده: په هنر به کبر نهٔ شی چه ئے نس کا۔ او یا- په هنر په کبر نه چه هر نفس کا۔ بهرکیف شعر لکه څنګه چه دے نهٔ صرف په کرائهٔ معنیٰ ښندی بلکه فنی لحاظ سره هم محل نظر دے۔

۲۱۶- متن دَ 'یو' مطابق دے۔ ط کښے وړومبۍ مصرعه داسے ده:
"د اخلاص نماز ګذارو ...... ب دے" وروستئ حصه ئے نهٔ شی لوستلے کیدے۔

۲۱۷- دَ مقطع مصرعه 'ط' او "یو" دواړو کښے هم داسے ده. پکار ده چه داسے ولوستلے شی: "سیاست به ئے تهٔ څهٔ کوے رحمانه" او یا "چه خودبین وی نهٔ ئے څهٔ کوے رحمانه"

۲۱۸- دَ اوبو په ځخ دَ کرښے بقا نهٔ وی - ز۔

۲۱۹- متن دَ ج، و، ز، یو مطابق دے۔ ب، یب کښے دَ "وړوکی" په ځائے "وړوکے" او ط، ی، یج کښے "اوړکے" لیکلے شوے دے۔ دَ چاپی نسخو "پاره نان" یوے قلمی نسخه کښے هم نشته۔

۲۲۰- د دنیا دَ دین نسبت ځبله نشته - ط - دَ دنیا د دین نسبت خو وبله نشته - یو۔

۲۲۱- دا شعر صرف 'ط' کښے وموندے شو۔

۲۲۲- متن دَ ا، و، ن، یو- مطابق دے. نور قرأتونه دا دی:
لکه چشم و ګوش په کار کښے سره بیل دی - ن - لکه چشم و ګوش په کار کښے ځبله بیل دی - ط - دوئمه مصرعه "یو" کښے داسے ده.
"هسے دین او دنیا حکم ځان په ځان کا"؛ ب دا شعر نهٔ لری۔

۲۲۳- دا غزل دَ 'ط'، 'یو' په سند رانقل شو۔

۲۲۴- متن د 'ط' مطابق دے۔ دَ 'یو' قرأت دا دے: "په کشور دَ صابرانو به قیامت شی"

۲۲۵- که دَ باد گذر ئے وشی خاک پلے ته۔ یو۔

۲۲۶- متن د 'یو' مطابق دے۔ په دیدن به هندوان واړه مسلمان کا۔ ط۔

۲۲۷- چاپی نسخو او 'یج' کښے دَ "ولو" په ځائے "ابرو" دے۔

۲۲۸- دَ عاشق د سینے چاک به ورښکاره شی۔ ی۔ یه۔

۲۲۹- زه که مړک غواړم بے یاره کوم سے مه کړه۔ ب۔ یو۔

۲۳۰- ورځ چه بده شی عاشق او دانا خه کا۔ یا۔

۲۳۱- چه بد بخت وی ادے څه کا ابا څه کا۔ ب۔ چه بد بخت شی مور پر څه کا ابا څه کا۔ و۔

۲۳۲- په ښیرو په دُعانهٔ شی الخ۔ یا۔

۲۳۳- واړه جور دَ دے دهرے قبول دے۔ یب۔ یج۔

۲۳۴- دا دنیا په احمقانو دکه ودانه۔ ب۔

۲۳۵- دا شعر صرف دَ 'یو' په سند رانقل شو۔ دا غزل دغه نسخه کښے دوه ځل راغلے دے۔ یو ځل بغیر د دے شعره او بل ځل د دے شعر سره۔

۲۳۶- متن دَ ی، یب، یج، یو (دوه ځل) مطابق دے۔ نور قرأتونه دا دی: گدائی که و درپیښیږی ځائے ئے دا دے۔ ب۔ ځائے لری که به له تخته اړتاویږی۔ ن۔

۲۳۷- دا شعر او دَ دے نه پس دوه نور شعرونه د اسلامیه کالج د قلمی نسخے "یج" نه بغیر بلے یوے قلمی نسخه کښے ونهٔ موندے شو۔

۲۳۸- دَ دے شعر په دویمه مصرعه کښے دَ "دوانهٔ کا" په ځائے "روانهٔ کا" زیات مناسب ښکاری۔ خو په ټولو قلمی نسخو کښے هم "دوانهٔ کا" راغلے دے۔ دَ "یو" دَ نسخے یو قرأت کښے "نکاه نهٔ کا" هم شته۔

۲۳۹- متن دَ و، ی، یب مطابق دے۔ نور قرأتونه دا دی: که اغیار سے تر دا میانه پیدا نهٔ کا۔ ب۔ یج۔ که اغیار مو تر دا میانه پیدا نهٔ کا۔ ز۔ که اغیار ے خدائے تر میانه پیدا نهٔ کا۔ یو۔

۲۴۰۔ یار له هیچاسره مهر وفا نهٔ کا۔ ز۔ ی۔ یب

۲۴۱۔ چه قبول به د غه عذر زما نهٔ کا۔ ی۔

۲۴۲۔ لکه سروے له خزانه الخ۔ ا۔ و۔ ز۔

۲۴۳۔ که رحمان په عاشقی، ارام غواړی۔ یج۔

۲۴۴۔ که سړے د خپلے پوهے الخ۔ ط۔ ی۔ یب۔ یج۔ که سړے په خپلے پوهے الخ۔ ز۔ یو۔

۲۴۵۔ خواه ناخواه به د تقدیر کښلی ورپیښ شی۔ یج۔

۲۴۶۔ دَ هغو چه بخت بیدار شی الخ۔ ط۔ ی۔ یب۔ یج۔ یو۔ دویمه مصرعه 'یج' کښے داسے ده۔ "که هیچرے بیدار نهٔ وی شبګیر نهٔ کا۔"

۲۴۷۔ دا له خپلے کم فهمیه مونږ څه وایو۔ ط۔ ی۔ یب۔ یج۔ دویمه مصرعه 'یج' کښے داسے ده "چه فلانا سړے تالاش په تدبیر نهٔ کا" نورو قلمی نسخو کښے دا مصرعه په په دے شان لیکلے شوے ده۔ "چه فلانا سړے تالاش تدبیر نهٔ کا" د زړے املا له رویه د دے دا قرأت هم کیدے شی "چه فلانا سړے تالاشه تدبیر نهٔ کا" دَ 'ی' قرأت دادے "چه فلانا سړے تالاشو تدبیر نهٔ کا" د دے قرأت کښے "تالاشو" د زړے املا له رویه هم "تالاشه" او هم "تالاش و" لوستلے کیدے شی۔

۲۴۸۔ دا نفس په مثال برق صورت فانوس شه۔ ط۔

۲۴۹۔ دَ دنیا سړی هم وارهٔ درمانده دی۔ یج۔

۲۵۰۔ کوم وادهٔ او کوم کوږدن ده په جهان کښے۔ ب۔ "کوم واده کومه کوږدن ده په دنیا کښے" ط۔

۲۵۱۔ چه د پلار وئیل په زویو تاثیر نهٔ کا۔ و۔ ی۔ یب۔

۲۵۲۔ هسے چارے له ناصحو واقع کیږی۔ و۔ ی۔ یج۔ یو۔ هسے جور له ناصحه واقع کیږی۔ ط۔

۲۵۳۔ کامرانی راځنے غواړی الخ۔ ا۔

۲۵۴۔ متن دَ ا، و، ی، یب، یو مطابق دے۔ "یج" دا شعر نهٔ لری۔ دَ "یو" قرأت دادے "دَ کوم اس په کام کښے دخل نکام نهٔ کا۔" دَ ب، ز

قرأت کښې د متن د "لغام" په ځائې لګام دے۔

۲۵۵۔ سالک ځکه نیت الخ۔ ب۔ سالک ځکه قصد الخ۔ یج۔ ید۔

۲۵۶۔ په بادی النظر کښې شعر څۀ معنیٰ نه ښندی خو بے معنیٰ نۀ دے۔

۲۵۷۔ رحمان هسے وخپل یار ته بے حجت یم۔ ب۔

۲۵۸۔ متن دَ یب مطابق دے۔ نورو قلمی نسخو کښې دا مصرعه دا سے ده "نۀ کړو هیڅ ډی په ژړا سره اشنا زما "۔ [ب، ه، و، ز، ط۔ ی،]۔ ا کښې د دے غزل وروستی درے شعره راغلی دی۔

۲۵۹۔ ستا دَ غوږ لائقه نۀ کیږی وینا زما۔ ه، یج۔ لا دَ غوږ لائقت نۀ کنهی الخ۔ ب۔ لا لائقه دَ غوږ نۀ کنهی الخ۔ ط۔ لا دَ غوږ لائقه نۀ کنهی الخ۔ یب۔ لا لائق د غوږو نه کنهی الخ۔ یو۔ متن دَ ی، یا مطابق دے۔

۲۶۰۔ په نارو مے به بیدار الخ۔ ی۔ یا۔ په نارو به مے بیدار الخ۔ ط۔

۲۶۱۔ کښت دَ عشق په تاوده زمکه اسان چړ دے۔ ط۔ زینت دَ عشق په تاوده زمکه اسان چړې دے۔ ب۔ کښت دَ عشق په تاوده زمکه اسان چړے دے۔ ی۔ یا۔ کښت د عشق په تاوده زمکه اسان نۀ دے۔ یج۔

۲۶۲۔ متن د "یو" مطابق دے۔ نور ټول قرأتونه بے وزنه دی مثلاً: "زۀ رحمان بے له خپله یاره نور څۀ نۀ غوارم"۔ ب، یج۔ زۀ رحمان بے خپله یاره نور څۀ نۀ غوایم۔ ی۔ یا رحمان بے له خپله یاره نور څۀ نۀ غوارم۔ یب

۲۶۳۔ دا د اسلامیه کالج 'یج' دَ نسخے قرأت دے۔ نور ټول قرأتونه غیر موزون دی۔ دے قرأت کښې که په دویمه مصرعه کښې دَ "وائی" په ځائې "ووائی" شی نو مصرعه به په خفیف ترین تصرف موزونه شی۔ دے ټول غزل کښې یو خصوصیت دا هم دے چه دَ ردیف 'زما' په دواړه شکله یعنی په یو سیلابیز او دوه سیلابیز صورت کښې په لوستلو وزن نۀ مجروحیږی۔

۲۶۴- سر زما درګاه دَ هغه یار عزیز- یب- یج -

۲۶۵- ما چې عاشقیه نور څۀ زده نۀ دی- یب هر چه دے هم دا دے کاروبار زما- یب- یو-

۲۶۶- بیل وبله نۀ کا الخ- ز- یج- دے غزل کښې 'یو' څلور شعرونه (مطلع مقطع او دوه نور شعرونه) زیاتی راوړی دی- چه موږ متن کښې دَ دوئمې مطلع، وړومبی مقطع او دَ وړومبی او دوئم شعر په طور راوړی دی-

۲۶۷- ستا له محبته جار واته زما دروغ دی- یب-یج- ستا له محبته جار واته زما غلط دی- یو-

۲۶۸- خوب دَ همسایۀ په نارو الخ- یو- دَ 'ب' قرأت کښې د آخری کلمې "شه" په ځائے "شي" دے-

۲۶۹- درست جهان که وارۀ مارحمان وته دلبر شي - یو-

۲۷۰- بے له تا دَ زړۀ ارام کړم الخ- ی- یج-

۲۷۱- د اکثرو نسخو دغه قرأت دے- کوم قرأتونه چه له دے نه مختلف دی هغه ټول بے وزنه دی- البته د پښتو اکیډیمی دَ "انتخاب شعراء" (ربه) قرأت دا دے "نور مے هیڅ شه دلته بل مقام زما" لیکن د دے قرأت په حق کښې د قلمی نسخو نه هیڅ مدد نۀ موندۀ کیږی- شاید چه "دلیو ته" چه موږ دَ 'یو' د قرأت مطابق "دے وته" لیکلے دے، دَ "دے نه پورته" یا "دے له هورته" وران شوے شکل وی-

۲۷۲- متن دَ یب، یه، یو مطابق دے- د نورو قلمی نسخو قرأتونه غیرموزون دی-

۲۷۳- دا شعر له وزنه خارج دے- دوه متبادل صورتونه ئے کیدے شی- اول دا چه د موجوده شکل په ځائے "پیر زما شیخان زما" ولوستلے او دوئم دا چه "دا پیران شیخان زما" وګڼلے شی- وړومبے صورت ئے دَ غزل دَ عام ساخت مطابق دے ځکه چه په ټولو شعرونو کښې "زما" په تکرار راغلے دے- دَ کابل نسخه کښې "دا پیران شیخان زما" نقل شوے دے- ځنې نورے مطبوعه نسخې هم دغه قرأت لری- دَ

اکیډیمۍ ورډومبۍ قلمي نسخه (ب) او د اسلامیه کالج قلمي نسخه
کې دا شعر نه لري. کومو نسخو کښې چه دا شعر شته نو هم په
دې شکل لکه چه متن کښې راوړے شوے دے.

۲۷۴- دا شعر لکه چه متن کښې رانقل شو بے وزنه دے. دَ ښاغلي بېنوا
نسخه کښې دا شعر په دے صورت دے:

وصل هم هجران زما اے رحمانه خیر دے

اے رحمانه خیر دے وصل هم هجران زما

لکه چه په (۲۷۳) کښې ووئیل شو. د دے غزل عام ساخت دا دے چه
پکښې دَ "زما" تکرار په هره مصرعه کښې دے. په دے بنیاد دَ
ښاغلي بېنوا قرأت د غزل عام ساخت سره سمون نهٔ خوری. البته که
دا شعر داسے ووئیل شي "وصل زما هجران زما الخ" نو دا اعتراض به
پرے نهٔ واردیږی. ټولو قلمي نسخو کښې شعر د متن مطابق دے.

۲۷۵- دَ دے غزل مطلع د پنځم شعر طاقه مصرعه او ټولے جفتے مصرعے
(دَ شعرونو دوئیمے مصرعے) دَ وزن نه پریوځی او عجیبه خبره دا ده
چه ټولے قلمي نسخے هم دغه غیرموزون قرأت لري. ښاغلي بېنوا په
خپله نسخه کښې حسبِ معمول بغیر د څهٔ حوالے دا قرأت ورکړے
دے:

ستا په څیره نهٔ دی خوبان لیدلی ما نهٔ په غوږ دو چرے اوریدلی ما
هیڅ وفا له عاشقانو سره نهٔ کا دلبران دی وارهٔ ازمائیلی ما
چه مے ستا ونکلی مخ ته دی کتلی بل یو مخ ته نهٔ دی بیا کتلی ما
دَ زړهٔ غولے مے نیولے ستا غمونو نور غمونه دی له زړهٔ ویستلی ما
چه مے کار دَ عاشقۍ په لاس کښې واخست دی له بله کاره لاس وکښلی ما
نور غمونه مے له زړهٔ نه دی وتلی ستا غمونه پکښې دی کرلی ما

زهٔ رحمان بے یاره خوب خندا نهٔ کړم
بے دهٔ نهٔ ده خوب خندا پسند لی ما

دَ پښتو اکیډیمۍ مطبوعه نسخه کښې هم شاید چه دَ بېنوا په تتبع
کښې هم دغه قرأت راوړے شوے دے. او متاسفانه پښتو اکیډیمۍ

هم څهٔ حواله نهٔ ده ورکړے -

که صرف دَ بے وزنه مصرعو دَ "تهذیب" خبره وی نو شاید چه دے لاندے لیکلو قرأتونو کښے دَ قلمی نسخو سره د مطابقت زیات امکانات وی -

ا - نورخوبان مے ستا په ځیرنهٔ دی لیدلی　　نهٔ لیدلی نهٔ په غوږ واوریدلی
هیڅ وفا دَ عاشقانو سره نه کا　　دلبران دَ زمانے مے ازمائیلی
چه مے ستا وښکلی مخ وته نظر شه　　نوربیانهٔ دی وبل مخ ته ما کتلی
دَ زړهٔ غوٹے مے ینولے ستا غمونو　　نورغمونه له خاطره ما ویستلی
چه مے کار دَ عاشقۍ په لاسو واخست　　نورکارونه مے له لاسو اچولی
هم په داے نورغمونه له زړهٔ وویست　　چه په زړهٔ مے ستا غمونه دی کرلی

زهٔ رحمان بے یاره خوب وخندا نهٔ کړم
خوب خندا بے یاره کله ما پسند لی

ب - نورخوبان ستا په ځیرنهٔ دی مالیدلی　　نهٔ لیدلی نهٔ په غوږ ما اوریدلی
هیڅ وفا دَ عاشقانو سره نهٔ کا　　دلبران دَ زمانے ما ازمائیلی
چه مے ستا وښکلی مخ وته نظر شه　　نوربیانهٔ دی وبل مخ ته ما کتلی
دَ زړهٔ غوٹے مے ینولے ستا غمونو　　نورغمونه له خاطره ما یستلی
چه مے کار دَ عاشقۍ په لاسو واخست　　نورکارونه دی له لاس ما اچولی
هم په داے نورغمونه له زړهٔ وویست　　چه په زړهٔ کښے ستا غمونه ما کرلی

زهٔ رحمان بے یاره خوب وخندا نهٔ کړم
خوب خندا بے یاره کله ما پسند لی

ج - نورخوبان دَ ستا په ځیرونهٔ لیدل ما　　نهٔ مے ولید نهٔ په غوږ و واوریدل ما
هیڅ وفا دَ عاشقانو سره نهٔ کا　　دلبران دَ زمانے که وزمائل ما
چه مے ستا وښکلی مخ وته نظرشه　　نوربیا کله وبل مخ وته کتل ما
دَ زړهٔ غوٹے مے ینولے ستا غمونو　　نورغمونه له خاطره وویستل ما
چه مے کار دَ عاشقۍ په لاس اخستے　　نورکارونه ټول له لاسو واچول ما
هم په داے نورغمونه له زړهٔ وویست　　چه په زړهٔ کښے ستا غمونه وکرل ما
زهٔ رحمان بے یاره خوب وخندا نهٔ کړم　　خوب خندا بے یاره کله لا پسندل ما

۲۷۶- چه ئې نقش په زړهٔ خال شي دَ اشنا- ب -ی-

۲۷۷- پس له مرګ به ئې دَ تيغ په شان الخ -يج -

۲۷۸- په اسمان د اشنائۍ ئې مکان بويه -يو -

۲۷۹- دا شعر صرف "يو" رادړے دے-

۲۸۰- ب دا شعر نهٔ لري- وړومبۍ مصرعه دَ يج په حاشيه دا سے ده: نهٔ بل خوک زما طبيب نهٔ مے اشنا شته- دويمه مصرعه ی او يج کښې دا سے ده: "نهٔ بل خوک به په مثال الخ"

۲۸۱- چاپي نسخو کښې وړومبۍ مصرعه دا سے ده: عاشقۍ مے په زړهٔ وکړلو ګذر بيا- دَ 'ح' قرأت دا دے: "عاشقۍ مے په زړهٔ وکړه ګذر بيا"- ټولے قلمي نسخے دَ متن مطابق دی- 'يو' کښې دَ مقطع نه بغير ټول غزل په بدل بحر په دے ترتيب دے: مطلع-

عاشقۍ مے په زړهٔ وکړ اثر بيا
بيلتانهٔ مے اوکړ پورے په سر بيا

نورے بدے مصرعے: "ما به ستاله غمه وران کړ دفتر بيا" "بيلتانهٔ کړه راته جمع لښکر بيا" "که مے صورت کړ خدائے پيدا په محشر بيا" "چه مے وليده په سترګو بشر بيا" "خدائے وما ته خرګند کړ هغه نمر بيا" اووم او اتم شعر 'يو' کښې نشته-

۲۸۲- ما يه ستاله لاسه الخ - ی-

۲۸۳- مالا نوم د اشنائۍ اخستے نهٔ وو - ی- يج- يو-

۲۸۴- پس له مرګه به ئې بيا تي تا الخ - ب ط ی يج - پس له مرګه به ئې بيا په تا الخ - يا- پس له مرګه به ئې بيا زهٔ ورقربان کړم - يو-

۲۸۵- خدائے وما وته څرګند کړ الخ- ط - ی -يج -

۲۸۶- متن دَ و ط ی مطابق دے- خدائے دِ خير کا چه لا وکا بل نظر بيا- ب- هو- "ترو ئې ګوره که وکا بل نظر بيا" يا- يب- خدائے زده کله به لا وکا بل نظر بيا- يج-

۲۸۷- هغو بيا موند الخ - ی- يا- يج - يو- دَ دويمے مصرعے متن دَ ا، ط، ی، يا، يب، يج او يو مطابق دے- نور قرأتونه دا دی: "چه ئې وکړ

عبادت په دا دنیا " ب - چې ئې وکړ قناعت په دا دنیا - و -

۲۸۸ - د "سلیمان" درے سیلابیز تورے رحمان بابا او نورو متقدمینو په دوه سیلابیز صورت استعمال کړے دے -

۲۸۹ - په دنیا کښې لوټ هغو زلمیو وکړ - ب - په دنیا کښې کټه هغو خلقو وکړه - یو -

۲۹۰ - تر هغه به نادان بل په جهان نه وی - یا -

۲۹۱ - په ی ، ل کښې دا مصرعه داسے ده - "دا فلک به ئې په خپل وَ رنګ روان کا" دَ 'یو' قرأت دا دے : دا فلک به ئې په سر کا کونډے ماته -

۲۹۲ - په روانو اوبو راشه الخ - ط - ی - یا - یو - دا شعر 'ب' کښې نشته -

۲۹۳ - دَ ط ، یا قرأت دا دے : "هم هغه به خردمند وی پس له مرګه "

۲۹۴ - په قیامت کښې بنه توښه حُبله نه شی - و - ط - یب - په قیامت کښې بنه توښه هم حُبله نهٔ شی - ی -

۲۹۵ - نیک عمل حضور جنت دے طالع کوره - یا - نیک عمل حضور جنت دے طاعت بویه - یب - و - (متن) دَ 'و' حاشیه زمونږ دَ متن مطابق ده -

۲۹۶ - متن دَ ط - ی مطابق دے - نور قرأتونه دا دی : "نیک عمل و نیک کردار و نیک خویونه - هـ - یج - نیک کردار و نیک عمل او نیک خویونه - یو - نیک کردار هم نیک عمل هم نیک خویونه - و - اوب یا کښې دا شعر نشته -

۲۹۷ - چې ئې وکړ سکونت په دا دنیا - ب - ی - یو - چې ئې وکړ قناعت الخ - یا - چې ئې ورک کړ الخ - یج -

۲۹۸ - که تمامه دنیا وارهٔ سره یو سے - ب -

۲۹۹ - که څهٔ مرد دے خو هغه دے په جهان کښې - ب - "که څهٔ مرد دے الخ" ی - یو - که څهٔ مرد وی خو هغه وی په دنیا کښې " یا -

۳۰۰ - چه رغبت ئې دَ جهله بلاؤ سر دے - ب - یا -

۳۰۱ - روښنائی په هغو خلقو ده حرامه - ب -

۳۰۲ - متن دیج مطابق دے - نور قرأتونه دا دی : "پیروی ده (جزؤا دریځ) چه

ئے اهل د دنیا کاند" - ب - پوچ کوئی دہ چہ ئے اهل دنیا کاندے -
یا - پوچ کوئی دہ چہ ئے اهل د دنیا کاندے - ی - پوچ کوئی دے چہ
ئے اهل دنیا کاندے - یو -

۳۰۳ هر بیمار لرہ دارو شتہ پہ دنیا کښے - یا -

۳۰۴ - متن دَ و، ط، یب، یج او یو مطابق دے - نورو قرأتونہ دادی: دَ هر
سوی علاج وشی پہ دنیا کښے - ب - دَ هر سوی علاج شتہ دے پہ دنیا کښے -
یا - دا شعر 'ی' کښے نشتہ -

۳۰۵ - دا شعر صرف "ی" کښے دے -

۳۰۶ - هر چہ اچوے د اور تہ وارہ ددومی - ب - هر چہ اچوے و اور تہ
وارہ سوزی - و یو -

۳۰۷ - گرفتار ئے هم وارہ پہ غم ډوب وی - ب - گرفتار ئے همیشہ پہ غم
کښے غرق وی - ی - یا - یو -

۳۰۸ - چہ اسیر وی پہ کردار د دے د دنیا - ب - چہ اسیر وی پہ گفتار الخ -
ط - ی - یا - یب، یج - یو

۳۰۹ - دا شعر ا، ب، و، ط، ی، یا، یب، یج، یو کښے و موندے شو -

۳۱۰ - تن ئے پاتو شی بے سرہ سرئے ولاړ شی - ط -

۳۱۱ - وارہ غم دے کہ ئے پیرے کہ ئے پلورے - ط - یا -

۳۱۲ - فروشندہ رحمان بابا" پہ درے سیلابیز صورت کښے استعمال کړے دے -

۳۱۳ - هغہ نہ ئے کا کاروبار دَ دے دنیا - یا -

۳۱۴ - دا شعر ا، و، ز، ط، ی، یا، یب، یج - یو - او کرستو میتھی نہ رانقل شو -

۳۱۵ - لوئے هلک ئے هم وارہ گرفتار دی - یا -

۳۱۶ - 'یا' کښے دَ "بنیبنہ" پہ ځائے "دشنہ" یا "رشتہ" داسے لیکلے
شوے دے لکہ چہ اول بنیبنہ لیکلے شوے او بیا "صحیح" کړے شوے
وی -

۳۱۷ - بے مقراض ئے غوخوی دَ سړی عمر - یا - پہ مقراض ئے الخ - ی -

۳۱۸ - عاقبت بہ خو یو الخ - یب -

۳۱۹ - هم دنیا او هم دینار دَ دے دنیا - ھ - هم درم و هم دینار د دے دنیا - ب - یو

۳۲۰- نن قیامت به دغه لس او دغه شل وی- ط- ی-

۳۲۱- یو فساد به ئے رحمانه بیان نهٔ کړے- یا- یو فساد به ئے بیان نهٔ شی رحمانه- یو-

# ب

۱- دا ستا مینه محبت کړه- ز-

۲- زهٔ ئے پریښودم نائب- یو- نورو قلمی نسخو کښے "پریښوم" لیکلے شوے دے چه "پریښودم" او "پریښومه" دواړه لوستلے شی-

۳- متن دَ ا، ه، ی، یب، یج او 'یو' مطابق دے- دَ ب، و قرأت دادے: "لاس د ستا په مینه الخ"

۴- داخوب نهٔ دے خومنزل دے دَ سیلاب- ی-

۵- متن (وړومبے مصرعه) دَ ا، ه، و، ط، ی، یج، یو مطابق دے- نور قرأتونه دادی: "چه ے خال د ستا د وروځو ترمیان ولید"- ب- یب- "ما چه خال دَ تورو وروځو ترمیان ولید"- یا- دَ دویمے مصرعے متن دَ ا، ه، ط، و، یب، یو مطابق دے- د نورو قلمی نسخو قرأت په دا ډول دے- "نهٔ په هسے رنګ امام شته نهٔ محراب"- ب- "نهٔ په بل رنګه امام شته نهٔ محراب"- ی- "نهٔ به بل هسے محراب وی نهٔ امام"- یا- نهٔ بل هسے رنګ امام دے نهٔ محراب- یج-

۶- مخ د ستا له شرمه نغاړی په نقاب- یا-

۷- حجاب واخله تورکړه مخ الخ- ط- یو-

۸- هسے نه چه زهٔ دلبر وتاته وائم- یا- متن د قلمی نسخو دَ اکثریت مطابق دے-

۹- ستا دَ حسن حساب هیڅ راشخه نهٔ شی- ز- یج- چاپی نسخے-

۱۰- بے رحمانه چه ئے کړے دا کتاب- ط- یو- متن دَ نورو قلمی نسخو او 'ح' مطابق دے- دَ کابل دَ چاپی نسخے "بے رحمانه چه ئے وکړو دا کتاب" او دَ اکیډیمۍ د چاپی نسخے "بے رحمانه چه ئے جوړ کړو دا کتاب" د پاره د قلمی نسخو نه هیڅ سند وند نهٔ موندے شو-

۱۱- دا شعر دَ 'ط' او 'یو' په سند واخستے شو۔ دَ دوئیمے مصرعے متن دَ 'ط' او 'یو' دَ بیل بیل قرأت نه اخذ شوے دے۔ دَ 'ط' قرأت دا دے: "په لستونی ے گرد باد وی تل داراب" دَ 'یو' نسخه کښے دا مصرعه په دے شکل لیکلے شوے ده۔ "یو لستونے ے گرداب وی پل گرداب" موږ د "یو" دَ وړومبی "گرداب" په ځائے دَ 'ط' قرأت کښے دَ "گردباد" کلمه وتکوله۔

۱۲- متن دَ ا ب ه و ز ط ی یب او یو مطابق دے۔

۱۳- دَ رحمان غزل تمام دے انتخاب۔ ط۔یو۔ دے غزل کښے دَ 'یب' نسخے یو نا مکمل شعر دَ وروستی شعر په ډول په دے شکل رانقل کړے دے:

چه رایاده اشنائی کړم دَ خپل یار
سر نکون په فکر . . . . . . . . .

موږ دا شعر متن کښے ځائے نهٔ کړو۔ خو ضمیمه کښے مو راوستو۔

۱۴- څلورم ئے یوساقی د څنګه ناست وی۔ ی۔یب۔

۱۵- چه دا هسے دلبری پراش نه کا۔ ز۔ی۔

۱۶- دا شعر صرف "یب" نه رانقل شو۔ نورے نسخے دا شعر نهٔ لری۔

۱۷- که قادرشی په بنیسبنه اوپه شراب۔ ز

۱۸- زهٔ رحمان لرغیرة زهد ته پناه غواړم۔ ب۔ دوئیمه مصرعه: "دا غیر زهد هم عذاب دے هم عتاب" ب۔ "دَ ریازهد عذاب دے هم عقاب۔ ط

۱۹- پکښے غواړم خال وخط دَ خپل محبوب۔ ب۔یا۔ید۔

۲۰- په خندا خندا ځان اچوم و اور ته۔ط۔ی۔یو۔ په خندا خندا ځان اچوی بل اور ته۔ ه۔

۲۱- له دے غمه ټولاړ شی زړهٔ راځنه ډوب۔ ط۔یو۔

۲۲- دا خو عشق دے چه اسان ئے کړه عاشق ته۔یا۔ دوئیمه مصرعه: "دا مشکل حکایتونه الخ"۔ ب۔

۲۳- "عشق دا سے معشوقه شوه الخ"۔ ب۔ دوئیمه مصرعه: "نهٔ رخسار

دَ مهرویانو په اسلوب". ا.

۲۴- چه نظر ئے له صورته په معنیٰ شی - یو- چه نظر ئے له صورته په معنیٰ کړ - و- دویمه مصرعه: و رحمان و ته یکسان شی زشت و خوب - یو.

۲۵- راځرکند دے سود او زیان دَ رقیبانو- ط- ی- "زهٔ هیڅ نهٔ لرم پروا دَ رقیبانو" یا- راته هیڅ دے سود او زیان دَ رقیبانو- یو- دویمه مصرعه: خدائے دِ نهٔ کاندی خپل یار زمارقیب- ط- ی- یا "که خدائے نه کاندے خپل یار دَ چارقیب"- ا، ب- ه- و-

۲۶- دښمن هم دسری دوست شی کله کله - ی- دښمن هم دسړی کله کله یار شی - یا.

## ت

۱- نهٔ ئے هیچرے تغیر و نهٔ تبدیل وی- ی- یه-

۲- کهٔ یو دم شی هغه یار ورځنے لرے - یا- یه.

۳- دوزخ هم عرته جلوه ده دجنت - یو-

۴- نهٔ په پښوَ ریاضت نهٔ دیانت - ب- "نهٔ په پښو دَ ریاضت دَ دیانت" یب - یه- یو-

۵- چه موقوف وی هغه کار په قیامت- ه-

۶- دَ عاشق خاطر له غیره - ی- دویمه مصرعه: د دریا په مخکښے نهٔ وی نجاست- ط- یو- دَ دریاب په مخکښے نهٔ وی فراغت - ب-

۷- دا شعر صرف د "یه" د حاشیے په سند را نقل شو-

۸- "خدائے په زړهٔ دَ مطلوب الخ - ا- ب- ه- و-

۹- بیا به نهٔ ځم له دے دره په حیات- ی- یو-

۱۰- په دا در کښے کهٔ حیات یم که ممات- ی- یا- یه-

۱۱- "ترما لا په دلبرانو ډیر میئن دے" هم لوستلے شی- ځکه زړے املا کښے دَ معروفے او مجهولے 'ی' فرق نهٔ وو-

۱۲- په ورځ پند و نصیحت و بل ته وائی- یب

۱۳- پر راالوتی مرغان د مخلوقات - ه - پر راالوتی وحشیان ومخلوقات - ی -

## ش

۱- سرو ماں دواړه زما د دل آرام ته - ز- سرو مال زما همه و دل آرام ته - ید -

۲- په حملو حملو ئے زړۀ راخخه یوړه - ز-

۳- بیلتانهٔ دا پیښور رابانده اورکړ - ب - بے له تا ئے پیښور راته تنور کړ - ید - دویمه مصرعه : "ترخیبوره تراتکه الغیاث" ب، ز، ط، ی، یب، یو او چاپی نسخه ح

۴- دا شعر او له دے نه پس تر دوه شعرونه یوه قلمی نسخه کښے هم نشته دَ ح ، کابل او اکیډیمی د چاپی نسخو نه رانقل شو -

۵- د کابل او اکیډیمی چاپی نسخو کښے دَ "کاسه نسکوره" په ځائے "پیاله نسکوره" ده - متن دَ قلمی نسخو او دَ 'ح' دچاپی نسخے مطابق دے - ا کښے دَ "ناګهان" په ځائے "ناګها" دے -

۶- متن دَ ا ب وی یب یو مطابق دے -

۷- په حکمت په عقل پیتے دَ عشق اخستے څوک نهٔ شی - ا - ب - دا مصرعه 'و' کښے غیر موزونه په دے شکل راغلے ده : "په عقل په حکمت پیتے دَ عشق اخستے نهٔ شی"

۸- "ما رحمان وصال دَ یار الخ" - ی - یو -

۹- چه اغازه ے کړه مدحه دَ خوبانو - ی - یا - یو -

۱۰- په ثنا دَ دلپسندو دلبرانو - یا - دویمه مصرعه : ا ه وی کښے داسے ده - "دلپسنده دلربا دے دا حدیث "

۱۱- دَ غونډ ژبیو شاعرانو له خولے نهٔ دے - ط - ی - یو -

## ج

۱- حکیمان ئے درمانده شی له علاج - ب - حکیمان ئے درمانده وی الخ و - ید -

۲- په اشنا پسې ے تل له دواړو سترګو- ط، ی، ید، یو

۳- که ئې سرلکه منصور هسې په دار شي- طی یب ید یو

# ح

۱- ستا وصال دے راپستلے زما روح- ب- ز- دوئیمه مصرعه : "ستا هجران دے راینولے زما روح"- ا و یب-

۲- چه هرګز ملک الموت پرخبر نهٔ دے. ز-

۳- ستا په لوری الوتلے الخ- ی- ستا په لوری دے الوتلے الخ- یو-

۴- چه ئې خاورے کړه صورت هم ستا په در کښې- ی- چه ئې خاورے کړه صورت دِ تا په در کښې- یو-

۵- متن دَ و، ط، یب، یو مطابق دے- نور قرأتونه دا دی:
چه په څرنګ دے تا وکښلے زما روح- ا- ی- چه ئې څه رنګ دے وکښلے زما روح- ز- چه په څه رنګ دِ یستلے زما روح- ب-

۶- ستا د حسن وافتاب ترځان سپارم په تبسّم کښې- ز- ط- ی-

۷- ستا دَ خ دَ ایښے له برکته زما روحه- ی- دوئیمه مصرعه: "همیشه لکه طوطی هسې ګریان الخ" ب- ط-

۸- منتظر دِ دَ وصال دګلستان دے تل ترتله- ب- منتظر دِ دَ وصال دَ وصال تل ترتله ئیمه- یو- دوئیمه مصرعه 'و' کښې داسې ده: "سرترپایه دَ شبنم په څیر روښان دے زما روح"

۹- چه حاصل ئې ستا دَ حسن الخ- ی- یو "چه حاصل ئې ستا له حسنه الخ" ب- یب-

# خ

۱- چه ے درسته ورځ ئې الخ- و- چه ے درسته ورځ ونهٔ لیده دِ تا مخ- ید- چه ے درسته ورځ ونه لید دَ اشنا مخ- یو- دَ مطلع نه پس شعر چه "اشنا" قافیه لری په ا او 'یو' کښې نشته-

۲- ډیر محونه دَ جفا دِ راښکاره کړه- ز- دوئیمه مصرعه "لا به کله راښکاره

کړے الخ" ز- یب-

۳- څو دَ مرګ په تماچه دِ ویښتے نهٔ دے - ید- دوئمه مصرعه: اوښتونے خلائے له تا مهٔ کړه زما مخ - ید- اوښتونے له تانهٔ دے دا زما مخ - ا- و-

۴- که موندے شوے بل د تا په څیر زیبا مخ- یو- کهٔ مونده شوے ستا په څیر بل زیبا مخ- ز- ی- که مونده شوے بل دَ ستا غوندے زیبا مخ - ید-

۵- په جنت کښے دِ راوښو دَ بلا مخ- ز- یب- تا راوښو په جنت کښے دَ بلا مخ- ا-

۶- دا شعر یوه قلمی نسخه کښے هم نشته-

۷- رحمان ستا په مخ داورانه دنیا کورم - ب- دوئمه مصرعه: خدائے بے تا ورځرګند مهٔ کړه الخ"- ی-

۸- "بے دَستا له مخه نورے هیڅ الخ" ا-

۹- متن دَ 'ز' مطابق دے- بل قرأت دا دے: "شکر چه ئے خلاص کړم دَ نور نعلقَ /خلقو له منته- اب و ط ی یب یو- دَ اکثریت قرأت مصرعه کښے دَ دروندوالی له کبله نظرانداز کړے شو-

۱۰- هره خوا چه دروم زهٔ رحمان دَ زړهٔ په سیل- ا، ب، و، ز، هره خوا چه دروم زهٔ رحمان دَ زړهٔ په خلے - ی

۱۱- متن دَ 'یا' مطابق دے- نور قرأتونه دا دی: "لکه کږے زلفے کږ ابرو دَ ستا دی"- ا- یب- و- "کږے زلفے کږ ابروئے لکه چه ستا دی"- ز- ی- ح- "لکه کږے زلفے کږ ابروئے چه دستا دی"- ب- "لکه کږ ابروئے کږ زلفے دستا دی"- ط- "لکه کږے زلفے ستا کږ ابروئے ستا دی"- ه- "لکه کږ ابرو کږ زلفے دا ستا دی"- یو-

۱۲- ډیرغموږنه شوخ شته په دا جهان کښے - ب-

۱۳- کمه بنه نه دے انسان دا هسے شوخ - ی-

۱۴- دا فتنے دا فسادونه به په څه وو- و-

۱۵- دَ اشنا له غمه زړهٔ د اشنا چوی - و- دا اشنا له هجره زړهٔ دَ اشنا نه چوی- یب

دویمه مصرعه: راپیدا کړه خدائے جهان دا هسے شوخ - یو۔

۱۶- "چه یوسف ئے دَ دنیا په متاع ورکړ"- ا، ب، ز، یب- چه یوسف به دَ دنیا په طمع پرولی - ی- متن دَ ط، یو مطابق دے - 'و' کښے دا شعر نشته۔

۱۷- چه بوسه له یاره غواړی له ادبه - و۔

## د

۱- بادشاهانو چه قصر ونړ کړه اباد - ب۔

۲- "یو" (عدد) باندے چه حرف عامل "دَ" راشی نو دَ "یوه" صورت اختیار کړی - دا گرامری التزام زمونږ ټولو کلاسیکی شاعرانو ساتلے دے - دویمه مصرعه ز، ی، ط کښے داسے ده "لکه نوم دے دَ مجنون او دَ فرهاد"۔

۳- دغه واړه کرامت د عاشقی دے - ی - یا - یب۔

۴- څوک به څهٔ کا په دا چارو اعتقاد - ز۔

۵- لکه سیورے دَ افتاب په مخکښے کرځی - ب۔

۶- کهٔ جمشید وو کهٔ بهمن که کیقباد - ط - ی - یو۔

۷- کهٔ جمشید وو کهٔ بهمن کهٔ کیقباد وو - ی - کهٔ جمشید وو که بهمن وو که هامان وو - یو۔

۸- نهٔ ئے ختم نهٔ دعا ورپسے وکړه - ب۔

۹- آبروئی دَ طالبانو خپل مطلب وی - ا، و، یا - ابروئی د طالبانو خپل مطلوب دے - یو۔

۱۰- "دکه نے چه سر بلند وی الخ"- ی - "لکه مے چه سربلند وی الخ"- ط - دے دواړو نسخو کښے دَ 'لکه' او 'مے' تر منځه دَ "یار" توریے پاتے شوے ښکاری۔

۱۱- لکه یار چه مے خرکند دے په دا دور کښے - ط - ی۔

۱۲- لکه څوند کوی زما خوږدے خبرے - یب۔

۱۳- حلوایانو شخه نشته هغه قند- ط- ی- یو-

۱۴- په اشعار کښې مرې نے لګه مزرے یم- یا- په اشعار کښې قوت ناکه تر مزری یم- یو-

۱۵- بے له عشقه که مے عیب که مے هنر دے- ب- ی- یا- یب- یو- دویمه مصرعه 'یا' کښې دا سے ده: "ماله ځانه غورځولے بل پیوند"-

۱۶- ستا په عشق کښې چه څوک ماته نصیحت کا- ز- چه وماته نصیحت کاندے په عشق کښې- یا-

۱۷- هر سړے چه ائینه په مخ کښې خاندی- ی-
هر سړے چه ائینه په لاس کا خاندی- ط- یو-

۱۸- کهٔ قاصد ئے که مقصود- ی-

۱۹- و بیستی وته جلوه کا- ط- واسطے وته جلوه کا- یو (حاشیه کښې ئے دَ واسطے معنیٰ 'سبب' لیکلے دے)- ز-

۲۰- متعبد او مشغول اوسه- ا، ب، ه، و (حاشیه)- (دَ 'و' متن کښې مقید لیکلے شوے دے-) صبح و شام مشغوله وسه- ز

۲۱- که بیدار شے خود به اورے- ط- کهٔ بیدار شے خو به واورے- یا- دَ دویمے مصرعے مختلف قرأتونه دا دی: "په هرلوری دا زود زود"- ز- "له هرلوری دا سرود"- ط-

۲۲- چه سپند نه شی په اور کښې- ب- دویمه مصرعه "یو" کښې دا سے ده: "نه وی خوند او بوئ دَ عود"

۲۳- ځان له غشه پاکیزه کا- ا-

## ډ

۱- دا شعر دَ 'ط' او 'یو' په سند رانقل شو-

۲- زهٔ په وصل کښې هجران دا هسے خوار کړم- یو- زهٔ په وصل کښې هجران هسے کنهمه- ی- وروستی کلمه "بیخمه" ځنو نسخو (مثلاً ا، ب، و، ز) کښې "پیخمه" هم لوستے شی-

۳- دَ دیدن په ګدائئ کښې مے ننګ نشته- ب- ز- دویمه مصرعه

'ط' او 'ی' کښې داسې دهٔ: درویز کریم دَ بتانو په دربار کښې۔

۴۔ دا شعر صرف "ط" او "یو" کښې وموندے شو۔

۵۔ هیڅ بنده به دَ خدائے نهٔ وو په دا کار کښې۔ ز۔ یب۔

۶۔ زهٔ رحمان ئے له فردوسه فراغت کړم۔ ط۔

# س

۱۔ دا یو ښائسته ابرو دی۔ ز

۲۔ دا څهٔ سیب دَ زنخدان دے۔ ج۔ و۔

۳۔ دا ئے څهٔ قد و قامت دے۔ ی۔ط۔ دا څهٔ قد و قامت دے۔ و

۴۔ چه هم ګنج دے هم ګوهر۔ یو۔

۵۔ بیائے ونهٔ ښو ومانهٔ۔ ط۔

۶۔ عاشقی مے شوه خرګنده۔ ط۔ یو۔

۷۔ چه جهان شه راخبر۔ ب۔ یو۔

۸۔ که مے لعل دے که ګوهر۔ ز۔ که مے اس دے که مے خر۔ یو
که مے دُر که مے ګوهر۔ ج۔ ط۔ یب۔

۹۔ زهٔ رحمان ترسره تیر یم۔ یب۔

۱۰۔ په نظر مے معلومیږی۔ ی

۱۱۔ متن دَ ط، یب، یو مطابق دے۔ نور قراُتونه دادی:
"نهٔ په بد وئیل زهیر دے"۔ و۔ "نهٔ په بد دَ چا رضا وی"۔ ز۔
"نهٔ په بد وئیل رهیږی"۔ ب (دا زهیریږی پکار دے)۔ "نه په وئیل
زهیریږی"۔ هـ۔ "نهٔ په بد وئیل زهیریږی"۔ یا۔

۱۲۔ "لکه ړوند او کوڼ چه ګرځی"۔ ی۔ "لکه ړوند او کوڼ چه ګوری"۔ یو۔
"لکه ړوند کوڼ چه ګوری"۔ ب۔ "لکه ړوند و کوڼ وګورے / وګوری"۔
هـ۔ "لکه ړوند و کوڼ چه ګورے / ګوری۔ و۔

۱۳۔ "له ګناهه له طاعته"۔ ز۔ ط۔ ی۔ یو۔ دوئمه مصرعه: "خبر څهٔ وی
څناور" ط۔ یو۔

۱۴۔ یائے خوب وی یائے خور"۔ یا۔

۱۵- په دنيا پسے ابتر- ه -

۱۶- هغه قد دِ مجنون ځئ شو- ز- دويمه مصرعه دَ و، ز، ی، ط، يو مطابق ده- بل قرأت دا دے: "چه چنار وو يا نښتر -ده- يا- يب- دا شعر په 'ب' کښې او دا تموله قصيده په الکښې نشته-

۱۷- نهٔ ترس شي په زړهٔ کښے- نهٔ خواريه دَ محشر- يب-

۱۸- عبادت دِ په رياشه- و- ط- ی- يو-

۱۹- لکه قلپ ناکره مهر- ز- يا- لکه قلپ ناکاره مهر- يب-

۲۰- لکه پټ وی په ميوه کښے- دويمه مصرعه: سل اغزی دی دَشجر- ز-

۲۱- سحرګر يا جادوګر- ز-

۲۲- ميان خالی دی/وی/دے تن پرور- ب- ز- ميان خالی وی تن پرور- و- يو-

۲۳- لکه زړے په دانه کښے- يب-

۲۴- لکه لاسی (لاس وی) بے لستونی- سرترپائے وپائے ترسر- يو-

۲۵- لکه ډاک (؟) او دغاباز وی- يا- دويمه مصرعه: په مرغونو کښے ذکر- ز- ی- پر مرغونو الخ- ط-

۲۶- تر ميزره لاندے چا زده- ی-

۲۷- نهٔ ئے حُسن نهٔ زينت وی- يا-

۲۸- ويره کوړه له فريبيانو- ز- ی- هے هے هسے فريبيانو- و- هے هے له هسے فريبيانو- ب- هے توبه له فريبيانو- ه-

۲۹- نيم په سر وی لکه نغر- ب- نيم په سردے لکه نغر- وروستی کلمه ب، و، ز، ط او يو کښے "نغر" يا "نفر" ليکلے شوے ده-

۳۰- په زړهٔ تور لکه تبيه- ی- يا- يو

۳۱- وچے شونډے ليمهٔ تر- ب- دا مصرعه دَ $\frac{۲}{۷۱}$ دَ دريم شعر دويمه مصرعه ده- زَ کښے دَ "خپسر" په ځائے "خپل ځان" راغلے دے-

۳۲- په مثال د منافق وی- يا-

۳۳- کوئ په کويه در په در- ب، ه، و، ز، يو-

۳۴- هم په شپه ئے رفت آمد وی- ز- ی- همیشه ئے آمد رفت وی- یو-

۳۵- متن دَ ب ه و یا یب مطابق دے- نور قرأتونه دادی:
"کاه خوړکی کا لکه خر"- ز- ط- کوه خوری کا لکه خر- ی-
کاه خوری کا لکه خر- یو-

۳۶- خو تپوڼه ئے وه په سر- ز-

۳۷- نور ئے ملک شۀ مسخر- یو-

۳۸- وار په وار ئے ترتیغ تیر کړه- ط- ی-

۳۹- تمامی جهان ئے ونغړ- ب- ی- یا-

۴۰- هم دارا و هم سکندر- ط-

۴۱- رتا ورځ ورځنې لاړه- ه- بارے ورځ ورځنے لاړه- ب-

۴۲- نهٔ ئے یخ کړخپل خاطر- ب- نهٔ ئے یخ کړخپل ځیګر- یا-

۴۳- لکه عین یو دروېزګر- ب- یا- لکه عینِ درویزګر- ی- یو

۴۴- بے بالښته بے بستر- ه- بے بالینه بے بستر- ی-

۴۵- نهٔ پوزے شه تر ملا لاندے- ط- یو-

۴۶- دَ وړې په خس الخ- یب-

۴۷- دَ سیلاب په مخکښے ولاړ شه- ط-

۴۸- حق تعالیٰ به دَ وزن په مناسبت "حق تالا" لوستلے شي- کیدے شي
چه دا ترکیب "حق تعال" وی-

۴۹- دَ جنت له خوشبویونو- ز-

۵۰- وخوړ دهٔ هغه د فتن- ز-

۵۱- دور تیر شه دَ دیګر- ز- ی-

۵۲- چه عاشور شي که اختر- ب- ی- یا-

۵۳- ګهے تریخ شي لکه زهر- ب-

۵۴- هر چه وشو هغه وشو- ب- چه څه وشو هغه وشو- ی- دوئیمه
مصرعه: لا به کیږی مقرر- ی-

۵۵- دا بیان دور و دراز دے- یو- دوئیمه مصرعه: رحمان وکښه
مختصر- ز-

۵۶- دَ هغو دَخنګه مهٔ کښینه زړهٔ ور - ب - ز - یا - دَ هغه دَخنګه الخ - ز

۵۷- زندګی که بے اوبۀ بے اوره نهٔ شی - ز - دویمه مصرعه : اور هم هیچا
پښے نهٔ دے په تېتر - ز - یب - تل هم نهٔ دی پښے هیچا په تیتر - یا

۵۸- که په قطع ئے اوبه وی دَ کوثر - ط - یو -

۵۹- چه په کیږه دِ خرخیږی مځ ئے تورشه - ز - یو - "چه په کیږه دِ خرخیږی
رنګ ئے ورک شه - ی - یب - دَ 'و' متن کښے "مځ ئے ورک شه" او
حاشیه کښے "مځ تورشه" دے - دویمه مصرعه 'ه' کښے داسے ده :
"کهٔ دَ سرو زروچاړهٔ وی که خنجر"

۶۰- ناکرده سودونه دیو دی په جهان کښے - ب ، ه ، و ، یب -

۶۱- و اوبو و ته خپل ځان اچاوه نه شی - ز -

۶۲- فیض دوه سیلابیز شکل کښے استعمال شوے دے - او ټولو قلمی
نسخو کښے هم دغسے دے -

۶۳- په هرکاه چه ته غالب ئے دے مغلوب وی - ی - په هرکارچه دے
مغلوب الخ - ب - ز -

۶۴- یا خو دا چه که قدم ئے په درکیږدے - دغه پس ئے په ځان وکښه پړ - یو -

۶۵- بول وکړم دَ رحمان په دا هنر - ب - یا - یب - بول ئے وکړم زهٔ رحمان په
دا هنر - یو - بوله کړے دے رحمان دهغه (دغه) هنر - ه

۶۶- نمر سپوږمی ئے په فلک دیاسه غورزی - ط - نمرسپوږمی په
پالنګ دپاسه بوښی - یب - نمرسپوږمی ہے په پالنګ دَ پاسه
رغړی - یو - دویمه مصرعه : چه ئے یار په پالنګ وکوی سر - ط - یو -

۶۷- بل مذکور دَ سخن کویو ستړکو نهٔ زده - ز -

۶۸- که سل ځله پټ دَ شونډو لاندے خاندے /خاندی - ط - دویمه
مصرعه : نهٔ پټیږی اب دَ لعل دَ کوهر - ب - ز -

۶۹- پس له دے بهرهٔ په نام ځښته بولم - ا - پس له دے به ئے په نام د فرښتو
بولم - یو -

۷۰- که رحمان صاحب نظر بالاشی ځر شو - ز -

۷۱- هسے سرے اوبنے الخ - ا - ه - هسے اوبنے ہے الخ - ب - (دا غزل

ب کښې دوه ځل راغلې دے یو ځل مطلع د متن مطابق ده او بل ځل دغسې لکه چه ولیکلې شوه -)

۷۲- دا دَ یار بیمارے سترګے الخ - ز -

۷۳- سرو قد دے زما یار هم دغه دار - ز -

۷۴- هومره جوړ لکه یار راسره کاندے - ز - ط - ی -

۷۵- متن دَ 'ط' مطابق دے - اوله مصرعه په یب ، یا او دَ 'ب' یو قرأت کښې او دویمه مصرعه ی کښې دَ متن مطابق ده - نور بدل قرأتونه دا دی : دلبری خو کوډګری کوړے به وکا - ی - خوبروی بے دلبری څهٔ پکار نهٔ ده - ز - دویمه مصرعه : "هغه وایه چه خوبروشی هم دلدار - ز - وایه دا چه هم دلبرشی هم دلدار - ب - یا - هغه وایه چه دلبرشی هم دلدار - یب -

۷۶- چه دَ زړونو له نمانځلو بے پروا وی - ا - ب - یا - چه دَ زړونو په ساتنه نهٔ پوهیږی - ب (دویم قرأت)

۷۷- چه له سترګو ئے دَ اوښیو الخ - ط - یو - په ګریبان ئے تل الخ - و

۷۸- ز کښې دا شعر داسے دے : دا دنیا په مثال پول دے که باور کړے
کړے نهٔ دے چا په پول باندے اقرار

ا ، ط ، یا ، یو کښې دَ دویمے مصرعے "پول" "پل" لیکلې شوے دے . دَ دے توری یو قرأت "پله" هم کیدے شی - او هرکله چه دا قرأت د پښتو محاورے سره سم دے ځکه متن کښې "پله" راوړے شو - دَ بینوا نسخه کښې هم پله دے - تل وړومبے دَ دروستی پول دے پورے تیریږی - ا ، ب ، ه ، و ، ط ، ی ، یا ، یب ، یو -

۷۹- هسے نه چه زهٔ وتاو ته دا وایم - ب - هسے نه چه زهٔ یوائے تاته وایم - ه - دویمه مصرعه ز کښې داسے ده : لاړه راغله ستا الخ -

۸۰- دعوئ مهٔ کړه په ناحقه به خپل نهٔ کړے - یب - دعوئ مهٔ کړه په تحقیق به ئے خپل نهٔ کړے - ط - یو - دویمه مصرعه : پردے بنهر پردے ملک دَ چا دیار - ی -

۸۱- هغه نهٔ لری هیڅ واک هم اختیار - ی - هغه نهٔ لری هیڅ واک و اختیار - ه -

هغه نه لری هیڅ واک و هیڅ اختیار- یو

۸۲- که هزار قسمه خوری په معامله کینے- ی-

۸۳- چه پیدا شی همه واړه بیا فنا شی- یا-

۸۴- که جنت په زهد نهٔ دے چا موندلے- ب-

۸۵- متن دَ ط، ی، یا او یب مطابق دے- نور قرأتونه دادی:
که مونده شوے خوشبوی په خوشبوی کینے- ا- که مونده شوے خوشبوی په خوش خوی کینے- ه- که څهٔ نهٔ وے فائده په خوشبوی کینے- ز- که مونده شوے خوشبوی بے خوشبوئیه- یب-
دویَمه مصرعه یب کینے داسے ده: "پروت به نهٔ وو په چندن باندے ښامار".

۸۶- که درم لرم په کور کینے که دینار- یا-

۸۷- زهٔ درم او دینار نهٔ لرم په کور کینے- یا-

۸۸- هم په دا چه نهٔ له ځایه چرته دروم- ب- یا- هم په دا چه زهٔ له ځایه چرته نهٔ ځم- یو-

۸۹- نهٔ خبریږم په یمین او په یسار- یو-

۹۰- په خپل کور کینے مے سکون دے هم قرار- ط- په خپل کور کینے مے سکوت دے هم قرار- یو-

۹۱- لکه ونه مستقیم په خپل مکان وی- ه-

۹۲- توکل مے لاس سرهٔ کړی په نکریزو- یو-

۹۳- چه زما په باب دی کینلی رارسیږی- ز- چه زما په باب ئے کینلی رارسیږی- ی-

۹۴- مربی مے هغه پاک پروردګار- ی-

۹۵- هیڅ موقوف نهٔ دے زما په اختیار- ب- و- ز- یا- هیڅ موقوف نهٔ دے دَ چا په انتظار- ه-

۹۶- کار به هیچرے ونه کا په دنیا کینے- ز- دویَمه مصرعه: کهٔ خوکیږی الخ- و- ز-

۹۷- دویَمه مصرعه ط، ی او یو کینے دلسے ده: دغه ګنج دے دغه مار-

۹۸- دغه گل دے دغه خار- ی-

۹۹- دوئمه مصرعه: دغه یار دے دا اغیار- ی. دغه گل دے دغه خار- یو.

۱۰۰- دغه عشق دے دغه عقل- ب-و- دوئمه مصرعه: دغه غم دغه غم خوار- ب-

۱۰۱- نهٔ حلال دے نهٔ مردار- ب-

۱۰۲-۱۰۳- ب، ز، ی، یا کښے دَ "وی" په ځائے "دے" لیکلے شوے دے-

۱۰۴- محتاجی هسے بلا ده په جهان کښے- یو- احتیاج هسے بلا دے په جهان کښے- ب-ی- احتیاج هسے بلا ده په دنیا کښے- یه- دوئمه مصرعه ا کښے دا سے ده: چه پلار زویه که دَ زویه زویه پلار-

۱۰۵- که د پیر په خپل مرید باندے غرض شی- یو- دا شعر په چاپی نسخو کښے نشته-

۱۰۶- دا شعر دَ بیتوا چاپی نسخه کښے نشته-

۱۰۷- په ساعت کښے گدا ئے شه کا شاه گدائے کا- ز-

۱۰۸- چه قادر نهٔ په دینار نهٔ په درم وی- ط-

۱۰۹- له احوالے هیڅوک نهٔ دی خبردار- ا، ز، ی-

۱۱۰- کهٔ دَ عشق لاره اغزی لری هرکور- ی- که دَ عشق لارے اغزنے دی هرکور- یا- که اغزی دَ عاشقۍ په لار دی زور- یا

۱۱۱- کهٔ دیدن دَ یار موندهٔ په انتظار شی- ب- که دیدن دَ گل عذار په انتظار شی- و- که دیدن دیار موندهٔ په اختیار شی- ه- که دیدن دِ د گلزار په انتظار وی- ط-یو- که دیدن دَ گلرخانو دِ پکار وی- ز- او دَ دے نسخے دوئمه مصرعه داسے ده: خپلے سترگے کره شبنم غوندے څلور- ز-

۱۱۲- دَ بازا خبره نهٔ شی الخ- ب- دا غزل 'ب' کښے دوه ځل بیل بیل شان راغلے دے

۱۱۳- راحت نهٔ دے بے زحمته چا موندلے- یا-

۱۱۴- رحمان هسے په خپل یار پسے غوخ دے- ی- یب-

۱۱۵- دَ دے غزل مطلع مختلفو نسخو کښے په مختلفو شکلونو رانقل شوے ده- پس له مرگه ارت څوکښے خپل کور- ط-یو- که حق وائم هومره ارت ئے

بویه کور۔ ط۔ که حق وائم الخ۔ یو۔ پس له مرګه ارت څو کښې خپل
کور۔ یب۔ که حق وائم هومره ارت ئې بویه کور۔ یب۔
"څو کښې" او "څوکښې" باید چه څوکښې وی لکه دَ دوو نورو تلو نکو
قرأتونو لید ه شی۔
ز: پس له مرګه به ارت څو کښې خپل کور که حق وائم هومره ارت کنه لږ کور
ی: پس له مرګه ارت به څو کښې خپل کور که حق وائم هومره ارت بویه کور

۱۱۶- ترځان کمه زیاته چار الخ۔ ز۔

۱۱۷- چه جامه دَ چا وږده کا یا کوتاهه۔ ط۔ چه جامه دَ چا وږده شی یا کوتاهه۔ یو۔

۱۱۸- ملامت پر وایه کیږی لور دَ لور۔ ا۔ و۔ ز۔ ی۔

۱۱۹- هر هم جنس له خپل هم جنسه سره خوښ وی۔ ا۔ هر هم جنس له خپل هم جنسه سره زیب کا۔ ز۔ هر هم جنس له خپل هم جنسه سره ساز وی۔ ی۔

۱۲۰- نابینا په خپله خونه کښې بینا وی۔ بینایان په پردی ملک کښې شمکور۔ ز۔

۱۲۱- دا شعر دَ بینوا او 'ح' چاپی نسخو کښې نشته۔ دَ اکیډیمۍ دَ نسخې قرأت دا دے: که ته نهٔ ئې بدکرداره بد لمنه۔ کښیندے منه بدکردار سرے په غور۔ زمونږه متن کښې وړومبی مصرعه دَ ا، یب او ط او دوئمه مصرعه دَ ز مطابق ده۔ نور قرأتونه دادی: که ته نهٔ ئې بدکردار بدکردار مهٔ شه۔ و۔ که ته نه یې بدکردار او بد عمله۔ ز۔ که یقین دَ بدکردار په کردار کړی۔ یو۔ دوئمه مصرعه: کښیندے منه بدکردار په غور۔ ا۔ ط۔ یب۔ کښیناسته له بدکردار سره پیغور۔ و۔ کښیدینه دَ بد کردار سری پیغور۔ یو۔

۱۲۲- ښهر سوے شی دَ یوه سړی په تور۔ ز۔ وران شی ښهر دَ یوه مړی په تور۔ ط۔ وران شی درست ښهر دَ یو سړی په تور۔ یو۔

۱۲۳- چه یو غابښ دَ چا په خُله کښې لړو بر شی۔ ز۔

۱۲۴- واړه کرم شی که الخ۔ یو۔

۱۲۵- هر څوک خپله خوشنودی غواړی له خدایه۔ یو۔

۱۲۶- بخت هیچا ورکړے نهٔ دے خُبله پور- و-ی- بخت هیچا نهٔ دے ورکړے خُبله پور- ز-

۱۲۷- څوک بزیر خر یے کرځاوه شي الخ- و- څوک بد رنګه کرځاوه شي- ز

۱۲۸- دَ ا په حاشیه کاکاجي صنوبرحسین مومند لیکلي دي چه داکیډیمې په قلمي نسخه کښې دویمه مصرعه داسے ده: "که دَخدائے چارے په لاف شوے یا په زور" دَ اکیډیمې موجوده قلمي نسخو کښې داسے یوه نسخه هم نشته چه د دے شعردَ دویمے مصرے دغه قرأت لري. کیدے شي چه کاکاجي کومه نسخه کتلے وي هغه اوس ورکه وي.

۱۲۹- لکه تلهٔ کاندے خپل کور ته الخ- ز-

۱۳۰- لکه لو په پاخهٔ کښت الخ- ز-ی-

۱۳۱- لکه دروې وبله ریګ روان ژر ژر- یب- لکه اوري خُبله ریګ روان ژر ژر- و-

۱۳۲- هسے ژر ژر صورتونه دي رژیږي- ب- هسے ژر ژر صورتونه دي نړیږي- ه- و-یب

۱۳۳- دا شعر صرف 'یا' کښے دے- " ستړے ستومان" هم لوستلے شي-

۱۳۴- متن دَ ز-ط-یا-یو مطابق دے- نور قرأتونه دادي:
"د بنو په خُمبول هم هسے ژر ژر نهٔ وي" ب- د بنو زیول هم هسے ژر ژر نهٔ وي- ه- دَ بنو خُمبول هم هسے ژر ژر نهٔ وي- و- دَ بنو خُمبول هسے ژر ژر نهٔ وي- ی-

۱۳۵- نهٔ به جوړ وي همیشه بهار دَ عمر- ا-

۱۳۶- ټولو مطبوعه نسخو کښے دا مصرعه داسے لیکلے شوے ده: "هسے تیز دے بے سکون رفتار دَ عمر" اکیډیمې کښې چه کومه چاپي نسخه دَ ۵۳۶۶ لمبر لاندے موجوده ده په هغې کښے ئے دامصرعه په دے صورت رانقل کړے ده "هسے تیز دے په ښکون رفتار دَ عمر" لیکن په ټولو قلمي نسخو کښے هم په دغه صورت راغلے ده لکه چه متن کښے رانقل شوے ده- شاید چه "پشکون" یو متروک لغت وي چه دَ پلوشے سره اشتقاقي رشته لري او معنیٰ ئے داسمان برق وي-

۱۳۷- بے وفادے ھسے رنګه یار دَ عمر - ج - ی

۱۳۸- نهٔ له کوره چرته ځمه نهٔ سفر کړم - ز - نهٔ له کوره چرته ووځم نهٔ سفر کړم - یب - نهٔ چرته ووځم له کوره نهٔ سفر کړم - یو -

۱۳۹- بیائے وار په دنیا نشته دے رحمانه - ب - یب -

## ړ

۱- خراب زړهٔ ے دَ دلبرو هوا یوور - ز - ی -

۲- دَ سیلاب په مخکښے شړنګ دَ چا خوب شی - ط - یو - دے مصرعه کښے شړنګ "شرنګ" او "شړنګه" دواړه لوستے شی - دوئمه مصرعه: شیرین خواب را شخه الخ - ا - و -

۳- دَ زړهٔ هستي چه ے دَ صبر په رخت جوړ وو - ط - دوئمه مصرعه: "هیڅ رانه کړه مهرویانو الخ - د - ز - ی - و -

۴- دا شعر صرف دَ 'ط' نسخه کښے وموندے شو -

۵- کهٔ ئے یو وړ خسته زړهٔ الخ - ز - ی - یب - دوئمه مصرعه: که ئے یووړ خراب دل الخ - ط - نا اشناؤ وړے نه خپل اشنا یووړ - د -

۶- معشوقے دَ رحمان الخ - یو -

۷- څهٔ شو کهٔ ئے یوور خراب زړهٔ الخ - د - ز - ی - څه شو که ئے یووړ خسته دل الخ - و -

۸- خط دِ تور حرفونه ځ دِ پاڼے دِ کتاب کړه - ا - ج - خط دِ تور حرفونه ځ دِ پاڼه د کتاب شه - د -

۹- هر اسباب چه ماسره دَ صبر دَ پرهیز وو - ا - هر اسباب چه ماسره دَ زهد دَ پرهیز وو - ج - ی - یب

## ز

۱- زهٔ نور چاوته دَ راز خبرے نهٔ کړم - ه - زهٔ و نور چاته خبرے دَ ناز نهٔ کړم - ی - زهٔ و نورو ته دَ راز خبرے نهٔ کړم - یا - زهٔ و نور چاته خبرے کړم د ناز - ب - زهٔ و نور چاته خبرے دا رنګ نهٔ کړم - یب -

دویئمه مصرعه 'ط' کښې داسې ده: " بې هغوچه موئې مژګان ئې وی دراز."

۲- د تصویر له کله الخ- ی- دَ تصویر دَ کلو الخ- ا- هـ-

۳- همیشه مې لاس نیولی دی دُعاته- ا- همیشه مې لاس نیولی دی دعا کړم- ب- دویئمه مصرعه: چه مدام دِ د ستا ناز وی الخ- ب-

۴- نیستی هرچېرې دَ هستی په دنبال ګرځی- ا، ب، هـ-

۵- متن دَ یَ مطابق دې- نور قرأتونه دادی: "دا قاعده ده لکه لوړه هومره ژور وی- ا- دا واقعه ده چېره سخته لکه لوړه که ژوره- ب- دا قاعده ده لکه لوړه هومره ژوره وی- هـ- دا قاعده ده لکه لوړه هومره زوړ وی- یو-

۶- که بې ځایه زړکې نهٔ ویښتې اواز- ا-

۷- نیک عمل دَ عالمانو الخ- ب- ز-

۸- خدائې له هسې زاهوزاده امان راکړې- ز- دویئمه مصرعه: چه بې دین بې دیانت وی الخ- ز- ی-

۹- متن دَ ط، یو مطابق دې- بل قرأت دادې: که مکان ئې په اسمان دې غزا وشوه- ا، ب، هـ، و، ی، یب-

۱۰- که ئې اصل له اوبو زمکې څه شو- ب-

۱۱- ګنهٔ نل به نیشکر نهٔ شی هرګز- یب-

۱۲- که تورغر له ځایه خوځی دا ممکن دی- ز-

۱۳- دَ رحمان په باب چه وشوه هغه وشوه- ا- دَ رحمان په باب چه لیک وو هغه وشو- ز- دویئمه مصرعه: مبدّل به داد فتر نهٔ شی هرګز- ز- ط- یو-

## س

۱- که مې وپوښتی الخ- ید- زړه املا کښې دَ یائې معروف او مجهول فرق نهٔ شو ساتلې- ځکه نو کوم قلمی نسخو کښې چه "که مې وپوښتې" راغلی دې نو دهغو قرأت هم "که مې وپوښتی" کیدې شی-

۲- چې ځوانۍ په سر زمان له خدایه غواړم - ط -

۳- که یوخس وی په محتاجو لکه کروړشي - ز - ی - ید - که یوخس دے لک اوکروړ دے په محتاجو - ط -

۴- که ٔ قارکه که الخ - ط - ی -

۵- کهٔ شهباز لوړه سینه ده دَ تنکځری - ا -

۶- کهٔ چا غُندے وی اغوستے که اطلس - ز - که شړی وی چا اغوستے کهٔ اطلس - یو -

۷- هم هغه ئے خند وی چې ژړ وی ئے - یه -

۸- هسے رنګ په بد صفت ئے موصوف شوے - ا - ز - ی - دویمه مصرعه: چه هیڅ نهٔ پوهیږم ناس یئے که خناس - ط - یو -

۹- چه سوا له خدایه الخ - ز - ط -

۱۰- امرداد ے چه له نهی ځان کوتاه کړے - ز -

۱۱- خیر دے چه له نهی وجاروځے - یب -

۱۲- له ادمه غرض واړه ادمیت دے - ط - یو - دویمه مصرعه: نهٔ چه پټ وی زړه دَ مسو په لباس - ز -

۱۳- متن دَ ا ج و ذ ی یب مطابق دے - نورقرأتونه دادی: که دَ خره په سر شړی شی دَ اس - ط - که دخره په سر سری کاندے دَاس - یو -

۱۴- دَ تشنه خوله په اوبه سره مطلب وی - د - دویمه مصرعه: نهٔ تش بے اوبو الخ - ط -

۱۵- کهٔ خوک فخرکا په نام و ناموس - ه -

۱۶- کهٔ اغوستے ئے ذرین لباس وی الخ - یا -

۱۷- نهٔ ئے فهم فراست وی نهٔ ئے عقل - یا -

۱۸- متن دَ ا، و مطابق دے - نورقرأتونه دادی: عبث لونی په سر واړه هسے بوس - ب - ز - عبث هسے په سرلونی خالی بوس - ی - عبث هسے واړه لونی په سر بوس - ه - عبث هسے په سرلونی تش بوس - یه - یو -

۱۹- هنګی شرو شدّت دے داعلوس (؟) - ط - یو - هنګی شرو شدت دے

دَ ارنوس (؟) - یب - همکی شروشدت دے د اووس - ا - ه - ... داسالوس (ی - یا)

۲۰ - راشه وګوره ماهی دَ کیانوس - ز -

۲۱ - ساقی جام دَ میو راوړه چه پرست شم - ز - ساقی جام و باده راوړه چه پرست شم - ط - یو - ساقی پوره شه جام راکړه چه بیخودشم - یه - دوئیمه مصرعه : خدائے څوک مه کړه په جذبه دَ عشق محبوس - ی -

۲۲ - رحمان وینی په پرده کښے دیار حُسن - یا - زهٔ رحمان هسے یار وینم په پرده کښے - یو - دوئیمه مصرعه : لکه شمع چه څوک وینی په فانوس - یو -

# ص

۱ - چه خبر مخلصان له علم غیبه - و - دوئیمه مصرعه : دا همه واړه اعلام دے دَ اخلاص - ا ب ه -

۲ - دَ رواج دَ رسم (دَ رواج و رسم) عمر مدام نهٔ وی - ی - یو - دوئیمه مصرعه مګر عمر چه الخ - ا و ط یب ید -

۳ - بے اخلاصه د اسلام حلاوت نه وی - ز ط ی یو -

۴ - څهٔ عجب دے که عنقائے په دام نښلی - ید -

۵ - متن دَ ه مطابق دے - نور قرأتونه دادی : څهٔ عجب دے که سم نهٔ درومی په لارے - ز - څه عجب که ئے مستی وی بے خماره - ید - څهٔ عجب دے که مستی ئے وی بے خوده - ط - یب - یه - څه عجب دے دے که مستی ئے وی چاپیره - و -

۶ - پس له مرګه به دا مهر وفا نهٔ وی - که وفا کړے نن هنګام دے دَ اخلاص - یه -

۷ - دَ رحمان کلام په دا سبب شیرین شه - یه -

# ض

۱ - که تهٔ نه کړے په نور چا باندے غرض - ب - بل به هم نه کاندے تا باندے غرض - ب -

۲ - سپے هم نه کا په ګدا باندے غرض - ب - ط -

۳- دَ رسواوی په رسوا الخ - و- یو -

۴- کل دنیا په احمقانو الخ - ز -

۵- زهٔ رحمان دَ یار په در کښې هسې خوښ یم - یا -

## ط

۱- بیا به نه موے نشاط په دے بساط - ا -

۲- لکه راغلی بیا به هسې رنګه دروے - ه - دوئمه مصرعه : داجهان دَ مسافرو یو رباط - یو -

۳- ودانا ته هم په دے جهان شکاریږی - ید - ودانا وته په داجهان څرګند دے - یو -

۴- دا شعر صرف 'یا' کښې بیاموندے شو - نورو قلمی نسخو کښې نشته - چاپي نسخو کښې ورومبۍ مصرعه داسے ده - "له کم ذات بے دیانته بے نمازه"

۵- لکه وسکۀ نی جامه څوک په خیاط - ه -

## ظ

۱- دا غزل صرف 'یا' کښې وموندے شو چه دچاپي نسخو قرأت سره اختلاف لری خو موږ دَ قلمی نسخې قرأت ته ترجیح ورکړه -

۲- دا شعر چاپي نسخو کښې نشته -

## ع

۱- دا غزل د 'یا' نه بغیر بله قلمی نسخه کښې نشته - دَ چاپي نسخو قرأت سره د اختلاف په صورت کښې موږ د قلمی نسخې قرأت ته ترجیح ورکړه -

۲- دَ بېنوا دَ چاپي نسخې قرأت دا دے :"ستا مجلس دَخاص الخاصو سرفرازو" دَ 'ح' او دَ اکیډیمۍ دَ چاپي نسخې قرأت کښې دَ "خاص الخاصو" په ځائے "خاصو خاصو" دے - قلمی نسخه کښې "خاص الخاصو صرافانو" دے - شاید چه دا "خاص الخاصو حریفانو" وی -

# غ

۱- 'یو' کښې د "دردمنو" په ځائے دواړو مصرعو کښې "دردمندو" دے۔

# ف

۱- اورنګ زیب او شاه جهان الخ۔ ب۔ ز۔ ی۔

۲- که ئے تن په لوئی لوئے الخ۔ ن۔

۳- دَ مکے په کرامت کښې هیڅ شک نشته۔ یا۔ دوئیمه مصرعه: وے خو به حاجی نشی الخ۔یب۔یو۔

۴- که په سل دریابه غسل دځان وکا۔یو۔

۵- دَ همه واړه ملکونو ښښتن خدائے دے۔ یا۔یج۔ دَ همه واړه ملکونو خدائے ښښتن دے۔ ط۔ یو۔

۶- ټولو قلمی نسخو کښې دا مصرعه همداسے لیکلے شوے ده۔ لکه چه متن کښې نقل شوه۔ دَ "لرکیو" یو قرأت "لرګی وی" هم کیدے شی او دغه قرأت ټولو مطبوعه نسخو اختیار کړے دے۔

۷- أب و تاب د ناکره مهر وی هومره۔ ز۔ یب۔ آب و تاب د ناکره الخ۔ ه

۸- رحمان نه زده بله هجوه بله لاف۔ ا۔ رحمان نهٔ زده بله هجوه بل اوصاف۔ ه

# ق

۱- مجنون واچوه د نورو ته طلاق۔ ه

۲- دا مصرع دَ برټش میوزیم یوه نسخه "یب" کښې داسے ده:
"چه خزان پرے باندے راشی په هرځائے که طلاق" په دے صورت کښې دا مصرعه غیر موزونه او غلطه ده۔ نورو قلمی نسخو کښے دا شعر نشته۔

۳- دَ اکیډیمی نسخه ب کښې دا مصرعه داسے ده: "په دنیا به مینه نهٔ کاندی هیچرے۔

۴- هسے محوه وی دعشق په میونابو- یب

۵- دا شعر صرف په "یب" کښے وموندلے شو-

۶- لا ظاهر په صورت دے په معنیٰ نه وی- ا- ب- ی- دویمه مصرعه:
لکه کښلے دَ لا لفظ وی په اوراق- یا- یو-

۷- څوئے تن په کاروبار کښے فنا نهٔ شی- ز-

۸- دَ بېنوا چاپی نسخے او ټولو قلمی نسخو کښے 'کوتل' لیکلے شوے دے۔ 'ح' او دَ اکیډیمی چاپی نسخه کښے 'کوتهل' دے۔ دغسے دَ ټولو چاپی نسخو دَ 'ایلاق' په مقابله کښے قلمی نسخو "اولاق" راوړے دے۔ دَ 'یب' قرأت دا دے: په وهل په کوتل کار کوی اولاق"۔

۹- چه خدائے پوه کړه د بنو په وهل پوه شی- ز-

۱۰- کهٔ مانځی کهٔ رځی الخ- ز- دویمه مصرعه ه کښے داسے ده:
دَ طالب او دَ مطلوب ترمینځ نفاق-

۱۱- دَ قسمت پاسه الخ- ز

۱۲- کشکے نور کړے هغه شوی د میثاق- ز- ط- کشکے وران کړے هغه شوی د میثاق- یو-

۱۳- متن دَ ب- و- ی مطابق دے- نورو قلمی نسخو کښے "خلق" لیکلے دے۔ چه دَ زړے املا له رویه "خلقه" او "خلقو" دواړه لوستے شی- چاپی نسخو کښے "خلقو" دے-

۱۴- خبر نهٔ یم چه وکومه خوا ته لاړه- ا- خبر نهٔ یم چه وکومه خوا ته لاړه شو- یو-

۱۵- دا مصرعه په ټولو مطبوعه نسخو کښے غلطه نقل شوے ده۔ دکابل او اکیډیمی مطبوعه نسخو کښے دا مصرعه داسے ده: لکه څکک چه دَ اوبو په مځکے دروی۔ 'ح' مطبوعه نسخه کښے داسے ده: "لکه څکک چه دَ اوبو په زمکه دروی"۔ ا کښے هم دا شعر شته نه- ب، ی، یب کښے غیر موزونه مصرعه داسے ده: "لکه نغرچه په مزکه دروی" ز- و کښے "نهر" دے- "ط" کښے "نو"- "متن دَ کلشن روه" او "یو" مطابق دے۔ یو کښے دویمه مصرعه داسے ده:" هسے دروی په جهان راغلے خلق"۔

۱۶- دریغه یوځله خو بیا په جهان راشي- دوېمه مصرعه "له جهان په ارمان داغلې خلق"

۱۷- دا مصرعه په ب، ط، یب، یو کښې دا سې ده: "رحمان هسې خوند له خلقه بیرته بیامونډ"

## ک

۱- دَ دې مصرعې وړومبې توری ټولو مطبوعه نسخو کښې "نن" او اکثرو قلمي نسخو کښې "تن" دی. دَ 'نن' مقابله کښې "تن" دَ پوشاک د تلازمې له کبله غوره وګڼلې شو- 'یو' کښې دَ دوېمې مصرعې قرأت دا دی: "چه آخرې دا خوراک دا ځې پوشاک"

۲- وړومبۍ مصرعه کښې دَ یو قرأت دا دی: "کویا شوی وی هغه چه شدی دی" لکه څنګه چه ذکر شوی دی (وګوره ځ نوټ ۵ س) متقدمینو دَ یائې معروف او یائې مجهول فرق نۀ کولو- ځکه دا سې ځایونو کښې چه سیاق سباق سره ئې تمیز نۀ شي کیدې "شوې دې" او"شوی دی" دواړه صحیح دی. دوېمه مصرعه یو کښې دا سې ده: "زۀ پخوا تر هلاکت یم اوس هلاک"

۳- "چه دَ چا زړۀ شي وړومبې له غیره پاک" ز- "چه اوله دِ شي زړۀ له غیره پاک" (ب) کیدې شي چه دالفظ دَ غیر په ځائې "خیرې" وی-

۴- دَ دې مصرعه دَ "ز" قرأت" سړې بویه چه بیرون او درون یو وی" د دوېمې مصرعې سره زیات سمون خوری. "سړې بویه چه درون او بیرون یو وی"- ا- یو-

۵- څوک یو دوه ورځې خوشحال او څوک غمناک- ز

۶- په ساعت کښې ئې خوشحال بیائې غم ناک کا- ز- دوېمه مصرعه په ب، ز، یو کښې دا سې ده: دا خویونه قدیمي دی دَ افلاک-

۷- دا مقطع صرف 'ز' کښې وموندې شوه- دې نسخه کښې دوېمه مقطع نشته- دَ مضمون دَ یووالي له کبله دا هم دَ دوېمې مقطع یو قرأت دې خو دَ الفاظو د بیلتون په وجه مونږ د بیل شعر په حیث راوړو-

۸- چه څه کانډے واړه خدائے دے نورڅه نشته- یب-

۹- تراشی مے زړهٔ په نوک- یب-

۱۰- لکه دُړ په لاس دَ طفل- و- (حاشیه کښے ئے کل هم لیکلے دے)- دویمه مصرعه 'ی' او 'یب' کښے داسے ده: "زما زړهٔ کا شوک په شوک"۔

۱۱- ا کښے محشی دَ "ھوک" معنیٰ "وچت" لیکلی ده-

۱۲- "لکه کل چه څوک دَ وړکی په لاس ورکا"۔ یو- لکه کل چه څوک په لاس دَ طفل ورکا- ا-

۱۳- که ئے پوه کړم چه مے زړهٔ له غمه چوی- ز- که له ډیره ډیره غمه مے زړهٔ چوی- یا-

۱۴- که بادشاه دے دَ دے دور که ملوک- ب- که کدائے دے دَ هٔ دے دور الخ- ا (حاشیه)

۱۵- چه سحر سحر نارے وهی تل غوک- ه-

۱۶- چه میئن دَ دلبرانو په جمال شی- یا- چه عاشق به دلبرانو برابر شی- یو

۱۷- ترو به څه نورچاته وائی نصیحت څوک- و- ترو به څهٔ وچاته وائی نصیحت څوک- یو-

۱۸- هغه چار چه ئے موقوفه په تقدیر وی- ز- هغه چارے چه موقوفے په تقدیر وی- ه-

۱۹- "که نظرکا وقضاو و هم رضا ته"۔ ح "که قضاوته نظر په رضاوکا"۔ ط- یو-

۲۰- څهٔ پوهیږی الخ- یب- یو-

۲۱- غم دَ چا په ځان پیرزو دے ولے څه کا- ط- یو- دویمه مصرعه: چه دخدائے په کړه هیڅ نهٔ لوی قدرت څوک- یو-

۲۲- "علت لاړ شی له وجوده عادت نهٔ ځی"۔ ز- علت لاړ شی له سره په عادت نهٔ ځی"۔ ی- یب- علت لاړ شی عادت نهٔ ځی له سره نه- ه-

۲۳- لاس که راکانی دخدائے الخ- یو- که لاس راکاندی الخ- ه- ز-

۲۴- چه خبر شی پرے به نهٔ ږدی الخ- ا ب-

۲۵- داشعر دَ "به" نه رانقل شو- نورے نسخے داشعر نهٔ لری-

۲۶- دَ دنیا چارے خو کل وارہ فانی دی - ب - ز - ی - دوئیمه مصرعه.
د مختلفو نسخو قرأتونه دا دی : لرناحقه خاورے لونی نه په سرڅوک.
ا - و- "نزناحقه خاورے لونی به په سرڅوک." ب ز ، ح ، ی -
"ترو ناحقه خاورے لونی (به) په سرځوک." یا - "نزناحق خاورے
ایرے لونی په سرڅوک ." ید - "پرناحقه خاورے لونی په خپل
سرڅوک." یو - دَ دواړو مصرعو متن دَ ه ، ط مطابق دے.

۲۷- چه قبول شی په دربار دَ مهرو بیا نو - یا - یب - ید - دوئیمه مصرعه :
د هغه په څیر الخ - ا ب ه و -

۲۸- که هرڅو دلبران ډیر شی په جهان کښے - یا - ید - دوئیمه مصرعه ب
کښے دا سے ده : زما یار غوندے به نهٔ وی بل دلبر څوک.

۲۹- دغه کار کولے نهٔ شی په هنر څوک - ز -

۳۰- دا شعر او له دے نه پس ته پنځه شعرونه یو ے قلمی نسخه کښے هم نشته.

۳۱- بے رهبره یون د عشق په لاره گران دے - ز - یه - "بے رهبره یون په لاره
دَ عشق گران دے - یا - بے رهبره یون دَ عشق په لار کښے گران دے - ط -
یو - متن دَ ا ب مطابق دے - ه دا شعر نهٔ لری -

۳۲- دَ رحمان په څیر به نهٔ وی بے بصر څوک - ز -

۳۳- چه عاشق نهٔ وی دَ ترکو په جمال څوک - یب - دوئیمه مصرعه :
نور به څهٔ کا په دنیا کښے الخ - ز - یب -

۳۴- دَ بل خط په عبارت به نظر نهٔ کا - ب - ز - دَ بل خط په عبارت په
څه نظر کا - یو

۳۵- چه عنقا شو اهلِ دل په دا جهان کښے - ط - یو - چه عنقا شو اهلِ دله
په دنیا کښے - ه - دوئیمه مصرعه نی کښے دا سے ده - ترو له دهٔ به څهٔ
سیالی کا په اقبال څوک -

۳۶- چه په اصل کښے خدائے پیوند دے پیدا کړے - ز -

۳۷- سرخ روئی دَ هرسړی په نیک عمل ده - په دانهٔ شی چه په سرکاندی
سُور شال څوک - یب - سرخ روئی دَ هرسړی په جگرخون ده - نهٔ هغه
چه په سر واچوی سُور شال څوک - یا - سرخ روئی دَ هرسړی په جگرخون ده.

نهٔ شغړچې په سر اچوی سور شال څوک. ط.

۳۸. مخ روښې ده دَ عاشق په خپلو اوښیو. ط. یا. یو.

۳۹. خوبروی بې دلبرۍ څه پکار نهٔ وی. ز. دا شعر صرف ز. یب کښې وموندلے شو.

۴۰. دَ دنیا چارے همه واړه فانی وی. ز. یب. که نظر کا په حرام او په حلال څوک. ز. که نظر کا پر حرام او پر حلال څوک. ط. یو.

۴۱. که ئے شعر د مومند رحمان ترغوږ شی. یب.

۴۲. دا غزل صرف 'ط' او 'یو' کښې وموندلے شو. وړومبی مصرعه کښې "نه وے" دواړو نسخو کښې "نه وی" لیکلے شوے دے. خو دَ شرط دُ 'که' په وجه موږ "نه وے" غوره وګڼلو. "نه وی" سره هم مطلب کښې څهٔ فرق نهٔ راځی. دویمه مصرعه 'یو' کښې داسے ده: "بے حضور به له تا وے لیلیدل څوک"

۴۳. وے حکم بے له تا نهٔ لری بل څوک. یو.

۴۴. که ئے لاس دَ خدائے په چارو رسیدلے. یو. دویمه مصرعه: بے مقصود بر په یو دم نهٔ سهیدل څوک. یو.

۴۵. نه چې نن کاندی خبرے پردی خپل څوک. یو.

۴۶. که دَ سر ما غزه ے خوری په دا ویئل څوک. یو.

۴۷. که ے زړهٔ / ے زړهٔ ستا مینے نه وی / وے راپیړو دے. یو.

۴۸. نور مجنون په دے بید یا غرونه / غرونو ځنګل څوک. یو.

۴۹. مینه هره بلا کړی په عاشقانو. یو. دَ متن دویمه مصرعه دَ 'یو' مطابق ده. دَ 'ط' قرأت دا دے: "ګنهٔ زهٔ رحمان هومره ویئل څوک"

## ک

۱. ننګیالے چې یو ځل مخ په یوه لور کا. ط. یو. دویمه مصرعه: بیرته نهٔ ګوری کوه وی الخ. ب.

۲. چه چراغ په نظر ورشی دَ پتنګ. ز.

۳. دَ ستی وی واتش وته الخ. یا. یو.

۴- هغه بنهر جوهری لره زندان دے - یو -

۵- په ښادئ ئے ښادمان مهٔ شه که هوښیار یئ - یا -

# ل

۱- هسے پاتو شوم نامرد وناقابل - یا -

۲- حیف دا چه نه عالم الخ - ز -

۳- چه رحمان لا نهٔ بالغ یم نه عاقل - ب -

۴- ینبے مے په سر دے یاره ستا دَ مینے کل - ه - ید -

۵- "تهٔ چه ائینه واخلے و مخ ته حیرانیږے" ط - "تهٔ چه ائینه واخلے وځان ته حیرانیږے" ز - یا - "تهٔ چه ائینه واخلے وځان ته حیرانیږم - ید -

۶- کرځے په چمن کښے لمن ډکه وړے دَ کلو - ز - ه - کرځے په چمن کښے منګل ډکه وړے دَ کلو - یب - کرځے په چمن کښے منګل ډکه له کلونو - ط - یو - کرځے په چمن کښے منګل ډکه دَ کلونو - ب - متن دَ ا و مطابق دے -

۷- شابه شابه ستا د زلفو په کاکل - ز - شابش شابش ستا په زلفو په کاکل - یه - شابس شابس ستا په زلفو په کاکل - یو -

۸- نهٔ به ستا دَ مخ په شیر گلشن وی په جهان کښے - یا - نهٔ به ستا دَ مخ په شان لید لے چا گلشن وی - ید -

۹- یا به فخر په خپل اهل په نسب کا - ز - دَ زړے املا له رویه دا نصم "په خپل اهل وپه نسب کا" لوستلے شی -

۱۰- یا به ذکر دَ لذت او دَ جنت کا - یا - دا شعر چاپی نسخو کښه نشته - دَ دے دَ وروستۍ مصرعے او دَ نیر شعر دَ وړومبۍ مصرعے په ترکیب یو شعر البته دغو نسخو کښے راغلے دے -

۱۱- یا حجت شی دَ عیسیٰ او دَ دجال - ه - یا قربت شی الخ - ا - ی -

۱۲- و - ز - ط - یب - یو کښے دا مصرعه هم دغسے ده لکه چه په متن کښے نقل شوے ده - نورو قلمی او مطبوعه نسخو کښے دا مصرعه دا سے ده : "چه خبر شی په ثواب او په وبال" د مصرعه موجوده صورت له حُکه ترجیح ورکړے شوے ده چه دا شعر $\frac{6}{108}$ غزل کښے متفقه طور سرهٔ

دَ "حرام و حلال" تورو سره راغلی دے۔

دَ دنیا چارے فانی دی مرد هغه دے چه نظر کا په حرام او په حلال څوک

۱۳- اَب د سیند لا څخهٔ مجال لری په تلهٔ کښے + دَ دنیا دَ چارو هیڅ نه وی مجال۔ ه

اباسیند لا څخهٔ مجال لری په تلهٔ کښے + دَ دنیا د چارو هیڅ نه وی مجال۔ ب، ا،

و۔ یا۔ دَ دنیا د چارو هیڅ نشته مجال۔ و۔ ز۔ ط۔ یو۔

۱۴- لکه ملک و مال الخ۔ و۔ ط۔ یب۔ یو۔

۱۵- چه ئے واخلی الخ۔ ز۔ که ئے واخلی هیڅ در نه شی لکه خیال۔ یو۔

۱۶- لکه دود چه غروته غروته لیده کیږی۔ ز۔

۱۷- لکه یخ چه دَ اوبو په زور شی جمع۔ ز۔ لکه یخ چه د سړو په زور شی جمع۔

ب۔ ی۔ یو۔ لکه یخ چه د سړی په زور شی جمع۔ یا۔ لکه یخ چه دَ اوبو

په سر شی جمع۔ یب۔

۱۸- په یوه ساعت باران بیا شین اسمان وی۔ ز۔ یا۔ دا شعر په چاپی نسخو

کښے نشته۔

۱۹- ماهزار ځله وکښلے دغه فال۔ ا۔ و۔ ز۔

۲۰- لکه مالکه چه څوک کیږدی په اوبو کښے زهٔ هم هسے سر ز د وئے شم په مثال۔ ا

لکه مالکه چه څوک کیږدی په اوبو کښے زهٔ هم هسے سره ریږدم په مثال۔ ب

لکه غونډ دَ مالکو کیږدے په اوبو کښے زهٔ هم هسے سرزده شوم په مثال۔ ز

۲۱- دا شعر چاپی نسخو کښے نشته۔ خراب دلے بهی غواړی الخ۔ ب۔ یب۔

دویمه مصرعه ا او ب کښے داسے ده: "چه کهی را معلومیږی کال په کال"

دَ بهئ په مقابله کښے بدی یا خرابی پکار ده او یا دَ کهی په ځائے مهی۔

۲۲- که وصال مے دَ یار بیا موند هله ځوان یم۔ ط۔ یو۔ گلشن روه۔ دویمه

مصرعه: "کنی اوس خو زهٔ رحمان یم دَ چلسال۔ ط۔ گلشن روه۔

"کنه اوس خو رحمان نهٔ یم دَ چا سیال۔ یو۔

۲۳- زړے املا کښے دَ معروفے او مجهولے 'یا' ترمنځهٔ د فرق نهٔ کید و

له کبله قلمی نسخو کښے د دے شعر دا قرأت هم کیدے شی:-

چه له نازه پوشیده لرے چشمان خپل څه به وینے مظلومان او مقتولان خپل

دَ دویمے مصرعے دَ 'و' قرأت دا دے: "خود به وینی / وینے مظلومان الخ

۱۶۳- کله جام دَ زهرو را کاچه ئے شومه- ط-یو-

۱۶۴- دغه عیَب واړه ستا دے عیَب ژنه- ز-ی- دغه عیَب به هم ستا وی عیب ژنه- ط- دا عیبونه واړه ستا دی اے عیب ژنه- یو-

۱۶۵- که څهره دَ چا صفاوی یا ریمنه- یو-

۱۶۶- ته چه بد له بله وائے زه پوهیږم- ب-

۱۶۷- ترهغه به وړو مے ستا عیب څرګند شی- یو- دویمه مصرعه: وهرچا و ته چه کړے دبل غندنه- ط-

۱۶۸- هر رنګ تخم چه کرے هغه به موے- ب-ی-

۱۶۹- که دَځان له عیبه ځان ژغورے رحمانه- ز-ط- که دِ ځان له عیبه وژغورے رحمانه- یب- دَ هیچا په عیب مه کوه پښتنه- ط-یو-

۱۷۰- ډیرے عمر تیر کړ الخ- ا-

۱۷۱- هیڅ مے حاصل نه کړه په شیخی او په تقوی کښے- ب-یو- هیڅ مے حاصل نهٔ شوه الخ- ا- دویمه مصرعه: پس له دے مے وارد ے هرچه شوه الخ- ب- پس له دے مے وار دے هرچه شو- یو-

۱۷۲- شیخ او شیخی وردو وظیفے او ذکر فکر- ج-ی- دویمه مصرعه: چرته ساقی الخ- ز-

۱۷۳- کان دَ درو ځار شه الخ- نه خرمن دَ عقل نه دَ عشق یوه دانه- ط- ګنج دَ درو الخ- نهٔ خروار دَ عقل نه دَ عشق یو جو دانه- یب-

۱۷۴- هسے لذت کاندی جوړ دَ میٔو پیمانه- ز-ی- هسے خوند کوی لکه دَ میو پیمانه- یو- هسے خوند لری لکه دَ میٔو پیمانه- ط-

۱۷۵- بل مقصود مے نشته په کعبه په بت خانه- ز-یو- نور مقصود مے نشته په کعبه په بت خانه- ط- بل مقصد مے نشته په مکه په بت خانه- ب-

۱۷۶- زهٔ له ډیرے مینے په تش نام دَ یار شیدا شوم- ط- زه له ډیرے مینے په تش نام دَ یار شیدا یم-یو-

۱۷۷- دا شعر صرف ''یا'' نسخه کښے وموندلے شو- دَ کابل او پښتو اکیډیمی مطبوعه نسخو کښے وړومبی مصرعه دا سے ده: ''ځکه زاهد زهد کا دَ یو جنت دپاره'' دَ ''ح'' قرأت دا دے: ''زه که زاهد دَ یوه جنت دپاره''

۱۷۸- دا مقطع په 'ط' 'یو' 'یا' او یب کښې په ترتیب دا سې راغلې دې:

ط- ګوره دَ منصور حسې په دار نه شې رحمانه
ډېر په سرې مه کړه دا خبرې رندانه

یو- ګوره چې منصور غوندې په دار نه شې رحمانه
ډېرې دا دعشق خبرې مه کړه رندانه

یا- ګوره د منصور په دود سنګسار نه شې رحمانه
مه کړه دا دَعشق خبرې ډېرې مستانه

یب- ګوره دَ منصور حسې په دار نه شې رحمانه
مه وایه رښتیا خبرې ډېرې رندانه

مطبوعه نسخو کښې دا سې دې:

ګوره دَ منصور حسې په دار نه شې رحمانه
مه کړه دا دَعشق خبرې مستې رندانه - کابل-اکیډیمي.
ګوره دَ منصور په دود سنګسار نه شې رحمانه
مه کړه دا دَ عشق خبرې مستې رندانه - ح -

مونږ دَ متن دپاره دَ 'ط' 'یب' کابل او اکیډیمي د ړومبي مصرعه او دَ 'یا' دوئِمه مصرعه غوره وګڼله.

۱۷۹- متن مطابق یب- ځان به پرې جلیا کا که خونه شي ورانه. ا- ب-
ځان به پرجلیا کا که شي خونه ورانه- و-ی- دا غزل صرف په ا، ب، و، ی او یب کښې راغلې دې او غیر مطبوعه دې.

۱۸۰- غم ې دَ زړه وینې له چشمانو الخ- یب- او ښې نه دي وینې- یب- دوئِمه مصرعه کښې "ولې شو ئې دا بانه" په ټولو قلمي نسخو کښې "ولې شوئې دا بانه" دې، چې "ولې شوې ئې دا بانه" هم لوستلې شي.

۱۸۱- دا شعر په ټولو قلمي نسخو کښې په مختلف شکل راغلې دې خو په هر شکل کښې ئې معنیٰ صفانه دې. ا کښې دا شعر دا سې دې:

زۀ په داړو ستر ګو سیند دَ اوښیو بیاوم
وی محي دَ وصال وی بآب خانه

ب کښې صرف ړومبي مصرعه شته- زۀ په دا له ستر ګو الخ- دوئِمه مصرع نشته.

و کښې داسې دے: زه به دا دوه سترګو سیند د اوښو بیاییم (بیوم)
دی مهی د وصال وی موج وهی آب خانه
ی کښې داسې دے: زه به دے له سترګو الخ۔
یب کښې په دے شکل دے: زه به دے له سترګو سیند د اوښیو بهومه
ولے چه مهے د وصال دے آب خانه۔
مونږ د متن د اولے مصرعے د پاره د "ی" او "یب" او جزوًا د "ب" قرأت غوره وګڼلو۔ او د دویمے مصرعے د پاره مو د معنویت له لحاظ د "ا" او "و" د قرأت نه فائده واخستله۔ په دے صورت کښې به ئے معنیٰ داوی چه زه به دے وجه د سترګو نه اوښکے بهومه چه کیدے شی (وی په بمعنی باید۔ باشد) چه د وصال مهے د کور به دے اوبو کښې وموندے شی۔ "اب خانه" (به فک اضافت) غسل خانے ته هم وائی۔ او که اضافت واشی نو بیا به د وزن د پاره "به" حذف کیږی۔

۱۸۲- هیڅ پروا دِ نه شی الخ۔ ی۔

۱۸۳- متن مطابق ا، یب، ی۔ مقطع "ب" کښې داسے ده: "عقل د رحمان دِ په جفاسره مسلوب کړ۔ مه کړه مه کړه هسے بده چار په یارانه۔" و کښې مقطع داسے ده: "عقل د رحمان په جفا سره مسلوب کړ
مه کړه مه کړه (مه کړه) هسے نه ده یارانه"

۱۸۴- هم د منزکے د مخ واړه سره ګلونه۔ ز۔ هم د زمکے په مخ واړه سره ګلونه۔یو

۱۸۵- که ئے یو ځله مخ ووینم په سترګو۔ ز۔

۱۸۶- دا شعر چه صرف په "یا" نسخه کښې وموندے شو پخپله یو قلمی نسخه کښې هم نشته۔ البته ټولو مطبوعه نسخو نقل کړے دے او د خوشحال بابا هغه غزل کښې هم شته چه د کلیات دویم ایډیشن په ص ۲۲۵ راوړے شوے دے۔

۱۸۷- دا شعر هم لکه د ۱۸۶ نوټ د شعر صرف په "یا" او مطبوعه نسخو کښې وموندے شو۔ مطبوعه نسخو کښې وړومبۍ مصرعه داسے ده:
"توره زلفے دِ په سپینو لیچو ځانګی (کابل)
چه په سپینو اننګو دِ زلفے ځانګی (اکیډیمی مطبوعه نسخه) توره زلفے دِ

په سپینو انګو ځانګې (ح) 'یا' کښې هم دا مصرعه داسې ده: تورې زلفې دې په سپینو انګو ځانګې - مونږ د وزن دپاره "انګو" په ځائے "نګو" ولیکل چې یو عامیانه تلفظ دا هم دے - دا شعر هم لکه د ۱۸۶ د شعر د خوشحال بابا په یادشوی غزل کښې راغلے دے - دواړه شعرونه د 'یا' د نسخې د قابل اعتماد حیثیت له کبله مونږ مشکوک ونه ګڼلے شو -

۱۸۸- که خدائے غم د جدائۍ راته اسان کړ - و رحمان وته ویره یادی نور غمونه - ز - که خدائے غم د جدائی ورته اسان کړ - ی -

۱۸۹- که هزار شی افتابونه مهتابونه - ط - یو -

۱۹۰- په ګرداب د زنخدان ئے هسے ډوب یم - ط - یب - یو - دویمه مصرعه: چې څوک مه شه غرق په هسے ګردابونه - ز - چې څوک مه شه ډوب الخ - ط -

۱۹۱- په یوه ځواب ے رد هزار سوال کا - یو -

۱۹۲- هیڅ پایاؤ الخ: ا - و - هیڅ پایان - ب - ط - یو - متن د ز، ی، یب مطابق دے -

۱۹۳- که لږ سترګے پر بله کیږدم راته وائی - یو - دویمه مصرعه: په یاری کښے عالم نۀ ګوی خوبونه - یو -

۱۹۴- د هغو سترګو چې دروی سیلابونه - ا - د - و - ز - ی - له هغو سترګو چې دروی سیلابونه - ب - یب - یو - دا شعر 'ط' کښې نشته - مطبوعه نسخو کښې دا شعر داسې دے: د هغو له سترګو نه چې دروی سیلابونه (ح) - د هغو چې ځی له سترګو سیلابونه - (اکیډیمی - کابل)

۱۹۵- ا - و: ما هاله له پارسائۍ وو لاس وکښلی - متن مطابق ب، ز، ط - ح - ما هاله له پارسائۍ نه وو لاس ولی - کابل - اکیډیمی - ما هاله له پارسائۍ وه توبه کړے - یو -

۱۹۶- ارغوانی نهری ئے واغوسته رحمانه - ط - ارغوانی جامے چې اغوندی رحمانه - کابل - ارغوانی جامے ئے واغوستے رحمانه - و - ارغوانی لباس ئے واغوسته رحمانه - یو -

۱۹۷- ژوندی کاندی خپل کاروبه روزګارونه - ز - ط - یو - خپل کار روزګارونه - و

۱۹۸- څوک سرتور پېښے یبله کوزشو ولحدته - ب - ټولو قلمی نسخو (او 'ح' کښې هم)

دَ 'ښې يبله' املا "پښې ييل" يا "پښې ايل" شوې ده. دا توره په دغه شکل هم وييلې شي او وزن ئې هم نه ماتيږي.

۱۹۹- "ښه توښه سکه دَ دوه وروښو سره نه شي. ح. ښه استوګنه دَ دوه وروڼو سره نه شي. يو. کابل. اکېډيمي. دويمه مصرعه: بلکه يوله بله اخلي ازاروَنه. يو.

۲۰۰- دَ يوې وني له ښاخه پيدا کيږي. ب. ط. يو.

۲۰۱- يو يو وار دې په هرچا باندې به تېر شي. يو.

۲۰۲- "ډېر تودکي بازارکي مې تر سر تېر دي". ح. ډېر له سره مې تودکي بازارکي تېر دي. کابل. ډيوله سره مې توده بازارکي تېر دي. (اکېډيمي) زړه املا کښې چونکه دَ ک، ګ فرق نه کيدلو ځکه قلمي نسخو کښې دَ "تودِکي" دَ توري په حقله حتماً نه شو وييلې چه دا "تودوکي" دې او که "تودوګي".

۲۰۳- راکوي دَ بې ننګيه پيغورونه. ب. يب. راکوي دَ بېداري پيغورونه. ط.

۲۰۴- متن دَ 'د' مطابق دې. دَ چاپي نسخو قرأتونه دا دي:

چه ورژلې شي دَ ترکو په تيغونه. ح. بينوا.

چه وژلې شي دَ ترکو په تيغونه. اکېډيمي.

دَ چاپي نسخو "تيغونه" دَ غزل قافيه غلطوي. ب، ز، ي، يو کښې دا مصرعه داسې ده: چه ورژني ئې دَ ترکو پيغورونه. نورو قلمي نسخو کښې دَ 'د' دَ "تورونه" په ځائې "غورونه" راغلي دې.

۲۰۵- هر نګاه ئې په وښکه دَ زړونو ښېر کړ. ب. ط.

۲۰۶- خدائې دَ تورو سترګو تور وچاته مه کړې. ب. د. خدائې د تورو سترګو تور وچاته مه کړه. ط. يو.

۲۰۷- يو دَ حسن اور ئې بل کړ په عالم کښې. ط. دويمه مصرعه: په دا اور باندې ئې وسوه ډېر ښهرونه. يب.

۲۰۸- دَ رحمان دَ عاشقيه هسې غږ دې. ط. دَ رحمان دَ عاشقۍ داهسې غږ دې. يد. دَ رحمان دَ عاشقيه هومره حد دې. يو.

۲۰۹- چه مې چرې وو په تن کښې دا نوونه (نمونه) ل (حاشيه). چه مې چرې وو په تن کښې دا رودونه. و.

۲۱۰- که هزار رنګه دمونه الخ - ط - دوئیمه مصرعه کښې "قلمونه" مطابق ب - ز - ط - یب - یو - دا توره ا، و کښې دَ "قلمونه" په ځائې "قسمتونه" دے -

۲۱۱- له قسمته خلاصیده دَ سړی نه شي - ب -

۲۱۲- "لاسته" ځنې نسخو کښې "لسته" هم لیکلې شوے دے - ی، دَ "لاسته" په ځائې "روخته" دے - مطبوعه نسخو کښې لاسه لیکلې شوے دے او بیا کښې "لوری" دے -

۲۱۳- نور څوک څه کاندی دینار او درمونه - ط - یو -

۲۱۴- قسم وخوری له یارانو الخ - و - قسم وخوری له ترکانو الخ - ط -

۲۱۵- دا مطلع مطبوعه نسخو کښې داسے ده - زهٔ به نه کړم نوره په خوبانو باندے مینه - مینه دَ خوبانو وچوی دَ صورت وینه - ح -

ما وے زهٔ به نه کړم په خوبانو باندے مینه
مینه دَ خوبانو وچوی دَ صورت وینه - کابل - اکیډیمی -

قلمی نسخو کښې داسے راغلے ده - ا، ب، یب :-

زهٔ به نوره نه کړم په خوبانو باندے مینه
کشکے څوک ے کښلی توری وران کا له جبینه

و، ی : زهٔ به نوره نه کړم په بتانو باندے مینه - کشکے څوک الخ -

ز : زهٔ به نوره نه کړم په بتانو باندے مینه
مینه دَ خوبانو وچوی دَ صورت وینه

ط : زهٔ به نوره نه کړم په خوبانو باندے مینه
کشکے څوک ے کښلی توری وران کا له جبینه

یو : نوره خو به نه کړم په خوبانو باندے مینه
کشکے څوک ے کښلی توری وران کا له جبینه

په دے وجه مونږ دا دواړه مطلع ولیکلے او اولیت مو دَ ا، ب، و، ط، ی، یب قرأت ته ورکړو -

۲۱۶- زهروی که قند وی خو پخپله الخ - ز - یو - دوئیمه مصرعه:

نهٔ مومی څوک خوند دَ بل په خولے له انګبینه - ز - یب -
نهٔ مومی څوک خوند دَ بل په لاس له انګبینه - یو -

۲۱۷- داشعر صرف 'ط' او 'یو' کښې وموندے شو- دَ متن وړومبۍ مصرعه دَ 'یو' مطابق ده- دَ 'ط' قرأت دادے: "راشه نجومي زمادیار فال وګوره-"

۲۱۸- روغه خلقه ده دَ رنځورو تماشبینه- یب -ید-

۲۱۹- هرچه ماله راوړي یو پیغام له نازنینه- یو-

۲۲۰- څوبړے تل څاڅي دَ زړه وینے له استینه- و- یب- 'ط' کښې دا مصرعه داسے لیکلے ده: "څوبړے تل وینے دَ زړهٔ څاڅم له استینه". دَ دے نه داسے ښکاري چه دَ رحمان بابا په دور کښې یا کم از کم دَ ط دَ نسخے دلیکلو په دور کښې "څاڅم" دَ "څڅوم" په معنیٰ کښې هم استعمالیدو.

۲۲۱- دا مقطع د کابل اواکیډیمي په مطبوعه دیوانونو کښې هم په دارنګ ده- دَ 'ح' مطبوعه نسخه کښې دواړه مقطعے په دے رنګ دي:

سر دَ رحمان د رومي د هجران په تیره توره
وخت دے که مدد کړے یا میران محي الدینه
اور دَ جدائۍ دِ په رحمان دے لګید لے
ته دُ ئے نګهبان شے یا الله العٰلمینه

'یو' کښې دوه مقطعے په دے ترتیب دي:

سر د رحمٰن د رومي دَ هجران په تیرو تورو
وقت دے که مدد کړے یا میران محيّ الدینه
اور دَ جدائیه په رحمان دے لګید لے
ته دُ ئے نګهبان شے یا الله العالمینه

ط، ی او "ید" کښې یوه مقطع په دارنګ ده:

اور دَ جدائیه په رحمان دے لګید لے
ته دُ ئے نګهبان شے یا الله العٰلمینَ

و کښې دوه مقطعے په دارنګ دي:

اور دَ جدائیه په رحمان دے لګید لے
وقت دے که مدد کړے یا پیران محي الدینه
سر دَ رحمان د رومي دَ هجران په تیره توره
ته دُ ئے نګهبان شے یا الله العٰلمینَ

ز کښې دواړه مقطع په دے ترتیب دی :

سو دَ رحمان دروی دَ هجران په تیره توره
ته ئے نګهبان شے یا الله العالمینه
اور دَ جدائیه په رحمان دے لګید لے
وقت دے که مدد کړے یا میر(ان) محی الدینه

ا ، یب هم دَ "ز" ترتیب لری. البته دویمه مقطع کښې دَ "ز" دَ "میر محی الدینَ" په ځائے "مران محی الدین" لیکلے شوے دے . موږ متن کښې دَ ا ، ز "یب" ګڼې قرأت له ترجیح ورکړه.

۲۲۲- یا دوی ـ دَ "یا دوے" په ځائے په ټولو قلمی نسخو کښې لیکلے شوے دے لیکن چونکه متقدمینو دَ یائے معروف او یائے مجهول په لیکلو کښې څه بیلتون نه کولو نو ځکه دا نه شو ویئیلے چه دا توره په اصل کښې څۀ دے. البته په "ا" کښې دویمه مصرعه دَ "دنسکور پروت وی الخ" نه دا ښکاری چه کم ازکم دَ ا نسخے کاتب دا توره "یادوی" لوستلو. دَ دے په مقابله کښې دَ دے غزل څه نورو شعرونو کښې مخاطب ضمیرونه او افعال استعمال شوی دی نو په دے بنا موږ متن کښې "یادوے" بهتر وګڼلو.

۲۲۳- عبادت دِ څو تیرے په معصیت کا . ب . عبادت دِ څو تیرے تر معصیت کا . یو .

۲۲۴- ولے نه له نفس شیطان سره کینه . ز .

۲۲۵- تو نا پاکو ناریښو دی بهنزه . یو .

۲۲۶- دَ دیندارے عور تیینے تریو کوښه . ط . یو .

۲۲۷- بد کردار که صد ساله شی الخ . ا . بد کردار که سال خورده وی و رحمان ته . یب .

۲۲۸- دا غزل "ط" یو کښې وموند لے شو. دواړو نسخو کښې دَ مطلع دَ نفس توره "نوس" لیکلے شوے دے. حال دا چه دا توره په نورو ځایونو کښې په ټولو نسخو کښې هم نفس راغلے دے.

۲۲۹- دَ شداد خصلت دِ وینوه دَ ظلم . یو . "ط" کښې دویمه مصرعه کښې دمسکین او "پر مسکین" دواړه لوستلے شی .

۲۳۰- تاچې دَ فرعون په دود مخ ترېو کړې په دے خوی برابر نه شے له نیکیوه ـ یو

۲۳۱- وېمبئ مصرعه کښې "فر وجود" غالباً چه فرّ (شان وشوکت) او جود (غوره ځېږدونه) دی ـ دوېمه مصرعه ط نسخه کښې داسے ده:

"چه لیک د یار واح له دوه و درے وه"

چه څهٔ معنیٰ ئے نه راجوتیږی ـ البته که دا مصرع داسے ولوستلے شی نو بیا معنیٰ وښندی: "چه دِ لیکه په ارواح له دوه او درے وه "دَ یو دَ مصرئے یو ممکن قرأت دا هم کیدے شی: "چه رالیک د یارله دره دوری وه"ـ

۲۳۲- نقل مطابق اصل "بیو" فارسی کښے پهلوان ته وائی ـ او "تیو" طاقت ته ـ بے له دَے دوو لفظونو نه بل کوم لفظ ترے نهٔ شی جوړیدے ـ 'یو' کښے "مخ تبیوه" لیکلے شوے دے ـ

۲۳۳- 'ط' او 'یو' کښے دا مصرعه په ترتیب داسے ده: "وودهٔ پاڅوے دَخوب" "اوده پاڅوه له خوبه" موږ دَ معنیٰ او دَ وزن د پاره دَ یو قرأت سره دَ "نیمه شپه" زیات کړو ـ

۲۳۴- راته وایه دا په ځلئے کړے که بے ځایه ـ ز ـ

۲۳۵- که سل کاله دِ شی عمر الخ ـ ب ـ که سل کاله دِ شی عمر هم به تیر شی ـ ط ـ یه ـ دوېمه مصرعه کښے دَ "دغه پسه بیابه" په ځائے "دغه پسه به بیا" دَ ط ـ ی، یب ـ یه ـ په سند راوړے شو ـ

۲۳۶- دَ "سم دلاسه" په ځائے "ی" او "یه" کښے "سم له لاسه" او دَ "چارے" په ځائے ب، ز، ی کښے کار لیکلے شوے دے ـ

۲۳۷- زړهٔ په غوښو پورے مه تړه همایه ـ ز ـ

۲۳۸- که په تخت دَ اورنګ زیب کښینے گدایه ـ ی ـ په 'ب' کښے دا مصرعه نشته ـ

۲۳۹- وړاندے سرائے لره نوبنه واخله رحمانه ـ ب ـ

۲۴۰- 'ط' کښے دَ "هرکیدی" په ځائے "هرخسیس" دے ـ

۲۴۱- په نظر دَ هغو تور کانی زر کیږی ـ ز ـ په نظرئے تورے خاورے سیم و زر شی ـ یو ـ

۲۴۲- متن دَ ا ب و ی او دَ کرستهو میتهی (متن) مطابق دے۔ نور قرأتونه دادی: "چه ئے نهٔ دے راپیر ودے څنے بیورته" ز- چه ئے نهٔ دے راینولے څنے بیو ته۔ یه۔ چه ئے نه دے رانخښلے څنے بیرته۔ یو۔ چه ئے نهٔ دے راستولے څنے بیرته۔ کرستهو میتهی (حاشیه)

۲۴۳- همیشه به درپه درګکرځے۔ یه۔ همیشه به درپه درګکرځے لونډلے۔ یو۔ همیشه به درپه درګکرځے ترتیلے۔ کرستهو میتهی (متن) دَکرستهومیتهی دَ حاشیے قرأت زمونږ دَ متن مطابق دے۔

۲۴۴- 'ط' کښے صرف دغه مقطع ده۔ دَ کرستهو میتهی په حاشیه کښے دا مقطع هم شته۔

۲۴۵- دَ دے سست صورت الخ۔ ب۔ یه۔ کرستهو میتهی (متن)۔ یو۔

۲۴۶- حق حیران دَخدائے په کارشم۔ ز۔

۲۴۷- متن مطابق ا، ط، ی۔ یه "و" کښے دَ "وږدوے" په ځائے "بلے" او 'یو' کښے "پښتلے" او نورو ټولو قلمی نسخو کښے "پښتیدلے" دے۔

۲۴۸- زهٔ او یار چه ځبله خپل غمونه شمار کړو۔ ب۔

۲۴۹- دَ دنیا چارے همه واړه فانی دی۔ ب۔

۲۵۰- رحمان هسے وزګار کله دے له عشقه۔ ز۔ رحمان هسے وزګار چرے یم له عشقه۔ ب۔یب۔ رحمان هسے وزګار چرے یم له غمه۔ یو۔ دویمه مصرعه: چه ے غوږ شی الخ۔یو۔ چه ے غوږدوی و ناصح غوندے وزګارته۔یب۔ چه غوږ باسی و ناصح الخ۔ ب۔

۲۵۱- قد که دَ سرو بولم دَ سروے (یون) رفتار نشته۔ ا۔ قد ته که دِ سرو نور دَ سروے رفتار نشته۔ ب۔ قد که دِ سرو بولمه دَسروے یون رفتار نشته۔یو۔ قد ته که سرو بولم (د) سرو یون رفتار نشته۔ و۔ متن مطابق ز۔ ی۔ یب۔

۲۵۲- دَ وړومبئ مصرعے متن مطابق ا، و، ز، ح، ط، یب۔ دویمه مصرعه 'ط' داسے ده: غلط وائی له اوره سره هیڅ دَکیاه کار نشته۔ دَ کابل او اکیډیمی مطبوعه نسخو کښے دا شعر داسے دے:

هرڅوک چه دَستا واتشین رخسار ته کل وائی - پوچ وائی الخ -
یب کښې په دویمه مصرعه کښې دَ "وقر" په ځائې "قدر" راغلې دے.

۲۵۳- دریمه مصرع متن کښې دَ ڵ، ب، و- ن، ی، ط، یب او یو سره مطابق ده دویمه مصرعه "ط" کښې په دارنګ لیکلې شوے ده- "هم په داچه سر په سر منبک او واښهٔ په هیڅ بازار نشته". یو کښې دا مصرعه داسے ده:

څکه چه دَ منبکو له کیاه سره کار نشته

ح، کابل او اکیډیمی کښې دویمه مصرعه دَ متن مطابق او دریمه مصرعه داسے ده: " زلفې دِ ناحقه خلق بولی په سنبل صنم ".

۲۵۴- ڵ کښې دا شعر نشته- دَ "ب" قرأت دا دے:

ماچه غنړ په غوږو واورید ستا دَ سپیو
هسے رنګ دَ بلبل په چمن کښې کفتار نشته

و: ماچه واوریدو غنړ دَ ستا دَ سپیو
هسے رنګ بلبل په هیڅ (چمن) کښې خوشګفتار نشته

متن دَ "ن" "ط" او "یب" مطابق دے- پکار ده (وجه به ئے وروستو ۲۵۷ نوټ کښې راشی) چه دَ متن په هومبی مصرعه کښې آخری "تو دے" حذف کړے شی- مطبوعه نسخو کښې دا شعر داسے دے:

ح: ماچه غنړ په غوږو واورید ستا دَ سپیو
هسے رنګ بلبله په چمن کښې په کفتار نشته

کابل- اکیډیمی: ماچه غنړ په غوږو ستا دَ در دَ سپیو واورید
هسے رنګ بلبله په چمن کښې په کفتار نشته

دَ یو قرأت دا دے:

ماچه غنړ په غوږو واورید ستا دَ سپیو
هسے رنګ بلبل په هیڅ چمن کښې خوش کفتار نشته

۲۵۵- دَ وړومبی مصرعے متن دَ ب، و- ن- ی- "یب" او یو مطابق دے- ڵ کښې دا مصرعه نشته- مطبوعه نسخو کښې دَ "سر په تنه نهٔ وی" په ځائې "سر په تنه پاس نه وی" راغلې دے- په "ح" کښې: ستادیدن هغه کاچه ئے سر په تنه نئی (نهٔ وی) لیکلې شوے دے- دَ دویمے مصرعے متن دَ "ڵ"

"و" او "یو" مطابق دے۔ نورو ټولو مطبوعه او قلمی نسخو کښے "ولے چه
دَ سرو ښښتن حورو وته لار نشته" راغلے دہ۔

۲۵۶۔ دا غیر موزون شعر صرف "ط" کښے راغلے دے۔ موزون صورت ئے
داسے کیدے شی:

دا خو دَ خدائے کار دے چه ئے ستا زنخدان سیب کړه
ورنه کښے دَ سروے کوندے هیڅ دَ میوے بار نشته

۲۵۷۔ دَ متن وړومبۍ مصرعه دَ ا، ب، ز، و، ح، ی، یب مطابق دہ۔ نورو
مطبوعه نسخو کښے دا مصرعه داسے دہ: "یار به دَ رقیب په لوری خدائے نه کړه
رحمانه سم" دوئمه مصرعه په مختلفو نسخو کښے داسے دہ:

ا: ولے چه فرښتیو سره دَ سپیو هیڅ کار نشته
ب، ط: حق دے چه دَ سپیو له فرښتو سره روزګار نشته
ز، یب، یه: حق دے چه د سپیوله فرښتو سره کار نشته
یو: ځکه چه دَ سپیو دَ فرښتو سره روزګار نشته
و: ولے چه له فرښتو سره دَ سپیو هیڅ کار نشته

مطبوعه نسخو کښے دا مصرعه داسے دہ:

ح: ولے چه دَ سپیو فرښتو سره کار نشته
کابل اواکیډیمی: ولے چه دَ سپیو فرښتو سره څه کار نشته

مونږ دَ ز، یب، یه او یو، کښ قرأت بهتر وګڼلو۔

ښاغلو لوستونکو ته اندازه کیږے وی چه دَ قلمی نسخو او مطبوعه نسخو
ترمینځه فرق دَ مطلع نه پس ټولو طاق مصرعو ته محدود دے۔ دَ دے
وجه لکه چه نوټ ۲۵۴ کښے وړاندے اشاره شوے دہ دا دہ چه دَ دے غزل
مطلع ینځلس سیلابیزہ دہ۔ او چونکه دَ ینځلس سیلابیزے مطلع لرونکی
غزل هره طاقه مصرعه دَ څوارلسو سیلابو وی نو دَ مطبوعه ایډیټرانو
غالبًا هره طاقه مصرعه کښے یو یو سیلاب زیات کړے دے۔ ځکه مونږ
نوټ ۲۵۴ کښے عرض کړے وو چه "ما چه غږ په غوږو ستا دَ سپیو
اوریدلے دے" کښے "دے" زائد دے۔

۲۵۸۔ ستا په مخ کښے هیڅ حساب دَ جمال نشته۔ ب، ز، ی۔ ستا په مخ کښے چه

حساب دَجمال نشته - یب -

۲۵۹- وروستۍ مصرعه کښې "سره" دَ "ځنې" یا "نه" یعنې دَ علیت (سبب) په معنیٰ کښې نه بلکه دَ مبالغې دپاره دَ "تول" کرد - بند بند "باهم" په معنیٰ کښې استعمال شوے دے - دویمه مصرعه دَ ز، ی، ط، یب او یو مطابق ده - ا 'و' کښې دا مصرعه داسے ده: "چه ستاویره دَ ثواب و وبال نشته" دَ مطبوعه نسخو قرأت غلط دے -

۲۶۰- دَ 'و' نه بغیر بله یوه قلمي نسخه کښې داشعر نشته وے چاپي نسخو راوړے دے -

۲۶۱- مخ دِ بے خط و بے خاله بنائسته دے - ز - مخ دِ بے خط و بے خاله هسے زیب کا - دویمه مصرعه: چه ئے هیڅ حاجت دَخط او دَخال نشته - یب -

۲۶۲- دے شعر کښې "خریدار" په دوه سیلابیز شکل کښې استعمال شوے دے - دَ 'ب' قرأت دادے: "دَ وفاخریدار دِ بله خواته کرځي" یو کښې دا مصرعه داسے ده: "دَ وفاخریداران دِ بله خوا دروي" ح، کابل او اکیډمي کښې دا مصرعه داسے لیکلے شوے ده: "دَ وفاخریدار بل خواته دِ دروي" - دا قرأت غلط دے -

۲۶۳- جدائي له اشنائۍ نه پیدا کیږي - یو

۲۶۴- ز - ی - یو: چه ئے هیچرته منزل او مکان نشته - "ز" کښې دا غزل دوه ځل راغلے دے - او دواړه ځل دَ "هیچرے" په ځائے "هیچرته" لیکلے شوے دے -

۲۶۵- دلبران که هرڅو ډیر شي په جهان کښې - ط - یب -

۲۶۶- متن دَ ط ی یب یو مطابق دے - ا ب و ز کښې دا مصرعه داسے ده: "چه دے باغ وته ئے لار دَخزان نشته"

۲۶۷- که مجنون غونډے په مینه کښې صادق وي - ب -

۲۶۸- دانایان به دَ رحمان په کار پوهیږي - ب - دویمه مصرعه: دلته کار دَ هر نااهل و نادان نشته - یو -

۲۶۹- دا غزل په دے لحاظ غیر مطبوعه نه دے چه له دے نه اکاهو په

گلشنِ روه او پښتانهٔ شعراء لومړے ځوک کښے چاپ شوے دے۔ لیکن په دے لحاظ غیر مطبوعه ضرور دے چه تر اوسه دَ رحمان بابا په یوه چاپي نسخه کښے نه دے راغلے۔ مونږ دلته دَ "ط" او یو نه رانقل کړو او داسے ښکاری چه 'ط' هم هغه نسخه ده چه ښاغلی راورټي دَ گلشنِ روه او "دَ افغانانو دَ شاعرۍ انتخاب" دپاره پکاروے ده۔

۲۷۰۔ دَ محسن دَ محسناتو صفت څوکرم۔ یو۔

۲۷۱۔ دا شعر په "گلشنِ روه" او "پښتانهٔ شعراء" کښے نشته۔ مونږ دَ "ط" او 'یو' نه نقل کړو۔ دویمه مصرعه: کښے دَ "محبت" تلفظ دَ ننني تلفظ نه بدل دے۔ دلته به دَ "محبت" په دویم سیلاب زور (فشار) اچول پکار دی۔ داسے مثالونه په مرزا خان انصاری، دولت لوانړی او عن، چه په خوشحال بابا کښے هم شته۔

۲۷۲۔ دا غزل صرف په 'ط' او "یب" نسخه کښے وموندلے شو۔ دَ دے غزل مطلع ښاغلی مستشرق برنهارډ دورن په خپل گرامر کښے دَ مثال په طور نقل کړے ده۔ هلته دویمه مصرعه داسے ده: "چه ومرګ ته په تلوار دے ستا له دردهٔ"

۲۷۳۔ دا سرود چه نوم کرم اواز کاندی۔ یب

۲۷۴ لیندو کښے لیکلے شوے تورے "چه" په نسخو کښے نشته۔ مونږ دَ وزن دپاره زیات کړو۔

۲۷۵۔ وړومبۍ مصرعه دَ تیرغزل ودوستی شعر کښے هم راغلے ده۔ دویمه مصرعه کښے 'یب' دَ انګهار په ځائے "هنکار" راوړے دے۔

۲۷۶۔ دا شعراو دَ دے نه پس ته دوه شعرونه په 'ط' کښے نشته۔ "یب" نه رانقل شو۔

۲۷۷۔ مقطع دَ "یب" دَ قرأت مطابق ده۔ 'ط' کښے مقطع داسے ده:

دَ رحمان ناره به څوک په غوږ و واوری
هغه نشته چه دِ نگار دے ستا له درده

۲۷۸۔ څوک چه بے دستاله مخه بل سرکوری۔ ب، یب۔ څوک چه بے دَ ستاله مخه بل خوا کوری۔ ی۔ یو۔ متن مطابق ا (جزواً) و۔ ز۔ ط۔

مطبوعه نسخو کښې دا مصرعه داسې ده :

خوک چه بې دستاله مخه بل ته ګوري ـ ح ـ کابل ـ

خوک چه بې راستاله مخه بل ته ګوري ـ اکيډيمي ـ

۲۷۹ـ هرعاشق چه بخيل يارسره ژړا کا ـ ط ـ

۲۸۰ـ اوس په درست جهان رسوا شوه په غلا نهٔ ده ـ ا ـ

۲۸۱ـ سل ياري دَ يو اشنا دپاره کيږي ـ ز ـ سل ياري دَ يوه يار دپاره کړې شي ـ ط ـ يب ـ

۲۸۲ـ بد له بدو مناسب دي نيک له نيکو ـ ط ـ يو ـ

۲۸۳ـ عشق په پټه خوله دَ بوي په څېر ښکاره دے ـ ز ـ

۲۸۴ دَ عشق رنځ واړه عاشق لره راحت دے ـ ب ـ ط ـ يب ـ دَ عشق رنځ عين عاشق لره راحت دے ـ يو ـ

۲۸۵ـ متن مطابق و ـ ز ـ ی ـ يب ـ عاشقي حرص وهوا دي وبله لرے ـ ب ـ عاشقي حرص وهوا دي څبله لرے ـ ط ـ يو ـ عاشقانو حرص هوا دي بهر لوزي (سم نهٔ ولاړيږي) ا ـ دويمه مصرعه : دَ بيمار په ځان خلواځهٔ پکار نهٔ ده ـ ز ـ يو ـ

۲۸۶ـ ب دا شعر نهٔ لري ـ 'ط' يو کښې دَ "جهان" په ځائے "دنيا" ليکلې شوے ده ـ

۲۸۷ـ متن دَ 'ط' مطابق دے ـ نور قرأتونه په دا رنګ دي :

ا ـ که ئې کړمه هيڅ ئې نه کړمه سوګند دے

ب ـ که ئې کړمه که ئې نه کړم هم سوګند دے

و ـ که ئې کړمه هيڅ ئې نهٔ کړم سوګند دے

ز ـ که ئې کړمه که ئې نهٔ کړمه سوګند دے

ی ـ که ئې کړم هم هيڅ ئې نه کړمه سوګند دے

يب ـ که ئې کړم هم څه ئې نه کړمه باور دے

يو ـ که ئې کړمه که ئې نه کړم خو سوګند دے

۲۸۸ـ دَ دنيا مينه بےکاره اوريده شي ـ ی ـ يب ـ

۲۸۹ـ که رحمان په جهان ډېر بے ثانه پائم ـ ب ـ که رحمان په جهان ډېر پائې دلبره ـ يو ـ

۲۹۰- بے له ماچه ما ژړا کړه تاخندا کړه - یو -

۲۹۱- داخو نهٔ یم چه دِ غم به هوس پیښ م - ز - ط - یو - دویمه مصرعه کښے استعمال شوے تورے "وکړے" تولو نسخو کښے "وکړی" لیکلے شوے دے - خو څرګندہ چه په زړه املا کښے دَ یائے معروف او یائے مجهول ترمنځه هیڅ فرق نه وو ځکه نو مونږ موجوده صورت غوره وګڼلو -

۲۹۲- زه رحمان چه ستا دَ حسن تنا ګوئے شوم - ط - یو -

۲۹۳- 'ز' کښے دَ 'بار' په ځائے "وار" راغلے دے - ا کښے دا غزل نشته نور و تولو نسخو کښے مطلع دغسے ده لکه چه متن کښے راوړے شوه - ب کښے دَ مطلع وړومبی مصرعه داسے ده : "بار تر یے وجار باسه زراعت کړه" - مطبوعه نسخو کښے "باره وتړه الخ" غلط قرأت دے -

۲۹۴- لا یخوا ترخلقو چیل ځان ملامت کړه - یب -

۲۹۵- ج، ط، ی، یب، یو مطابق دَ متن - لکه چه په ۲۹۳ کښے وویئیلے شو ا کښے دا تول غزل نشته - ب او د کښے دا شعر نشته - و، ز کښے البته "څو به کورے دَ قیامت و ورځو شپو ته" راغلے دے -

۲۹۶- که حق غوارے نهٔ هم مټ په حقیقت کړه - د -

۲۹۷- تهٔ هم پورته دَ هغو په خیر همت کړه - ج، ی -

۲۹۸- څو دِ حق موندلے نهٔ دے غره مه شه - ب - څو دِ حق موندلے نهٔ دے مه جار ووځه - یب - یو - څو دِ حق موندلے نهٔ دے مهٔ نازیږه - ط - متن مطابق د - و - ز - ی - دا خبره دَ یادولو ده چه ز نسخه کښے ناقل اول "مه نازیږه" لیکلے وو بیائے هغه وران کړے او دَ هغے په ځائے "بے غم مه شه" راوړے دے -

۲۹۹- عمر هیڅ ماتلی (معطلی) نه کاندے تلوار کړه - یو -

۳۰۰- متن مطابق ا ب و ز - هر دم تیغ دے زما ستا په ګلو ګرځی - ط - ی - یب - یو - هر دم تیغ دَ ستا زما په ګلو ګرځی - ه - مطبوعه نسخے -

۳۰۱- ترخودی په هورته بله ګناه نشته - ط -

۳۰۲- متن مطابق ا، و، ز، ط - ی، یب - یو - مدّعی چه په خوله ورشی هغه وائی - ب - دَ مدعی په خوله چه ورشی هغه وائی - ه -

۳۰۳- چه دِ پس مرګه یار وی هغه یار کړه - ا، و - یو -

۳۰۴- که مے شی په داڅړا صنم تازه - یب -

۳۰۵- راکوی یو نوے غم زیرے دَ وصل - ا - یب - رغوی دَ زړهٔ پرهر ملهم تازه - ج - ی -

۳۰۶- اے زما دَ دِل آرامه راشه راشه - یب -

۳۰۷- متن مطابق ز - ط - ی ، یب ، ید - یو - چه همه خوبان دِ واړه مقتدیان دی - ا - چه همه واړه خوبان دِ مقتدیان دی - ب - و - ه -

۳۰۸- دَ مستانو احترامه راشه راشه - و - ه - دَ عشاقو احترامه راشه راشه - ط - دَ عاشقو الخ - یو -

۳۰۹- خدائے زده بیا به داساعت وی که به نهٔ وی - یب -

۳۱۰- شپه لاپرین ده رڼا ورځ په ما تیاره شوه - تیاره وه (دوئیم قرأت) - ب - شپه لاپرین ده رڼا ورځ راباندے شپه وی - یو -

۳۱۱- دا ترخے اوبهٔ به څه کړے دَ دے دهر
خو بخپله دَ کوهر په ځیں ابدار شه - ز
دا ترخے اوبهٔ به څو څښوے دَ بحر - ید - دوئیمه مصرعهٔ یدٔ کښے دَ متن مطابق ده -

۳۱۲- متن مطابق ا - ز - ط - ی - یب - لا ترځان ولاړ وړوڅے دَ بل په کار شه - و - ید - لا ترځانه وړوڅے لاړ دَ بل په کار شه - ب - لا ترځان وړوڅے روان دَ بل په کار شه - د - دَ متن مصرعه په دے شکل هم دَ لوستلو ده : "لا ترځانه وړوڅے ؤلاړ دَ بل په کار شه"

۳۱۳- که هوا دِ دَ جنت په خاطر وُوری - ط -

۳۱۴- که په توره تاریکه کښے رڼا غواړے - ط

۳۱۵- متن مطابق ا ب و ز ی یب ید - که دَ یار دَ لعلو لبو خواړهٔ غواړے ط -

۳۱۶- که دِ زړه وی چه دِ باغ شی دَ زړهٔ سبز - ید -

۳۱۷- که څوک وائی عاشق روند دے هغه خوار شه - ب - دَ ا په نسخه کښے حاشیه کښے مقطع داسے لیکلے شوے ده :
دَ طالب په عاشقی (کښے) سترګے وشوے چه څوک وائی طالب روند (و)ی هغه خوار شه

شاید چه "طالب" دَ نسخه نویس خپل نوم یا عرف وی او هغهٔ حاشیه کښې دااضافه دَ خپل "درد دَ اظهار" دپاره کړے وی۔

۳۱۸- دَ خورشید په سرچشمه باندے آشام شه ۔ ط ۔

۳۱۹- دَ صیّاد له وحشتونو امان غواړه ۔ یب ۔

۳۲۰- په نیستئ کښې دِ هستیه درځه کوره ۔ ط ( درځه : دَرَجه) ۔ دویمه مصرعه کښې ل ، ن ، ی دَ "ویرانه" په ځائے "ویرانئ" راوړے ده۔

۳۲۱- و دښمنه ته عیب خپل په خپله وایه ۔ ط ۔ یب ۔ یو دا مصرعه مطبوعه نسخو کښې "وَ دښمن ونه حال خپل په خپله وایه" (ح کامل ، ." وَ دښمن وته خپل حال په خپله وایه" (اکیډیمی) راغلے ده۔ دویمه مصرعه کښې د "ووړنه" په ځائے "ط" کښې "ووژله" لیکلے شوے دے ۔ ل ، و ، ط کښې دَ "ښخوا ترمرګه" په ځائے "ترمرګه ښخوا" راغلے دے۔

۳۲۲- وړومبې مصرعه ټولو مطبوعه نسخو او "یو" کښې داسے راغلے ده :

اے رحمانه دَ بلبلو ژبه زده کړه

ط کښې دَ مقطع دویمه مصرعه کښې دَ "دغه پسه" په ځائے "له غه پسه" لیکلی شوی دی۔

۳۲۳- وړومبۍ مصرعه مطابق دَ ل ب د و ن ط ی یا یب یه ټولے قلمی نسخے ماسوا دَ ه ید چه دا غزل نه لری) او دَ ح دَ مطبوعه نسخے ۔ کابل او اکیډیمی کښې په دارنګ ده : "په امید دَ اننده ؤ زړه ورمه شه" دویمه مصرعه کښې "حُبله" دَ ل ، ن ، ی او "یب" قرأت دے ۔ ټولو مطبوعه نسخو کښې هم "حُبله" دے ۔ البته ب او "یه" کښې وبله "د" کښې "ته وبله" او "و" کښې "خپل" لیکلے شوے دے ۔ دَ "و" قرأت هم دراصل "حُبلهٔ" دے ۔ خو ناقل "حُبله" "خپله" لوستلے او ځکه دغسے ئے لیکلے دے ۔ ط کښې مطلع او وروستے شعر نشته ۔ "کابل" کښې دَ "نقد نسیا" په ځائے "نسیا نقد" او اکیډیمی کښې "نصیبه نقد" چاپ شوے دے۔

۳۲۴- دَ دنیا بادشاهان خواست کاله فقیره ۔ ط ۔ یو ۔

۳۲۵- حیوانان هم په تسبیح دَ خدائے مشغول دی ۔ ن ۔ ط ۔ یه ۔

۳۲۶- دا شعر صرف دَ "ط" او "یو" نسخو کښې وموندے شو۔

۳۲۷- تپ راندہ وی عاشقان دَ یار پہ عیب - یو -

۳۲- غم دَ دین او دَ ایمان خورہ - ا (حاشیہ) - ن - مطبوعہ نسخے -

۳۲۹- ھر مرغہ چہ دَ بل غو بنے خوری حرام دے - ن - ځان حلال کرہ لکہ زانہ شہین مہ شہ - د - ز -

۳۳۰- لاس پہ بدیرۂ کرہ الخ - ط - لاس پکبنے کرہ الخ - د - لاس دننہ کرہ الخ - یو -

۳۳۱- عاشقی او خودبینی دی ځبلہ لرے - ط -

۳۳۲- خپل تابوت زین کړے اس درتہ ولاړ دے - ط - یو -

۳۳۳- دَ دے ھسے ھم نشینو نشین مہ شہ - ی - مطبوعہ نسخے - ا کبنے دا مصرعہ داسے لیکلے دہ : دَ دے ھسے ھم نشینہ ھم نشین مہ شہ - 'و' کبنے ئے دا قرأت دے : "دَ دے ھسے ھم فشین دِ نشین (یا دِ لنشین) مہ شہ -

۳۳۴- دا غزل صرف دَ "ط" او "یو" پہ نسخو کبنے وموندلے شو - نورو قلمی نسخو کبنے دا غزل نشتہ - مطبوعہ نسخو کبنے دَ کابل او دَ اکیدیمی پہ متن او دَ ح پہ حاشیہ لیکلے شوے دے - دَ دوی دَ باھمی فرق پہ حقلہ پہ ھر متعلقہ شعر نوټونہ لاندے وخیری - قلمی نسخہ 'ط' کبنے مطلع دَ متن مطابق دہ - دَ 'یو' 'ح'، کابل او اکیډیمی مطلع پہ دارنگ دہ :

ھر ساعت چہ څہ گذران دے بے مخلصہ

ھزار بار ارمان ارمان دے بے مخلصہ

۳۳۵- دَ شعر متن دَ 'ط' او کابل مطابق دے - کہ څوک وائی چہ تر ځانہ شیرین نشتہ - یو - 'ح' کبنے وړومبی مصرعہ داسے دہ : کہ څوک وائی چہ تر ځان څہ شیرین نشتہ - اکیډیمی کبنے دا مصرعہ داسے دہ :

"کہ څوک وائی چہ لہ ځانہ شیرین نشتہ"

۳۳۶- متن مطابق 'ط'، یو او اکیډیمی - ح کبنے وړومبی مصرعہ داسے دہ :

لکہ شمع دَ وږځ مرمہ دَ شپے سوزم"

کابل کبنے داسے دہ : لکہ شمع پہ ورځ مرم و دَ شپے سوزم -

۳۳۷- متن مطابق 'ط' - ټولو مطبوعہ نسخو او 'یو' کبنے وروستی مصرعہ داسے دہ : "پہ ما کل وارہ خزان دے بے مخلصہ"

۳۳۸- متن مطابق ط، یو، ح - کابل او اکیډیمی کبنے "ډیر غمونہ دَ ھجران

رابانده تیر دی" لیکلی شوی دی۔

۳۳۹ - متن مطابق 'ط' او 'ح' - "چه ژوندون ورته اسان دے بے مخلصه" کابل - اکیډیمی او 'و' کښے دا مصرعه داسے ده: "چه زیست ورته اسان دے الخ"۔ 'ح' کښے د مقطع او د هغے نه د وړاندنی دوه شعرونو وروستی مصرعے په پریکون کښے وهلی شوی دی۔

۳۴۰ - دا غزل د رحمان بابا په متنازعه فیه غزلونو کښے دے - په مطبوعه نسخو کښے صرف د اکیډیمۍ په مطبوعه نسخه او د اداره اشاعت سرحد چاپي نسخو کښے (چه د هغے په بنیاد د پښتو اکیډیمۍ نسخه ایډیټ شوے ده) دا غزل موندے شي - له ټولو زړه چاپي نسخه 'ح' دا غزل نۀ لري۔ د غسے د کابل چاپي نسخه کښے هم دا غزل نشته۔ قلمي نسخو کښے بغير د 'و' نه یوه نسخه کښے هم نه یافتیږی - مونږ ئے دلته صرف د 'و' په سند رانقل کوو - خو ښاغلی لوستونکو ته دا خبره هم په گوته کوو چه د 'و' قلمي نسخه، د اداره اشاعت سرحد او د پښتو اکیډیمی مطبوع نسخو کښے د دے غزل نه اګاهو "ما به وله اه فریاد کړ فغان دریغه" غزل هم نقل شوے دے - او هرکله چه دا غزل د دولت لواني دے (وګورئ د دولت لواني دیوان مطبوعه کابل ۱۹۷۵/۱۳۵۳ ص ص - ۳۵ - ۱۳۴) نو ځکه موخپله نسخه کښے شامل نه کړو - ګمان کیدے شي چه دا غزل هم رونیانیانو کښے د کوم یو شاعر غالباً مخلص (چه مقطع کښے د ده د نوم په ځلئے رحمان اسانۍ سره دا خلید ے شي) دے - والله اعلم بالصواب۔ د مخلص تپاسې شوے نسخه چه په پښتو اکیډیمۍ کښے پروته ده دا غزل نۀ لري۔

'و' کښے د مطلع دوهمه مصرعه نشته - د اداره اشاعت سرحد او د اکیډیمۍ په نسخو کښے (چه مونږ د اداره د اکیډیمی د نسخے په حیثیت په دے نوټونو کښے یادے کړے دی) دوهمه مصرعه داسے ده:

"که یو ځل ے هغه یار ولید ے دریغه"

خو هرکله چه ټول غزل کښے سرګردان، پیکان وغیره قافیه ده ځکه نو مونږ د "یار" تورے د قافیے دپاره "جان" کړو۔

۳۴۱- مطبوعہ نسخو کښے دا شعر داسے دے :

"چہ دَ تمام جهان عقل غلبیل کړمه
ریز مریزه ے پیکان ولیدے دریغه"

دواړه حالته کښے شعر نهٔ خهٔ معنیٰ ښندی او نهٔ ئے وزن سم دے۔

۳۴۲- متن دَ 'و' مطابق دے۔ دَ چاپی نسخو قرأت دا دے :

روغ صورت لکه بادشاه صحت ئے تخت دے
ناست په تخت ے شاه جهان ولیدے دریغه

(اکیډیمی - ادارهٔ اشاعت سرحد)

۳۴۳- دَ دے شعر مطبوعه شکل دا دے : لکه زهٔ چه له مخلوقه کریزان یم ؛ سک ے هسے الخ - 'و' کښے وړومبی مصرعه داسے وه : "لکه زهٔ چه له خلق کریزان یم"۔ دَ وزن دپاره مونږ دَ "له" او "خلق" ترمنځه "دے" زیات کړو - بنائی چه دا مصرعه داسے وی :

"لکه زهٔ ئے چه له خلقه کریزان کړم"

۳۴۴- مطبوعه نسخه او 'و' کښے دا شعر هم په دے صورت کښے او بے معنے دے۔

۳۴۵- متن دَ ادارهٔ اشاعت سرحد دَ مطبوعه نسخے دَ قرأت مطابق دے۔ 'و' کښے دا شعر داسے دے : "سخت ساعت څکه اسمان راته یکسان کړ ؛ فرق دا زمکے او اسمان ولیدے دریغه" دَ اکیډیمی نسخه کښے دَ دوئمے مصرعے قرأت دَ 'و' مطابق دے۔

۳۴۶- نقل مطابق - و - چاپی نسخو کښے دَ دوئمے مصرعے قرأت دا دے :-
چرے حیران صورت الخ۔

۳۴۷- دَ اکیډیمی نسخه : دَ اشنا زلفے ولیدے په لاس کښے - دَ ادارهٔ اشاعت سرحد چاپی او دَ 'و' قلمی نسخه کښے دا شعر داسے دے :-
"د اشنا زلفے ونیوے په لاس کښے ؛ پند یلار دَ هندوستان الخ"
مونږ دَ "پند یلار" توره "بندی لار" پاخولو او دغه صحیح ښکاری۔

۳۴۸- "په دا کارے څان مهمان ولیدے دریغه" مطبوعه نسخے۔

۳۴۹- درخانی او ادم خان په ارمان لاړل - مطبوعه نسخے۔

۳۵۰- مخامخ مې گفتگوې دَ يار سره کړه ؛ دَ يار ما دغه احسان وليدې دريغه.
مطبوعه نسخې.

۳۵۱- چه خطا دِ واړه عفوه کړې رحمانه ؛ يارې هسې مهربان وليدې دريغه.
مطبوعه نسخې.

۳۵۲- شکايت به په قضا کوې تر کومه. ب.

۳۵۳- دا غزل صرف دَ 'ط'، 'يو' نسخو کښې وموندلې شو.

۳۵۴- متن دَ 'يو' مطابق دې. دَ 'ط' قرأت دا دې "يو مخ ئې دَ سوزه دې سل مخ ئې دَ سايئې دې".

۳۵۵- دا شعر 'يو' کښې نشته. متن دَ 'ط' مطابق دې.

۳۵۶- څه شو که ئې نام دَ خار دې خار ئې مه گڼه. يو.

۳۵۷- پوه خلق هغه دی (چه) خپل بد ورڅرگند نه وی ؛ هرچه ځان بدکار گڼي بدکار ئې مه گڼه. يو. "پوه خلق هغه دی" نه پس تر حصه دَ راتلونکی شعر ده چه 'يو' کښې نشته او له 'ط' څخه رانقل شو.

۳۵۸- هرچه کمال غواړی کمينی دِ دَ رحمان کا. يو.

۳۵۹- دا شعر دَ 'ح' 'ن' بغيره يوه مطبوعه نسخه کښې هم نشته. دَ 'ا' په حاشيه کښې دَ "خپل يار" په ځائې "جانان" ليکلې شوې دې.

۳۶۰- دا مصرعه په اکثرو قلمی نسخو کښې داسې ليکلې شوې ده: "عاشقی چه مې له خلق په غلا غلا کړه" دَ نړې املا مطابق دا تورې خلقه هم لوستې شی او خلقو هم. 'ن' کښې دَ "خلقُ" په صورت راغلې دې، ځکه نو مونږ "خلقو" وليکلو.

۳۶۱- متن مطابق 'ا ج- ن- ی'. څه بهره به له نسيا ماملو مومم. يب. څه بهره به له نسيا ماله بيا مومم. ب. څه بهره به له نسيا غمونو مومم. ط.

۳۶۲- په نصيب مې بله نه شوه دا وړه داشوه. ب.

۳۶۳- يويو برخه هرسړی له خدائې ورکړه. دويمه مصرعه: زما برخه اشنائی دَ هر اشنا شوه. يب. زما برخه اشنائی له خپل اشنا بشوه. ا.

۳۶۴- دَ تدبير په دام به څه رنگه کښيوځې. يو.

۳۶۵- عاشقی نه وه زما په باب کيميا شوه. يو.

۳۶۶۔ چہ عاشق لرہ هم درد شوه هم دوا شوه ۔ ا ۔ یو ۔

۳۶۷۔ دَ مرغونو پہ رحمان باندے ژړا شوه ۔ ا ۔ ز ۔ یب ۔

۳۶۸۔ بے مرشده څوک خبر دَ مرید اخلی ۔ ب ۔ ج ۔ ن ۔ یو ۔

۳۶۹۔ ملاحظہ بہ "ملازه" لوستلے شی ۔ ستاله ستر کو ے هر کور ملاحظہ شی ۔ یو ۔

۳۷۰۔ دغه تاج دِ دَ بزرگانو په سر بویه ۔ ج، ن، ی ۔

۳۷۱۔ چہ خبر دَ رحمان نہ اخلی جان بد کا ۔ ا (حاشیہ)

## ع

۱۔ متن مطابق د، و، ز، ی، ط، یب، یو ۔ دَ ب پہ نسخہ کښے دا غزل نشته ۔ دَ مطلع دوئمه مصرعه په "ن"، "ط" او "یو" کښے دا سے ده : کله مړله لوبے کله مرے پہ ډیر خوارهٔ ۔ ا کښے مطلع دا سے ده :

"چرے پہ غارمہ سوزے کله ریبږ دے په سارهٔ
کله مرے لہ لوبے تندے کله مړ په ډیر خوارهٔ"

وروستی مصرعه کښے مړ "مر" لیکلے شوے دے چہ مړ او "مرے" دواړه لوستلے شی ۔

۲۔ ه ۔ د ۔ یب : کله لاس پہ سر وبله کیږدی تواضع کا ۔ کله لاس په سر په سینه کیږدی الخ ۔ ز ۔ متن (دَ وړومبے مصرعے) مطابق دَ ا، و، ط ("و" کښے خپله لیکلے شوے دے چہ دَ "حُبلہ" دپاره دکتابت غلطی ده) ۔ دوئمه مصرعه مطبوعہ نسخو کښے : "کله وبله لاس کیږدی پہ توره پہ چارهٔ" متن مطابق ا، د، و، ز، ی، یب، ط، یو ۔

۳۔ ټولو قلمی نسخو کښے "خاورے دَ آدم چہ خمیر کړ فرښتګانو" لیکلے شوے دے ۔ موږ "خمیره کړے فرښتګانو" ځکه غوره وګڼلو چہ اول خو زَړه املا کښے "خمیر" او خمیره یو شان لیکلے شوه، او بله دا چہ رحمان بابا "فرښته" دوه سیلابیز صورت کښے پکار وی نو چہ "فرښتګانو" ولوستلے شی نو "خمیر" بہ خامخا "خمیره" لوستل پکار وی ۔

۴۔ دَ وړومبے مصرعے متن دَ ا د و ن ط ی یب یو مطابق او دَ دوئمے مصرعے متن دَ "یو" مطابق دے ۔ دَ دوئمے مصرعے نور قرأتونہ دا دی :-

"پیبنی به شی هغه چه واهه شی هم تاره" ا و ن - پیبنی به شی هغه چه هم واهه شی هم تاره - د ط ی یب - دَ چاپي نسخو قرأتونه دا سے دی : پیبنی به شی هغه هم واهه شی هم تاره - ح - پیبنی به په هغه شی چه واهه شی هم تاره - بینوا (کابل) پیبنی به په هغه شی چه واهه شی هم تاره - اکیډیمی -

۵- سخ دَ هغه چادے چه په در کښے ئے قبول شه - یو - دوئیمه مصرعه "ز" کښے دا سے ده : زار دَ هغه چادے چه له دره شی شاره -

۶- ما عبد الرحمان غوندے لبیک ورته سل وائی: خدائے خبر چه کوم یو هغے ترکے وه لاره - ن - ما (عبد) رحمان غوندے لمبے کړه ورته سلو : خدائے خبر چه کوم یو هغے ترکے ویلاره - ط - یو - دَ 'ط' او 'یو' "لمبے کړه" شاید چه دَ 'ن' "لبیک" وی - متن مطابق ا ، و ، ی ، یب -

۷- دا غزل صرف دَ 'ط' په نسخه کښے وموندے شو -

۸- قلمی نسخه کښے صرف دا الفاظ لوستلے شی : "دَ عاشق ........ په هسے کار شه" "وته خفگان" مونږ زیات کړو -

۹- قلمی نسخه کښے "دَ کیږدی" په ځائے "کیږی" دے -

۱۰- اصل کښے "ته چه ځان الخ" دے -

۱۱- دے مصرعه کښے څه کمے شته - اصل نسخه کښے هم دغسے دے لکه چه نقل شو - مناسبه چه مصرعه دا سے وی : یار بے نیاز دے له هرچا ځنے رحمانه -

۱۲- له دے دردِ بے درمانه وائم شه - یب - ح - له دے دردِ بے پایانه وائم شه - ط -

۱۳- دَ عشق راز چه چائے نهٔ دے بیان کړے - ب -

۱۴- دَ اشنا له غمه درست په اوښیو ډوب یم - ط -

۱۵- سرو مال دَ سپی یوسی زړهٔ ئے لوټ کا - ی -

۱۶- هرچه وائم ترهمه واړه بهتر دے - ا - دوئیمه مصرعه : زهٔ رحمان به له جهانه وائم شه - ب -

۱۷- ستا په غم کښے چه ے وینی عالم ژاړی - ط - ید - یه - ستا دَ غم کښے چه ماوینی الخ - یو - دوئیمه مصرعه : ژړوے رایاندے نورعالم په شه - یو -

۱۸- وَ دے خپلو برندو ستر گوته ډِ وایه - ز- ط- ید- یه- یو-

۱۹- ستمگار چه ستم کاندی څهٔ بهانهٔ کا- ب- ستمگار چه ستم کا څهٔ خو بانه کا- ی-

۲۰- ب، ط، ی، یب، ید، یو کښے دا شعر نشته - 'ن' کښے وړومبی مصرعه دا سے ده: "زهٔ رحمان پخپله کرم یم چه میړٔ یم-

۲۱- لږ ئے وپښتئ چه حال ئے دَ زړهٔ څهٔ دے- ن-

۲۲- زهٔ هر صبح و شام وتا وته دعا کړم- ز- یب- دوئمه مصرعه: ته وما وته تل کړے دشنام په څهٔ- یو-

۲۳- متن مطابق و- ن- ی- یب- یو ساعت راسره نهٔ شوے رام په څهٔ- ب- یو ساعت راسره نهٔ رام په څه- ا- دا قرأت هم غالباً چه دَ متن مطابق دے- ځکه چه دَ زړے املا مطابق "نهٔ ئے" "نهٔ" هم لیکلے کیدے شو-

۲۴- چه دائم راسره دروے مخ په وړاندے- ب- ط- ی- همیشه راځنه دروے الخ- ز- یو-

۲۵- راته وایه زهٔ به هم هغه څه کړمه- ب- یب- راته وائے زهٔ به هیڅ وتا درنه کړم- ط- یو- راته وایه هم هغه به کړم دلبره- ی-

۲۶- لږ پوهین کړه له رقیبه دَ خدائے زور دے- ا- لږ پوهین کړه له رقیبه روی دَ خدائے دے- ز- لږ پوهین له رقیب کړه دَ خدائے له ویرے- ی- لږ پوهین کړه له رقیب دَ خدائے دپاره- یب- یو- متن مطابق ب، و، ط (او جزواً ن)

۲۷- رحمان بستا په مخ بے زلفو هم میړٔ دے- ب-

۲۸- وړومبی مصرعه- ن: چه غرقاب شی تورمژگان په یم دَ زړهٔ-

ه- ط: چه غرقاب شم تورمژگان په نم دَ زړهٔ

ا، ب، و: چه غرقاب شی ترمژگان په یم دَ زړهٔ

ی: چه غرقاب شی ترمژگان په نم دَ زړهٔ

دوئمه مصرعه ا- ب، و، ط- یب: نورخراب شی خانمان په یم دَ زړهٔ

ه- ی: نورخراب شی خانمان په نم دَ زړهٔ- متن کښے اوله.

مصرعہ دَ قلمی نسخو دَ اکثریت او دوئیمہ مصرعہ دَ اقلیت مطابق (دَ قافئے لہ رعایتہ) ولیکلے شوہ۔

۲۹۔ متن مطابق ز، ط، ی۔ "یب"۔ یو۔ چہ ئے عرش و کوسی لاندے تر قدم دی۔ ا، ب، ھ، د۔ دوئیمہ مصرعہ: بالا تر دے ھسے شان قدم دَ زړۀ۔ ا، ب، ھ، و، یو۔

۳۰۔ 'ر' کښے دا شعر پہ دے صورت راغلے دے:

دا مکان چہ دَ اسمان مکے تر میان دے
یو خلوت دے دا مکان سنم دَ زړۀ

وړومبی مصرعہ کښے دَ 'مکے' لفظ دَ "زمکے" پہ ځائے دَ کتابت غلطی دہ دوئیمہ مصرعہ کښے دَ "سلم" پہ ځائے راغلے تورے 'سنم' او 'صنم' دواړہ لوستلے شی۔ خو پہ ھر صورت ئے معنیٰ جوړتہ نۀ دہ۔

۳۱۔ متن مطابق ا، ب، ھ، و، ر۔ دَ 'ملھم' پہ ځائے پہ ط، ی، یب، یو کښے مرھم راغلے دے۔

۳۲۔ صورتی ھمدمان ډیر دی پہ دنیا کښے۔ ط۔ یب، یو۔ دوئیمہ مصرعہ کښے دَ ھمدم پہ ځائے ا کښے "ملھم" دے۔

۳۳۔ کہ دِ موم پہ دروغ یا پہ رښتیا زړۀ۔ یو۔

۳۴۔ متن مطابق ا، و، ر، ی، ط، یو۔ مطبوعہ نسخو کښے دا مصرعہ داسے دہ:
دا وړندے وعدے چہ تہ کوے صنمہ۔

۳۵۔ دا شعر صرف دَ 'و' پہ سند رانقل شو۔ نورو قلمی او مطبوعہ نسخو کښے نشتہ۔

۳۶۔ متن دَ یو مطابق دے۔ دَ ا دو ر ی قرأت دا دے: "غوځ کړم غوځ کړمہ دَ ستا ډیرے حیا زړۀ"۔ دغہ دَ کابل او ح قرأت ھم دے۔ دَ اکیډیمی چاپی نسخہ کښے مصرعہ داسے دہ: غوځ کړم غوځ کړمہ دے ستا ډیرے حیا زړۀ۔

۳۷۔ کہ خوک قیاس زما دَ ډیرو اوښیو کاندی۔ ز۔ یب۔

۳۸۔ چہ رحمان دَ یار ثنا کولے نۀ شم۔ ز۔ ط

۳۹۔ متن (دَ وړومبی مصرعے) مطابق دَ ا و ط ھ او ی۔ (ی کښے دَ دے غزل

په متن کښې خو مصرعه داسې ده: "یا طالع دَ زمانې یا بخت زما دې" خو دَ دې نه پس ته غزل ($\frac{۹}{۲۲۹}$) کښې یو حُل بیا دا مصرعه زموږ دَ متن مطابق هم شته. ب - ی - یو کښې په دې صورت راغلې ده: "یا طالع دَ زمانې یا بخت زما دې" دویمه مصرعه په 'ب' او 'ط' کښې داسې ده: چه داهسې رنګ شیرین پسر پیدا شه" 'ی' نسخه کښې $\frac{۹}{۲۲۹}$ غزل کښې په غلطۍ سره دا شعر راغلې دې. هلته دویمه مصرعه په دې رنګ لیکلې شوې ده:

"چه داهسې رنګ شیرین دلبر پیدا شه"

۴۰- دریغه نخل دَ عشق نه وې زرغون شوې - و - دریغه نخل دَ عشق مه وې پیدا شوې - ط - دریغه نخل دَ عشق نه وې پیدا شوې - یو -

۴۱- دَ نااهلو زویو پلار الخ - ب -

۴۲- په هر تن کښې چه دغه اثر پیدا شه - ز - یو - په هر تن کښې چه دَ عشق اثر پیدا شه - یب -

۴۳- چه هنر عیب کوی عیب ئې هنر کا - ی -

۴۴- چپ وښمې دَ حبشو الخ - یو -

۴۵- وَ هر لورته چه غوږ باسمه غوغا ده - ه - دویمه مصرعه: یا نارې دَ بیلتانهٔ دی چه محشر شه - ه -

۴۶- چه په رغوندې رحمان ته نصیحت کړ - یو -

۴۷- دا شعر په ا، ب، و، ز، ط، ی، یب، یو کښې نشته. البته مطبوعه نسخو رانقل کړې دې -

۴۸- ا کښې وړومبۍ مصرعه داسې ده: دَ عشق زخم به دِ څوک (ځه) کنډی رحمانه - دویمه مصرعه کښې اکثرو قلمي نسخو وړومبۍ پرهر "پرهار" لیکلې دې -

۴۹- چه نصیب ئې سینه چاک او زړهٔ افکار شه - ی - چه نصیب ئې سینه چاک و دل افکار شه - یو -

۵۰- عبادت دَ ریا کار و په کار نه دې - ط - یب - ید - عبادت دَ ریا بیځ رنګ پکار نه دې - یو -

۵۱- لکه مال دَ خمرو خرڅ دَ خمرخوار شه - ب -

۵۲۔ لکہ گنج د کتابونو دَ خرڅ بار شہ۔ ا، ب، ط، یو۔

۵۳۔ چیرے وای و نااهل و ناقابل تہ۔ ط۔ ی۔ یب۔ ید۔ یو۔

۵۴۔ هیڅ مے نہ زړہ نہ یو هیبرم څہ اندیو شہ۔ و۔ ن۔

۵۵۔ چہ پہ تیغ مے لوبے کړے سزا مے داوہ۔ ن۔ ی۔ چہ پہ تیغ مے لوبے کړے سزا مے دادے۔ ا۔

۵۶۔ وړومبۍ مصرعہ کښے دَ ا پہ متن کښے "ورنہ شی" او پہ حاشیہ کښے کښیښوڅی دے۔ دوئیمہ مصرعہ پہ مختلفو نسخو کښے داسے راغلے دہ:
اوس بہ حال وچاتہ څہ وایم چہ تیر شہ۔ ب۔ اوس بہ حال وچاتہ څہ وایمہ تیر شہ۔ ن۔ اوس بہ څہ وایم وچاوتہ چہ تیر شہ۔ ط۔ اوس بہ څہ وچاتہ وایمہ چہ تیر شہ۔ ی۔ متن مطابق دَ ا، و، یب، یو دے۔

۵۷۔ دا شعر پہ یوہ قلمی نسخہ کښے هم نشتہ۔ دوئیمہ مصرعہ کښے دَ کابل پہ نسخہ کښے دَ لذت پہ ځائے دولت دے۔ مونږ دَ 'ح' او "اکیډیمی" متفقہ قرأت غورہ وګڼلو۔

۵۸۔ چرے نہ پہ جفایاد نہ پہ وفادے۔ ط۔ ی۔ چہ مے نہ پہ وفایاد نہ پہ جفاوی۔ و۔ چرے نہ پہ وفایاد نہ پہ جفایم۔ ھ۔ متن دَ ا، ب، و، ن او یب مطابق دے۔

۵۹۔ دَ دے غزل ردیف 'یہ' کښے شی دے۔ دَ 'یو' نسخہ کښے دَ مطلع وړومبۍ مصرعہ کښے هم 'شی' ردیف دے۔ دَ "شی" ردیف دَ دے غزل هر شعر سرہ ممون خوری۔ البتہ 'شہ' دے شعر کښے اوبرہ لګی:

کمینیہ لہ جملہ افتہ خلاص کړم
لکہ خاورے دَ دښمنو پہ چشمان شہ

۶۰۔ خراب دل چہ مے ژړل الخ۔ ا۔ یب۔ یہ۔ خراب دل مے چہ ژړل الخ۔ ط

۶۱۔ دا شعر صرف پہ 'ط' کښے بیاموندے شو۔

۶۲۔ ټولو قلمی نسخو کښے "لہ افت" او مطبوعہ نسخو کښے "لہ افتو" او "لہ افتونو" دے۔

۶۳۔ متن صرف دَ 'ط' مطابق دے۔ دَ نورو نسخو قرأتونہ دادی:
دَ غصے زهر ئے شهد شو لہ صبرہ بہ دَ خلیل پہ خیر اتش پر ګلستان شہ۔ ا۔

دَ غصے زهر شهد شي په صبر – دَ خليل په خير الخ ـ ج

دَ غصے زهر ے شهد شو له صبره – دَ خليل په خير الخ ـ د

دَ غصے زهر ے شهد شو په صبر – دَ خليل په خير – و ـ ن ـ ى ـ يه

دَ غصے زهر ے شهد شي په صبر – دَ خليل په خير اتش ئے گلستان شهٔ ـ يب

۶۴ـ دا شعر صرف دَ 'ط' نسخه کښے وموندلے شو ـ

۶۵ـ دا شعر صرف دَ 'ط' نسخه کښے وموندلے شو ـ

۶۶ـ اوله مصرعه : رنځور بے ترخو دارو کله رغيږى ـ يه ـ
رنځور بے ترخو دارو نه نهٔ رغيږى ـ ط ـ دويمه مصرعه : دا ستا لوز
مے هم درد شه هم درمان شه ـ ز ـ دا دارو دى چه هم درد شه هم
درمان شه ـ يو ـ

۶۷ـ چه ئے ستا دَ زلفو بوى تر سپين مو تير شه ـ ط ـ چه دا ستا دَ زلفو
بوئى وربانده راغے ـ يو

۶۸ـ دا شعر په ا، د، ج، و، ن، ط، ى، يب، يد او 'يو' کښے شته خو يو ے
مطبوعه نسخه کښے هم نشته ـ

۶۹ـ متن مطابق ا، ج، د، ز ـ چه ئے خير ے وړو مے چاک تر گريبان شه ـ و
دَ 'و' قرأت هم داسے ښکارى چه دَ متن مطابق دے ـ ځکه چه په دے
صورت کښے مصرعه بے معنى ده ـ ښائى چه "خيرے" دَ "خپسر" غلط املا
وى ـ مطبوعه نسخو کښے مصرعه داسے ده : چه ځيګر ئے وړو مے چاک تر
گريبان شهٔ ـ دَ 'يو' قرأت دا دے : چه ځګر ئے وړو مے الخ ـ

۷۰ـ مردهغه دے چه په زيرمه دَ خپل شان شه ـ ط ـ

۷۱ـ بت که دوغ کړے دَ سوو زرو نه انسان شه ـ ط ـ يه ـ يو ـ

۷۲ـ غرونه غرونه خوب په خاشکى او ښيو د رومى ـ ط ـ متن دَ ا، و، ن، ى،
يب، يو مطابق دے ـ

۷۳ـ زهٔ کم بخت دَ درست جهان نهٔ ومه څه وم ـ ط ـ دَ دے مصرعے دا قرأت
دَ متن دَ قرأت نه بهتر دے خو دَ نورو قلمى نسخو دَ قرأت دَ اکثريت په
وجه متن کښے راته وړے شو ـ "معلوميږى چه کم بخت دَ درست جهان يم"
د ـ ن ـ متن مطابق دَ ا ب و ى دے ـ

۷۴- بے غمونو چہ مو وخوارہ یو ځبله ، ط- دوئیمہ مصرعہ : پہ دنیا کښے ے نور هیڅوک الخ - ن- ی-

۷۵- کہ ے سل نصیحتونہ وي، تہ ورکړه - ڈ- کہ ے سل نصیحتونہ زرۂ تہ وکړه - یو- متن دَ و، ز، ط، ی، یب مطابق دے-

۷۶- سهل کار دے کہ رحمان پہ زړهٔ ازارشم- ط- سهل کار دے کہ رحمان پہ زړهٔ ازار شه - یو-

## ی

۱- خود بینی خود نمائیٔ - ب-ج، ی- متن دَ و ط یب یو مطابق دے- مخکښے مصرعہ "خود رائیٔ پہ عاشقی کښے" دَ متن دَ قرأت دَ صحت تائید کوی-

۲- عاشقان ئے خوستائیٔ - ط-

۳- متن مطابق ج - ط- ی- یب- دَ بَ وَ یو قرأت دا دے : غوړ ئے کوي الخ

۴- "بے ننګی بے نوائیٔ" ط - یب - یو-

۵- متن مطابق دَ "و"- ط- یب، یو او 'ج'- نورو قلمی نسخو کښے "هرچہ یار ئے غوماٰیٔ" دے-

۶- دَ وړومبی مصرعے متن دَ "ب"، و، ی، یب او ج مطابق دے- نورو نسخو کښے "تل تر تله بے وطن وی" راغلے دے- دَ دوئیمے مصرعے متن صرف دَ 'و' او ج مطابق دے- دَ نسخو اکثریت "ګوشہ کنج دَ تنهائیٔ" راوړے دے-

۷- نہ ئے ملک وی نہ ئے مال وی- ج، و، ط-

۸- نمر بہ څۀ لہ تا سیالی کا - ی-

۹- ادراک نہ لری دَ سرو ے- ط- ستا دَ قد تر بالائیٔ - ب-

۱۰- نشتہ هسے رعنائیٔ - ج-

۱۱- دَ مکسو زندګی وه- ط-

۱۲- دَ وړومبی مصرعے متن دَ و ط ی یب یو مطابق دے- دوئیمہ مصرعہ وی کښے داسے ده : دَ ستا شونډے متهیائیٔ-

۱۳- داشعر صرف دَ 'ط' او 'یو' نسخه کښې ومونده شو۔

۱۴- داغزل صرف دَ ا نسخه کښې پیدا شو۔ مطلع دَ خوشحال بابا ده چې په قندهار چاپ (دَ خوشحال خټک مرغلرے مرتبۂ عبدالحی حبیبی) کښې داسے ده:

باد دِ لاس په پلو کیږدی سره ریږدی
گل دِ مخ وته نظر کا خوَلے پریږدی

کلیات خوشحال خان خټک (ترتیب دوست محمد خان کامل) کښې دا مطلع داسے ده:

باد دِ لاس په لمن کیږ دی سره ریږدی۔ گل دِ مخ الخ۔

۱۵- دوئیمه مصرعه داسے هم دَ لوستلو ده:

"محبوبا چه دَ چمن په گلو پښے کیږ دی"

۱۶- نقل مطابق دَ اصل دے۔ شاید چه اصلی مصرعه داسے وی: "په خمار رو سترگو بیا مې ژوندی کړی"۔

۱۷- دَ دے غزل ($\frac{۳}{۲۳۶}$) او دَ دے نه پس ته غزل $\frac{۴}{۲۳۷}$ اخری تورے یائے تانیث (ۍ) دے چه دَ اواز له اعتباره یائے معروف سره نژدے دے ځکه نو دَ یائے معروف (ی) پهتی کښې راوستلے شو۔ دغسے دَ $\frac{۳}{۲۳۶}$ غزل شعر ۶ (لږ دَ صبر سبق الخ) کښې هم دَ ی اواز یائے معروف ته نژدے دے۔

۱۸- متن دَ ا و ز ی ط مطابق دے۔ وړومبۍ مصرعه 'یو' کښې داسے ده: دَ مژگانو په پنجو مے زړهٔ وکاږی۔ دَ ب 'ه' یب قرأت دا دے: "دَ مژگانو په پنجه مے زړهٔ وکاږی"۔ دوئیمه مصرعه په ب ه یو کښې داسے ده: خدائے دَ ترکو مستے سترگے کړے مزری"۔

۱۹- متن دَ ا، و، ز، ط، یب، یو مطابق دے۔ دوئیمه مصرعه یو کښې داسے ده: چه هر کاندے الخ۔

۲۰- خدایه څهٔ دِ دَ ډولکو په لاس ورکړم۔ چه مدام مے غږوی لکه توری۔ ز خدایه څه دِ دَ ډبکو په لاس ورکړم۔ یب۔ دوئیمه مصرعه دَ متن مطابق ده۔ چاپي نسخو کښې داشعر داسے دے: خدایه څه دِ دَ کوتوال په لاس کښې ورکړم۔ چه شپه ورځ مے غږوی لکه توری۔ ح۔ کابل۔ اکیډیمی۔

او کښې دَ "غږوئ" تورے "زغوئ" لیکلے شوے دے۔ دغسے دَ "پهره دارو"
تورے او ب و ط ی کښې "پهرو دارو" راغلے دے۔

۲۱- دا شعر صرف دَ 'و' په سند رانقل شو۔ نورو نسخو کښې دا شعر نشته۔

۲۲- دا شعر دَ "و" مطابق دے۔ بله یوه قلمی نسخه کښې دا شعر نشته۔ دَ "ح" مطبوعه نسخه هم دا شعر نه لری۔ 'کابل' او "اکیډیمی" کښې دا سے دے:

دَ وصال دلالان کوم طرف ته غواړم
چه بندی شوم دَ هجران په کچری

۲۳- دا شعر په یوه قلمی نسخه کښې هم نشته۔ متن دَ "ح" او "د" کابل" مطابق دے۔ دَ اکیډیمی مطبوعه نسخه کښې دا شعر دا سے دے:

نمر دَ شمعے په فانوس کله پټیږی الخ۔

۲۴- متن مطابق دَ ه، ط، یب دے نور قرأتونه دا دی:

ا۔ی۔ زهٔ رحمان په زړهٔ نرے کړم هغه نرګو
زهٔ رحمان په زړهٔ نرے کړم دے خوبانو۔ ب۔د۔و۔
زهٔ رحمان په زړهٔ نرے کړم هغه خوبانو۔ یو۔
زهٔ رحمان په زړهٔ رنځور کړم هغو ښکلیو۔ ن۔ دویمه
مصرعه: چه ئے ملا ده دَ ویښتهٔ په څیر نری۔ ط۔یو۔ چه ئے ملا ده دَ ویښتو په دود نری۔ ن۔

۲۵- متن دَ ج، 'و'، ی، یب مطابق دے۔ 'ط' کښې "مخ به پټ نه وو دَ حور دَ پری" دے۔

۲۶- چه افتاب دِ تر رخساره پورے زرد شه۔ ط۔یو۔ دَ دویمے مصرعے متن دَ 'ط' یو، یب او جزوًا دَ و، ی مطابق دے۔ دَ 'و' قرأت دا دے: له دے ویوے زیست په شپه کا اخری۔ دَ 'ی' قرأت دا دے: له دِ دے ویوے زیست په توره شپه کا نمری۔

۲۷- معشوقه که فرښته وی که حوری۔ و۔ معشوقه که فرښته وی که چری
ط۔یب۔ معشوقه که فرښته وی که پری۔ی۔ متن دَ 'ج' مطابق دے چه 'ی' ئے تائید وی۔

۲۸ وړومبۍ مصرعه کښې دلبرۍ او دلجوۍ (دَ جمع صيغه) او دويمه مصرعه کښې دلجوۍ (دَ جمع صيغه) دَ دويمې مصرعې دَ "دلبرۍ" له رعايته وليکل شو۔ ګنې ټولو قلمي نسخو دواړو مصرعو کښې "دلبري او دلجوي" او "دلجوي او دلبري" راوړي دي۔

۲۹۔ دا قاعده ده چې له درده الخ - يب - يو - زبيرے دلته هم لکه دَ ټولو قلمي نسخو په مختلفو ځايونو کښې "زګيره" ليکلے شوے دے۔

۳۰۔ (۱) "ستا دَ تورو زلفو" په ځائے "ستا دَ تورو سترګو"۔ ج - و - ی
(۲) "سترګے وورۍ" په ځائے "اوښي وورۍ"۔ و - يب -

۳۱۔ وړومبۍ مصرع متن مطابق وج ی يب - دويمه مصرعه: "اور دے که وريځ ده نه پوهيږم په دا سيورۍ - ج - هرچا ته چې ګورم نيم په نمر وی نيم په سورۍ۔ و - ه - دَ دويمې مصرعې متن دَ ج، يب مطابق دے -

۳۲۔ دا شعر ټولو مطبوعه نسخو کښې شته۔ موجوده صورت کښې صرف دَ ه په قلمي نسخه کښې دے۔ دويمه مصرعه ئې لکه چې نوټ ۳۱ کښې وويلے شو 'و' کښې هم شته۔

۳۳۔ مطبوعه نسخو کښې دَ "خپلو سترګو" په ځائے "خپلو اوښيو" دے۔

۳۴۔ متن مطابق دَ ج، و، يب دے۔

۳۵۔ مه غوليږه دَ سترګو په وهلو ئې رحمانه - و - يب - وهلو اے رحمانه هم لوستے شي۔

۳۶۔ وړومبۍ مصرعه دَ ا ج و ز ی يب مطابق ده۔ ب ط کښې "دَ نمر ځ که ستا الخ" راغلے ده۔ دويمه مصرعه کښې "ترو دارنګ" دَ ا او ط مطابق دے۔ نورو کښې "ترو دارنګ دِ" راغلے دے۔ ب، يب او يو کښې دَ "زيږ زړغون" په ځائے "زيږ غوندے" دے۔

۳۷۔ دَ وړومبۍ مصرعے متن دَ ا، ج، و، ز، ی او يب مطابق دے۔ 'ب' کښې دا مصرعه داسے ده: "دا سپوږمۍ چې نۀ مژګان لری نۀ زلفې"۔ دَ يو قرأت دا دے: "دا سپوږمۍ چې نه مژګان لری نۀ وروځې" ط دا شعر نه لری۔ لاکښې دَ دويمې مصرعے وروستۍ کلمه دَ "سميږی" په ځائے "رسيږی" ده۔

۳۸- متن دَ 'و' مطابق دے۔ دَ 'یو' قرأت دادے: ستا و زلفو و ابرو ته چه نظر کړم ÷ هغکی ماران لړم دی چه وریږي۔ ا کښے وړومبی مصرعه داسے ده: ستا دَ زلفو دَ ابرویو له وریځے۔ دویمه مصرعه کښے ب او یب کښے دَ "لړم ماران" په ځائے "ماران لړم" دی۔ دَ نورو نسخو قرأت دادے: هغکی لړم ماران دی چه وریږي۔

۳۹- ځ دِ اوړ خط دِ سبزه ده الخ۔ ن۔

۴۰- اوړ اوبه په یوه ځائے استوګه نهٔ کا۔ ط۔یب۔ دویمه مصرعه:

دا قدرت ستا په لبانو کښے نمائیږي۔ ن

دا قدرت دِ تا په لبو کښے نمائیږي۔ یو۔یب۔

دَ 'ن' په حاشیه کښے دویمه مصرعه کښے "دا قدرت دے ستا" هم لیکلی شوی دی۔ چه یا ورسره دَ متن دَ مصرعے پاتے کلمے "په لبو کښے نمائیږي" را وستل پکار دی۔ نو داسے به دَ حاشیے بشپړ قرأت "دا قدرت دے ستا لبانو کښے نمائیږي" دی۔

۴۱- سپوږمۍ هسے ستا له رویه خپل ځان وخوری ÷ چه په نصره میاشت کښے دا دوه نیمه کیږي۔یو۔

۴۲- متن دَ ا، ج، و، ز، ی مطابق دے۔ که قامت دِ څوک شمشاد بولی دنبړه۔ ط۔یو۔ دویمه مصرعه کښے دَ "یا فتیږي" په ځائے 'یب' کښے "خرڅیږي" او "و" کښے "نمائیږي" راغلے دے۔ 'ب' کښے دا شعر نشته۔

۴۳- اب۔ خم ابرویو دِ پنهم دَ زلفو یم شه۔ خم ابروئے دِ په پنهم دَ زلفو یم شه۔ ج۔ی۔ و۔ خم ابرو دَ پنهم دَ زلفو تم شو۔ خم ابروئے دِ په پنهم دَ زلفو یم شوه۔ ن۔ یب۔ خم ابروئے پټ پنهم دَ زلفو تم شه۔ خم ابروئے دِ په تارو دَ زلفو بند شو۔یو۔ متن دَ 'ط' مطابق دے۔

۴۴- متن دَ ا، ب، ج، و، ز، ی، ط، یب، یو مطابق دے۔

۴۵- ا، ج، د کښے دَ "نمری" په ځائے "لاس" لیکلے دے۔ دَ مطبوعه نسخو دَ "په خپلو وینو ولتی" په ځائے ا، ج، د، ز، یب کښے "په خپلو اوښیو ولتی" ده۔

۴۶- دَ مصرعے متن دَ ا، ب، ج، و، ز، ی، یب مطابق دے۔

۴۷- متن دَ ج، ی مطابق دے۔ ل کښے دا شعر نشته۔ 'ز' نامکمل دے صرف ومبی دوه شعره (مطلع او ووبے شعر) لری۔ 'و' کښے "هرسړے کله لائق دَ ابروی دے" لیکلی شوی دی۔ ب 'یب' کښے "هر یو مخ کله لائق دَ ابروی دے" راغلی دے۔

۴۸- اے زما دَ کور دَ کلی ودانی۔ ط۔ دے غزل کښے قافیه کله په یائے تانیث (ې) او کله په یائے معروف (ی) راغلی ده۔ داسے معلومیږی چه دَ رحمان بابا په دور کښے دَ 'ی' دَ دے دواړو حالتونو تومنځه فرق نهٔ کیدو۔ لکه چه اوس ئے هم ځنے قبیلے نهٔ کوی۔ دویم شعر کښے دَ "خه پکاردی" په ځائے ډیرو نسخو کښے "خه پکارده" دَ دے یو ثبوت دے۔

۴۹- عاشقی چه ما کنهله دانائی وه۔ ا، ج، و۔

۵۰- خه پکارده پوچ بے ځایه پښیمانی۔ ا، ج، و، ی۔

۵۱- داخو زهٔ یم ستاله غم سره لوخیږم۔ ط۔ څوک له دیوه سره کا پهلوانی۔ ا، ب، و، ط۔

۵۲- ښکلے راکړه وماخط دَ امانه۔ یو

۵۳- چه په بادو په اتش په اب و خاک وی۔ یو۔

۵۴- متن مطابق دَ ا، و، ط، ی، یب۔ که زهٔ ته په هغه وخت وے چاپه نهٔ کړه۔ یو۔

۵۵- زما ستا وننداره ته به حیران وو۔ ا، و۔

۵۶- ومبی مصرعه دَ ا و ز ی یب مطابق ده۔ وهرچا ته چه څهٔ وائیم حیرانیږم۔ یو۔ دویمه مصرعه دَ ا و ط ی مطابق ده۔ یب ز کښے دویمه مصرعه داسے ده: څهٔ به وائیم دَ رحمان له پریشانی۔

۵۷- لب دِ اب حیات دی نهٔ شکرے نه نبات دی۔ یب۔ دَ دویمے مصرعے متن دَ ا ج ی یب مطابق دے۔ 'و' کښے دا مصرعه داسے ده:

یا ئیم غلط شوے ترهغه واړو بهتر دی۔

۵۸- ومبی مصرعه: قدته دِ څوک نهٔ شی رسیدے تر بلندی۔ زج ی۔ دویمه مصرعه دَ ا ج و ز ی یب مطابق ده۔ 'ب' کښے دا مصرعه داسے ده: "ولے چه معراج وته خاته دَ پیغمبرٌ دی"۔

۵۹- ماچہ ستا بناسُت لہ نمر سپوږمۍ سرہ پہ تول کړہ - ب - یب

۶۰- پرخہ پہ کیاہ شي الخ - یب - دا شعر ب کښې نشتہ -

۶۱- دے مصرعہ کښې "سرہ" دَ "باهم" پہ معنو کښې استعمال شوے دے - (وګورئ نوټ ۲۶۶ - ۵ -) ب دا شعر نۂ لری -

۶۲- "یب" کښې دَ "نیکخوی" پہ ځائے "نیکوی" راغلي دے - ب کښې دا شعر هم نشتہ -

۶۳- دا شعر پہ ا ب ج ز ی او یب کښې نشتہ - صرف دَ 'و' پہ سند قبول شو - دے نسخہ کښې وروستۍ کلمہ دَ مطبوعہ نسخو دَ "زیر" دَ "زبر" پہ ځائے "زیر" "زور" دے -

۶۴- دَ وړومبۍ مصرعے متن دَ ا، ب، ھ، و، ز، ط، ی، یب، یو مطابق دے - دوئمہ مصرعہ دَ ھ نہ بغیر ټولو قلمي نسخو کښې دغسے دہ لکہ چہ متن کښې راوړے شوہ - دَ 'ھ' دَ دوئمې مصرعے قرأت دا دے :

"وَ هر لور تہ ے نیولی کور پہ کور دی"

مطبوعہ نسخو کښې دَ دوئمې مصرعے هم دغہ قرأت دے - اولہ مصرعہ پہ مطبوعہ نسخو کښې البتہ داسے دہ : "کنړ ولی دَ دواړه سترګو ستا پہ طمع"

۶۵- متن مطابق ا ب - چہ ے خیال دَ ترکو ولید پہ خپل زړهٔ کښې - و-ط-ی-یو - چہ ے خیال ستا دَ ځان ولید پہ خپل زړهٔ کښې - ز - چہ ے خیال دَ سترګو ولیدهٔ پہ زړهٔ کښې - یب - دَ مطبوعہ نسخو قرأت دا دے : چہ ے خیال دَ ترکو ولیدهٔ پہ زړهٔ کښې"

۶۶- پہ رحمان باندے ګمان دا هسے مهٔ کړہ - ا، ب، ی - چہ بے تا پہ نورو غلیږی هغہ نوی دی - ط - یو -

۶۷- دے مصرعہ کښې دَ "پہ لارہ" تورے ټولو قلمي نسخو کښې "پہ لار" لیکلے شوے دے چہ "پہ لارہ" هم لوستلے شي او "پہ لارے" هم - خو هر کلہ چہ 'ی' کښې ئے واضح "پہ لارہ" لیکلے دے نو مونږ دَ "ی" تتبّع وکړہ -

۶۸- خدائے وماوتہ مکونہ دَ جنت کړہ - ط - ی - یو -

۶۹- دے مصرعہ کښې "مانہ" دَ ا، ب، و، ز، ط، ی، یب پہ سند ولیکلے شوہ - مطبوعہ نسخو کښې "مانړ" دہ - 'یو' کښې داسے دہ : هیڅ مانړے څوک لہ مستو سترګو نۂ کا.

۷۰- دَ وړومبئ مصرعے متن دَ ا، ب، و، ز، ط، ی، یب، یو مطابق دے۔ دوېمه مصرعه 'یب' کښې داسے ده: "کوم طبیب به روغ صورت باندے مرهم پ دی"۔

۷۱- متن دَ "ب" مطابق دے۔ دَ نورو قلمی نسخو قرأتونه دادی: زهٔ هرکوره ترخپل صنم پورے شرمیږم۔ ه - و - یب او مطبوعه نسخے - زهٔ هرکوره تر خپل صمد پورے شرمیږم۔ ا، ز، ی - زهٔ هرکوره ترخپل همدم پورے شرمیږم - ط - یو۔ ټولو نسخو کښې "هرکوره" شریک دے۔ چه ورسره صرف "حمد" دَ وزن له اعتباره سمون خوری چه دَ "ب" قرأت دے۔ ځکه نو موږ دغه قرأت غوره وګڼلو۔

۷۲- ګڼه عشق په عرش کرسی باندے قدم ږدی۔ ط - یو۔

۷۳- متن مطابق ا، و، ز، یب۔ دَ نورو نسخو قرأتونه دادی:

دَ دنیا کار همه وارہ غلول دی۔ ب

دَ دنیا وروری همه وبل غلول دی۔ ط - یو

دَ دنیا کار همه وبله غلول دی۔ ی۔

دوېمه مصرعه یو کښې داسے ده: داکمان له هیچا مه کړه الخ۔

۷۴- هیڅ مزه په دا جهان کښے طمع مه کړه۔ ی - یو۔ دَ دوېمے مصرعے متن دَ ا، ب، ه، و، ی مطابق دے۔ 'ز' کښې دَ 'سیورے' په ځائے 'سیوری' دے۔ یب کښې "دیخ سیورے" ط کښې "دیخ سیوری" او 'یو' کښې "دَسیخ سوری" دے۔ سیورے په خټکو کښې هغه خوږے یا غوړے روټۍ ته وائی چه په سفر کښې مسافر له ځان سره وړی۔ په دَ شعر کښې "دیخ سیوری"

۷۵- پوزه غوږ دَ هرچاشته په بدن پورے ږ که دَ شرم پوزه غوږ لری باطل دی۔ ز

۷۶- متن کښې دَ چاپی نسخو دَ "چاشمار" په ځائے "دَبل شمار" دَ ا ب و ز ط ی یو مطابق راوړے شو۔ دوېمه مصرعه کښې 'ی' دَ 'سل' په ځائے 'شل' راوړے دے۔

۷۷- ب۔ نصیحت په عاشقانو اثر نه کا۔ ه کښې دوېمه مصرعه داسے ده: بیهوده سرهٔ او سپین سره کو تېل دی۔ متن دَ ا، ه، و، ز، ط او یو مطابق دے۔

۷۸- ټولو قلمی نسخو کښے "ناهل" لیکلے شوے دے۔ چه دَ ږیے املا له رویه "ناهله"

هم لوستے شی۔ موبڼ مصرعه کښے دَ جستې په بنیاد "ناا هله" غوره وګڼلو۔

۷۹- سپین رخسار او مشکین خال دِ وبله ضم دی ۔ ا ج ی یو۔ سپین رخسار او مشکین خط وبله ضم دی۔ ب۔

۸۰- که دِ مخ په زلفو پټ شه الخ ۔ ا ب۔ که دِ مخ په زلفو پټ دے۔ ز۔ یب۔ یو۔ متن مطابق ج ط ی۔ دوئمه مصرعه مطابق دَ ا ج و ی ده۔ ب و ن کښے "دَ حیاتو او به پټے په تورتم دی" راغلے ده۔

۸۱- دا شعر صرف دَ 'ط' نه رانقل شو۔ دوئمه مصرعه واضحه نهٔ ده۔ شاید دا سے وی: "چه سکښلے په باریک ورو ځے قلم دی"۔

۸۲- یا په ګل باندے غوټیه دَ شبنم دی۔ ب۔

۸۳- بے ژړا چاته نهٔ کوری مستے سترګے۔ ن۔ بے ژړا چاته نهٔ کوری سیاه چشمه۔ ب۔ ط۔

۸۴- نه چه یو زما زړهٔ غوځ ستا په غمزه دے۔ ز۔ ط۔ یب۔ یو۔ دوئمه مصرعه "چاره غو بنے لا قدیم الخ" دَ ا و ج ی یو مطابق ده۔

۸۵- ستا وفا او جفا دواړه منقسم دی۔ و۔

۸۶- دَ رحمان ویُل پسندلی په عالم دی۔ ط۔

۸۷- دا غزل صرف 'ط' نسخه کښے وموندلے شو۔

۸۸- دوئمه مصرعه دَ اور سوزیدلے په اور رغیدِ ی دَ مفهوم لرلو باوجود څه خو مبهمه ده۔

۸۹- 'ط' نسخه کښے وړومبۍ مصرعه داسے ده: "دَ کلونو تر ډیر عمر داسود ډیرے" په دے شکل کښے دواړه مصرعے بے ربطه او شعر بے معنیٰ شی ځکه نو دَ زړے املا له رویه "ګلونو" و لیکلے شو۔

۹۰- دَ یکهمان ننني املا "یکه مان" ده۔

۹۱- اصل نسخه کښے دا مصرعه داسے ده: "ډیرو دَ اسلام جامے الخ" دَ وزن دپاره "ډیرو" زائد وګڼلے شو او ځکه حذف کړے شو۔

۹۲- تش به نهٔ شی هغه جام دَ عشق له میو۔ ب۔ و۔

۹۳- دا مقتول ستا دَ غمزو دی لا له نهٔ دی۔ ط۔ یو۔

۹۴- ما لیدلی فسادونه دَ ګوګون دی۔ ن۔

۹۵- متن دَ ب او ن مطابق دے - نور قرأتونه دا دی :
دَ رحمان دَ زړهٔ خوناب مګر ظاهر شو - ا وی -
دَ رحمان دَ زړهٔ خوناب هاله قبول شی - ه - دَ رحمان دَ زړهٔ خوناب مګر قبول شه - ط - یو - دَ رحمان دَ زړهٔ خوناب مګر څرګند شه - یب - پنځو نسخو کښے "قبول" دریو کښے "ظاهر" او یو کښے څرګند وو ځکه نو دَ اکثرو نسخو په تتبع کښے متن دَ 'ن' او 'ب' مطابق راوړے شو -

۹۶- دَ دے غزل دَ مطلع او وړومبی شعر نه بغیر نور ټول شعرونه مردّف دی ځکه نو دَ مردّفو غزلونو په ذیل کښے شمار شو -

۹۷- دَ شعر متن دَ ا و ن مطابق دے - نور قرأتونه دا دی : دا صورت په مثال پله مرګ ئے سیلاب دے - ط - دا دنیا په مثال (پول) مرګ سیلاب دے - دویمه مصرعه : دَ سیلاب و مخ ته څه پوله پینود ے - یب -

۹۸- جل زلمی لا وادہ نه وی خبله کنه شی - ن - جل زلمی لا وادہ نه سره کنډاؤ شی - یو - چاپی نسخه -

۹۹- قافلے چه په دنیا کښے شوے راګډے - ط -

۱۰۰- چه بے وقته ارمان کا په وقت وودہ شی - ط -

۱۰۱- دا شعر صرف دَ 'ط' په سند راوړے شو -

۱۰۲- په هر شان چه یار خوښیږی کړے بویه - ط - په هر کار چه یار خوښیږی کړے بویه - یو - دَ دویمے مصرعے متن دَ ج ن ط ی مطابق دے - نورو قلمی نسخو (ا، ب، یب) کښے دَ "خندول" په ځائے "خپلول" دی -

۱۰۳- طالبان په مطلوبانو خود پوهیږی - ط -

۱۰۴- دا شعر صرف 'ط' کښے دے -

۱۰۵- دا مقطع صرف په 'ط'، 'یو' کښے ده -

۱۰۶- 'ط' کښے دا مقطع نشته -

۱۰۷- حاجت نه لری په شهد او په شکرو - ج، ی، یب -

۱۰۸- متن مطابق ب، ج، ن، ی، یب - خدائے دَ یار له هجره هیڅوک خبر نه کا - ا -

۱۰۹- متن مطابق ب، ن، یب - کورو کی او مبصر درے واړه یو دی - ا، ج، ی -

۱۱۰- دا پیران دِ عار زماله عشقه نه کا - ب -

۱۱۱- اور او کوړ او پیښور دوے وارہ یو دی - ج -

۱۱۲- تولو قلمی نسخو کښے "خرخ مے ستا الخ" او تولو چاپی نسخو کښے "بنخ مے ستا الخ" دے - دوئمہ مصرعہ دَ "و" او چاپی نسخو مطابق دا سے دہ: "پورا پورے مے وتلی الخ"

۱۱۳- هسے نہ چہ زۂ نن ورځ په تا میئن یم - ب -

۱۱۴- لکه ستوری چه جلوه کا په اسمان کښے - ط -

۱۱۵- دا شعر صرف په "ط" او "یو" کښے دے - اصل نسخو کښے ورومبۍ مصرعه دا سے دہ: "نه شها نه ماپه ستړکو الخ" دَ مضمون له رویه مونږ "شها" په "تنها" بدل کړو -

۱۱۶- متن صرف دَ "و" مطابق دے - دَ نورو نسخو قرأتو نه دادی: درته وائی چه له اهدے پرهیز کا - ا - ورته وایه چه له اهدے پرهیز کا - ب ج ط ی یو - ورته وایه چه له اهدے ویرېږه - ن - ورته وایه چه له اهدے پرهیز وکا - یب -

۱۱۷- که دا ستا حسن سوزانے لیبے نه دی - ط -

۱۱۸- بے غضبه په غصے او په کینه دی - ن - بے غضب په غضبونو په کینه دی - یو -

۱۱۹- چه مدام دَ خپل ځیګر په وینو رنګ دے - ط -

۱۲۰- دَ خپل عمر شپے او ورځے چه له زړهٔ کړم - ی - هسے دروغ کویا بهندے اوبۀ دی - ج ی یب -

۱۲۱- غافلان که وینی کوری الخ - ج - ی - دَ "اودی" او "اوریدہ" په ځائے په ا او یب کښے "اروی" او "اورید ہ" دی -

۱۲۲- عاشقان دِ په غم سوی دی که نه دی - ط - یو - دوئمه مصرعه دَ اج و ز ط ی یب مطابق دہ -

۱۲۳- رحمتونه دَ جهان واړه په عشق کښے - ط - یو - دوئمه مصرعه تولو قلمی نسخو کښے هم داسے دہ -

۱۲۴- متن مطابق ج ن یب دے - نورو قلمی نسخو کښے دَ "راکښوی" په ځائے "راکښلی" دے - اګرچه دَ "تا وماوته بښوولی الخ" مصرعه کښے هم دَ غزل دَ قافیے پوره التزام نۀ دے شوے لیکن هلته تولو قلمی نسخو کښے لکه چه

په ع۱۲۳ ولیکلے شو هم دغه قرأت دے۔ دلته "راکښوی" دَ غزل دَ قافیځ دَ عام التزام سره سمون خوری او دریو قلمی نسخو کښے هم شته ځکه ترجیح ورکړے شوه۔

۱۲۵- چه مدام ئے زمازړهٔ له درده چوی تورے زلفے دِ پیچ شوی دی که نهٔ دی:یو

۱۲۶- داشعر ټولو قلمی نسخوکښے هم دغسے دے۔ چاپی نسخوکښے دوئیم مصرعه په دے رنګ غلطه راغلے دہ: مره دَ عشق په تیغ کوټلی دی که نهٔ دی۔

۱۲۷- ناصحان چه نصیحت ومانه کاندی۔ ا- و- ناصحان چه نصیحت وائی وَمانه۔ ی۔ متن دَ "ج ن ط یب یو" مطابق دے۔

۱۲۸- ښائسته که ملائک وی په ښائست کښے۔ ط۔یو۔

۱۲۹- بلبلان پسے فریاد کاندی رحمانه۔ ط۔یو۔ دَ بهار ګلونه شوی دی که نه دی۔ ن۔یب۔

۱۳۰- وړومبی مصرعه کښے "چار" دَ "ب ھ و ن ط ی یب" په سند راوړے شو دوئیمه مصرعه دَ "و ن ی یب" مطابق ده۔ ب داشعر او ھ دامصرعه نهٔ لری۔ ن کښے دا غزل دوه ځل راغلے دے۔ او دواړه ځایه داشعر دَ متن مطابق دے۔ ط، یو کښے "و دانا وته دا وشتے مسخرے دی" راغلے دے۔

۱۳۱- نارینه ئے واړه خرهٔ ښځے ئے خرے دی۔ ز (دوه ځل)۔ و۔ ب۔ ی۔ ده کښے دامصرعه نشته۔ یب۔ط: نارینه ئے واړه خرهٔ او ښځے خرے دی۔

۱۳۲- همګی واړه طفلان دَ کوارے دی۔ ز (دوه ځل)۔ ب۔

۱۳۳- ذخیرے دَ دنیامهٔ کوه رحمانه۔ ز (یو ځل)۔ دوئم ځائے کښے دَمتن مطابق) دوئمه مصرعه ب او ی کښے داسے ده: "داهمه واړه یا خاورے یا ایرے دی۔"

۱۳۴- وړومبئ مصرعه دَ ا ب ج و ن ی یب یو مطابق ده۔ مطبوعه نسخو کښے زهٔ په تا پسے موسیٰ ئم الخ راوړے شوے ده۔ دوئمه مصرعه دَ ا ب و ن ی یب یو مطابق ده۔ ج کښے مصرعه په دے صورت ناقصه لیکلے شوے ده: چه مطلب ے غوا و غیلے دی" له دے نه هم جوتیږی چه دَ ج کاتب دَ غیلے او غلے په تکرار کښے غلط شوے دے۔ والله اعلم۔ چاپی نسخو کښے "چه مطلب ے غوا و غیلے یا کلے دی" لیکلے شوے ده۔

۱۳۵- بوئی هم ستاد وفا نه دے راالوتلے۔ یب۔ دوئمه مصرعه یو کښے داسے ده:

"ما پخپله دَ زړهٔ کړے تسلے دی"

۱۳۶- "کمزے یادے زموږ ډیرے مسئلے دی- یو-

۱۳۷- چاپ نسخو او "و" کښے "عجب نمر دَ نمر دپاسه هویدا شی" دے لیکن دَ "و" نه بغیر ټولو قلمی نسخو کښے "عجب نور دَ نور دپاسه الخ" راغلی دے او اګرچه "نور" دَ "نمر" یوه املا هم ده لیکن پورے قلمی نسخے هم دَ دوېمی (دوپسے) شعر دوئمه مصرعه "بے توتیبه چه نمر وخیژی رنا شی" کښے "نمر" دَ "نور" په صورت کښے نه دے لیکلے ځکه نو "نور دَ نور دپاسه" زموږ په خیال صحیح دے- پروفیسر پوردن دَکرستهو میتهی متن کښے "نور په نور دپاسه" او حاشیه کښے "نور دَ نور دپاسه" راوړے دے-

۱۳۸- دَ کرستهو میتهی متن کښے "بے تدبیره چه نمر وخیژی رنا شی" ده-

۱۳۹- متن دَ کرستهو میتهی دَ متن مطابق دے- دَ کرستهو میتهی حاشیے او نورو قلمی نسخو کښے دوېمی مصرعه داسے ده: "ماله ډیرے ناچاری ویارته شاکره" "و" کښے "ماله ډیرے لاچاری ویارته شاکره" راغلی ده- "ب" کښے دوئمه مصرعه داسے ده: "نا روا دَ ضرورت په وخت روا شی"

۱۴۰- زهٔ په وصل کښے دَ هجر خواری ژاړم- ط- یو- کرستهو میتهی (حاشیه)-
زهٔ په وصل کښے خواری دَ هجر ژاړم- کرستهو میتهی (متن)

۱۴۱- کمه هاله هریو ژاړی چه جدا شی- ا- کرستهو میتهی (متن)- کمه هلته هرڅوک ژاړی الخ- کرستهو میتهی (حاشیه)

۱۴۲- زهٔ به سرو مال دَ یار تر نامه ځار کړم- ب- و- ی- زهٔ به سرو مال دَ یار تر دیدن ځار کړم- کرستهو میتهی- یو-

۱۴۳- متن مطابق ب، و، ن، ط، یب- کرستهو میتهی- دَ نورو نسخو قرأتونه په داشان دی:-

ا: چه داپټ راز به په تمام جهان رسوا شی

ج، ی: چه داپټ رازے به په درست جهان رسوا شی

۱۴۴- چه دَ ترکو سنبل زلفے شهپر شی- ط- یب- یو- کرستهو میتهی (متن)
چه دَ ترکو بسکلے زلفے شهپر شی- کرستهو میتهی (حاشیه)

۱۴۵- دَ ناصح پہ نصیحت بہ منع نہ شي - کرسټو میتھی (متن) دَ کرسټو میتھی دَحاشیې قرأت زمونږ دَ متن (دَ وړومبي مصرعې) مطابق دے - دوئیمہ مصرعہ 'ن' کښې داسے دہ": کہ هزار ځله مے درد وربرابر شي۔"

۱۴۶- وړومبي مصرعہ دَ کرسټو میتھی متن کښې داسے دہ :"زما صلح دَ رقیبہ سرہ نشتہ ۔" دَ کرسټو میتھی حاشیہ کښې زمونږ دَ متن مطابق دہ - دوئیمہ مصرعہ مونږ دَ ج، و، ن، ی، یب او کرسټو میتھی (حاشیہ) مطابق راوړہ - ب کښې دا مصرع داسے دہ : "کہ مے چرے لاس و دست وربانده بر شي " دَ کرسټو میتھی متن کښې ئے پہ دے صورت راوړے دہ "کہ مے چرے لاس یو وار پر برابر شي۔" دَ 'وبلہ' پہ رعایت "کہ مے چرے" مونږ "کہ موچرے" کړو - هم دغہ قرأت دَ چاپي نسخو هم دے - دَ 'یو' قرأت دا دے: کہ مے چرے دست رس وربانده بر شي -

۱۴۷- صبوری او قراری لہ ما خطا دہ - (کرسټو میتھی - متن) - دَ کرسټو میتھی حاشیې کښې چہ پہ یوہ بل متن بنالوی دا شعر نشتہ - دوئیمہ مصرعہ 'یو' کښې داسے دہ : "تر هغہ ساعتہ پورے څو محشر شي ۔"

۱۴۸- دَ وړومبي مصرعې متن دَ ب، ج، و، ن، ی، یو او کرسټو میتھی (حاشیہ) مطابق دے - ط کښې "ټوکرہ راواخلی" او دَ کرسټو میتھی متن کښې "ټوکړے راواخلی" دے - دوئیمہ مصرعہ دَ ب ج و ن ی یب او کرسټو میتھی (متن وحاشیہ) مطابق دہ - دَ چاپي نسخو قرأت دا دے : "کہ رحمان کچکول پہ لاس کښې قلندر شي ۔"

۱۴۹- دا غزل ($\frac{۲۵}{۲۵۸}$) دَ 'و' نسخہ کښې دَ $\frac{۲۴}{۲۵۷}$ دَ حصے پہ طور راغلے دے - دَ تیر غزل مقطع دَ هغہ وړومبي مقطع پہ حیث دَ دغہ غزل مقطع دَ دوئیمے مقطع پہ حیث راوړے شوے دہ - دَ دے غزل دَ مطلع وړومبی مصرعہ 'ط' کښې داسے دہ :"چہ غبار دَ ستا دَ لار پہ هوا ورشي ۔" 'یو' کښې دا مصرعہ داسے دہ :"چہ غبار ستا دَ کوځے وربانده ورشي۔" دوئیمہ مصرعہ 'ب' کښې داسے دہ: "کہ پہ دواړے سترګے ړوند وی سترګہ ورشي ۔"

۱۵۰- چہ کیمیا دَ ستا دَ عشق ئے پہ لاس کښیوځی - ط - یو -

۱۵۱- څوک چہ ستا لہ درہ ووځی در پہ درشي - کرسټو میتھی (حاشیہ) - خو چہ

ستاله دره دروی درپه در شی - ا -

۱۵۲- چه ئې نه له خدایه ویره نه ئې دارشی - ا - و -

۱۵۳- هر قدم په لاره کوږ بد دی چه روان شی - ز -

۱۵۴- ویه مبه مصرعه دَ ب، ج، ز، ی، یب مطابق ده - دَ یو قرأت داد ے:
سپینه بزیره په ورنمی کښے لحویه غواړی - دوئیمه مصرعه په ی او یب کښے دا سے
ده: چه به ما لره سپاهی یا منصبدار شی -

۱۵۵- متن دَ ج، و، ز، ی، یب، یو مطابق د ے - دَ خرما هغه وکے نهل کا ورته
کوری - ب -

۱۵۶- تو لو قلمی نسخو کښے دا مصرعه دا سے ده: "هر هر فصل چه تیریږی هوسیږی"
ا، ب، و کښے دَ "تیریږی" املا "ترِیبری" ده - چاپی نسخو کښے "ترے ریږی"
لیکلے شوے ده - دَ ا ب و دَ مسخ شده قرأت او چاپی نسخو دَ قرأت ترمنځه
دَ تطابق تقاضا داده چه دا "تو ے ریبدی" ولوستلے شی - ریبدل زړه پښتو
کښے دَ "ریبل" په ځائے راځی او هم له دے توری "رودل" (عامیانه) جوړ
شوے دے -

۱۵۷- لائے لیه تخم هم نهٔ وی کر لے - ب -

۱۵۸- غږوند ے دَ ناز وکړ نوخسیو غړی - ز -

۱۵۹- لکه وړکے کټوری غواړی له زاہنو - ز - لکه وړوکی الخ - ح - یو -
لکه وړکے کټوری غواړی له زاہنے - ب - ج -

۱۶۰- هغه نه کا چه له نهی توبه کار شی - ز - ی - دا شعر، دَ دے نه تیر دوه شعره
او دے پسے شعر چاپی نسخو کښے نشته - ا ب ج ی و ز یب نه واخستے شو -

۱۶۱- متن دَ ا ب مطابق د ے - نور قرأتونه دادی: "چر ے ستا هم دَ کوهی په
غاړه لار شی؟" ج و ز ی - هم به ستا دَ دے کوهی په غاړه لار شی - ط - یب - یو -

۱۶۲- متن دَ ب ج ز ی یا مطابق د ے - "له وړومبیه به دَ ستا صورت ترخوار شی" -
ا - لا وړومبے به ستا صورت ترخاورو خوار شی - و - ط - یب -

۱۶۳- متن مطابق ا، و - ط، یو - که ته نه کوے نظر دَ چا و عیب ته - ب، ج، ز،
ی، یب - دَ متقد مینو دَ روایت مطابق "عیب" دوه سیلابیز د ے - ځکه
دَ اقلیت قرأت غوره وګڼلے شو -

۱۶۴- توله قلمي نسخو کښې "صبح" مؤنث راغلی دے - حميد، محمدي صاحبزاده او نورو متقدمينو هم "صبح" مؤنث تړلی دے - دوئمه مصرعه 'ط' کښې داسے ده: "يوه ورځ به دِ دا صبح شب تار شي"

۱۶۵- لږ ئے مه کښېږه که هر څو لږ گناه وي - ز - ی - يو - دوئمه مصرعه: "چه لږ لږ وبله جمع کړے انبار شي" ط - يو -

۱۶۶- که بل بد کاندي ته ئے ښه ورسره وکړه - و - که ئے بل بد کاندي ته ئے ښه ورسره وکا - ا - که بل بد کوي ته ئے ښه کړه مه زهيريږه - يو - دَ متن په دوئمه مصرعه کښې دَ وړومبۍ مصرع دَ "مه رنځيږه" څه تلازمه نشته - وے دَ اکثريت دَ رائے مطابق قرأت په وړومبۍ مصرعه کښې راوړے شو -

۱۶۷- هغه زړهٔ به له طوفانه په امان شي - ب - ج - ن -

۱۶۸- ط - يب - خدائے دِ بد له لاسه نه کا او که ئے وي هم - مطبوعه نسخو کښې هم وړومبۍ مصرعه دغسے ده - ا، و: خدائے دِ بد له لاسه مه کړه او که نهٔ وي - دَ 'يو' قرأت دا دے: خدائے دِ بد دَ چا له لاسه واقع نه کا - دَ متن دوئمه مصرعه دَ "ب، ج، و، ز، ط، ی، يب" مطابق ده - او او مطبوعه نسخو کښې دا مصرعه داسے ده: "دَ رحمان دِ له کل بدو الخ -"

۱۶۹- نرے باد به ئے په خپل منزل داخل کا - و - يب - که څوک پانه دَ خزان غونډے طيار شي - ج - ی - يو -

۱۷۰- صبحدم که څنا ور وي هم بيدار شي - ب ج ز ی -

۱۷۱- متن دَ "ا، ج، و، ز، ی" مطابق دے - هم په دا خبره فخر دَ خاکسار شي - ب، ط - يب -

۱۷۲- خزانه په سخاوت سره ډيريږي - يو - دوئمه مصرعه: دَ کوهي اوبهٔ چه وباسے بسيار شي - ا - دَ کوهي اوبهٔ چه وخيږي بسيار شي - ط - يو -

۱۷۳ متن دَ اب ج ز يب يو مطابق دے - مهول دَ وړے کيدو ے مشکل نهٔ دی - و - مطبوعه نسخه - دوئمه مصرعه 'و' کښې داسے ده: مريدل دَ وړيو سترکو الخ - مطبوعه نسخو کښې دواړه مصرعے دَ "مهول" شروع کيږي -

۱۷۴ - متن دَ 'ط' مطابق دے - دَ نورو نسخو قرأتونه دا دي: کم خوراک سړے نږدے کا فرښتو ته - اب ج - و ی يب يو - لږ خوراک سړے ملکو ته نږدے کا - ز -

دَ اکثریت قرأت ځکه رد کړے شو چه 'ط' کښې دَ "فرښتو" تلفّظ دَ درے سیلابیز (موجوده) په ځائے دوه سیلا بیز دے چه دَ متقدمینو تلفظ سره برابر دے۔ دوئمه مصرعه دَ ب و ن ط ی یب مطابق ده۔ ا کښې دَ "بسیارخور" په ځائے "بسیارخوار" راغلے دے۔

۱۷۵- صاف دلانو لره لږ اشارت بس دے۔ ب۔ صاف دلانو لره لږ نصیحت بس دے۔ و۔ ز۔ متن دَ ا ط ی یب یو مطابق دے۔

۱۷۶- دَ توفیق له مخه سخت کارونه کیږی۔ و ستړه وته دَ اورلمبه گلزار شی۔ ز۔

۱۷۷- نازوحسن پرورش الخ۔ ط۔ یو۔

۱۷۸- متن دَ ج ز ی یب مطابق دے۔ نور قرأتونه دا دی: راحت بے محنته نهٔ دے چا موندلے۔ ا۔ و۔ راحت نهٔ دے چا موندلے بے محنته۔ ط۔ دا شعر ب کښې نشته۔

۱۷۹- که ئے سرو مال دَ یار نن نا ځے ځار شی۔ یب۔

۱۸۰- یاره یاره هرڅوک وائی الخ۔ و۔ ژګ به پس له هغه وائم الخ۔ ط۔ یو۔

۱۸۱- لکه ډار کاندی ورغوے له لیوګانو۔ ط۔ یو۔

۱۸۲- دلکیر مهٔ شه لکه باد هسے به تیر شی۔ ب۔

۱۸۳- غم هغه دے هرچه خیرمه وی وتاته۔ ب۔ غم هغه دے هرچه خیرمه وی و یار ته۔ ز۔ هغه غم دے هرچه خیرمه وی وماته۔ یو۔ دوئمه مصرعه: وریه مې وارله تر وروستیو پورے هیر شی۔ ز۔ یو۔

۱۸۴- سړے که شیر شاهی او کله سیر شی۔ ب۔ سړے کله شیر شاهی شی کله سیر شی۔ ج ی۔

۱۸۵- دَ بنو په ځمبول کښې په بیل پیر شی۔ ا۔ دَ بنو په ځمبولو په بل پیر شی۔ یو۔

۱۸۶- په لږ عمر کښې ډیر غم راغے له کومه۔ ب۔ یو۔

۱۸۷- دَ "خریدار" او "فروشنده" "خ" او "ف" ساکن دی۔

۱۸۸- که دَ زړو میړو الخ۔ ب۔ یو۔ که دَ زړو سورو الخ۔ ز۔ که دَ زړو مړو سر وی چه دے مړ شی۔ ج ی۔ ج ی۔ دَ دوئمے مصرعے متن دَ ا ب ج ی یب مطابق دے۔ نورے نوم په خوله څوک اخلی الخ۔ و۔ ن۔ یو۔

۱۸۹- دارخسار چه دِ صفا تر آئینے دی۔ یو۔

۱۹۰- متن دَ اج ز ط یو مطابق دے۔ مراد ئے وارۂ دلبری ده غزا وشوه۔ و۔ مراد هم تۀ دلبری دے غزا وشوه۔ ی۔ دوئمه مصرعه : که دَ غرۂ په ځیر ځوک په قامت لوړ شي۔ یو۔

۱۹۱- نک نامی له نیکوئیه پیدا کیږی۔ یب۔ یو۔ نیک نامی له نیکه خویه پیدا کیږی۔ ن۔ ۔ چاپي نسخو کښے دَ "نیک خویی" نه پس "نه" هم شته۔ چه قلمی نسخو کښے ئے نۀ ده راوړے۔

۱۹۲- دا دَ ټولو قلمی نسخو قرات دے۔ چاپي نسخو کښے دا مصرعه داسے ده :- هغه سُوک دَ بے هنر دے چه خپر شي۔ په دے صورت کښے مصرعه بےمعنی ده۔ دَ قلمی نسخو قرأت چه موږ ئے تتبّع کړے ده معنی لري۔

۱۹۳- چاپي نسخو کښے دَ شفقت په ځائے مشقت دے۔ دَ دوئمے مصرعے متن دَ اج وه ی یو مطابق دے۔ "کښه ځان له سرنوشته کله نغړشي۔ ز۔ "کښه ځان له سرنوشته په چا رغړشي۔ یب۔

۱۹۴- دَ هوا په نغوته مۀ ځه کړ پوهیږے۔ ط۔ یو۔ دَ دوئمے مصرعے متن دَ ا ج ط یب مطابق دے۔ ن کښے "په هوا ویشتي" او په ب 'و' کښے دَ "هوا ویشتلي" دی۔

۱۹۵- متن دَ ب ج وط ی یب یو مطابق دے۔ ا ن کښے دَ جهان په ځلئے کریوان دے۔

۱۹۶- 'یو' دَ دے شعر په وړومبۍ مصرعه کښے دَ "تدبیر" توری وهلی او دَ هغے په ځائے "نصیب" چه سبب هم لوستلے شی لیکلی دے۔ دوئمه مصرعه دَ قسمت علاج په صبر کله کړ شي۔ ا ب ج ی۔

۱۹۷- په هجران کښے ئے الخ۔ یب۔

۱۹۸- متن دَ ه مطابق دے۔ نور قرأ تونه دا دی :

په جهان تر اشنائی خواږه نشته ؛
ولے حیف چه هجران کښے ئے حنظل شی۔ ا و ن۔

آشنائی په شان خواږۀ په جهان نشته
بارے حیف چه هجران پکښے حنظل شي۔ ب۔

په جهان کښے تر اشنا خواږۀ څه نشته
ولے حیف چه الخ۔ ط۔ یو۔

په جهان کښے نزاشنا خو اېرهٔ څه نشته
وے حیف چه په هجران کښے ئے سکل شي - یو (شاید څکل)
په جهان کښے تراشنا غوره څه نشته
وے حیف چه الخ - یب

دَ ل و نړ منفقه قرأت قابل لحاظ دے خو هر کله چه دَ اوسنی محاورے مطابق نهٔ دے ځکه نظرانداز کړے شو - کیدے شي چه دَ هغه وخت دَ محاورے مطابق هم دا قرأت (ل و نړ) صحیح وي - د مرزا او دولت دیوانونو کښے دَ دے محاورے مثالونه شته -

۱۹۹- زهٔ رحمان بے یاره هسے ګڼړ و شل یم - یه - یو -

۲۰۰- چه بیلتون په جهان ګرځي خو به بیل شي - ب - و - یو - چه بیلتون په سترګو وینې خو به بیل شي - ذ - چه بیلتون په دنیا شته دے خو به بیل شي - یب -

۲۰۱- که دَ اوښیو به دریاب باندے ئے نهال کړے - یو -

۲۰۲- مشقت دَ سړی واړهٔ حبط شي - ب - مشقت دَ سړی واړه حبط کا - یو - په بنوره کښے چه دَ ګل بوټے نهل شي - ی - دَ ذیے املا له رویه "دَ ګل بوټے" "دَ ګلو بوټے" هم لوستے شي - که دَ "ی" قرأت صحیح وګڼلے شي نو "نهل" کښے به دَ ه اعلان ضروري شي -

۲۰۳- عاقبت سره په جنګ او په جدل شي - ب -

۲۰۴- په مثال دَ دروغژنو مرغلرو - یو - دوئیمه مصرعه : اب و تاب ئے په دوه ورځے پس بدل شي - ب -

۲۰۵- هغه سیب ئے په پیوند کښے بیا حنظل شي - یو -

۲۰۶- ترو ئے وکوره چه یار درسره مل شي - یو -

۲۰۷- متن دَ اچ وي مطابق دے - دَ نړ ی یب نسخو کښے "بنهٔ په بد" او "یو" کښے "په بد وینا" دے -

۲۰۸- دَ دنیا میئن به واړهٔ دبل (دبله) بیل شي - ب - دَ دنیا میئن به واړه حُبله بیل شي - یو - کرستهو میتهي -

۲۰۹- دَ ګلو نو چه ئے ځائے دے په دستار کښے - کرستهو میتهي (متن) دا

ځکلونو چه ئے الخ - کوستېو میتهي (حاشیه)

۲۱۰ دا په صبح چه ئے مخ د نمر په څېر دے :: تور وېښته به ئے په مخ باندے مشکل شي - کوستېو میتهي (متن) - د کوستېو میتهي حاشیه زمونږ د متن مطابق ده 'ق' کښ د "تور وېښته" په ځائے "نور وېښته" لیکلے شوي دي۔

۲۱۱ - "دي بدلي" "د زړه املا له رویه" دے لیدلے "هم لوستے شي - 'یو' کښ هم دغه یعني "دے لیدلے" قرأت دے -

۲۱۲- د وصال په زمکه پښه له ویرے نه ږدی - ط - کوستېو میتهي (حاشیه)

۲۱۳- متن د ح، و، ط، ی، یو کوستېو میتهي (متن) مطابق دے - د 'ب' قرأت دا دے : مګر جام د مئے ناب وی چه صیقل شي -

۲۱۴ - یو ساعت په سړی کال شي - ب -

۲۱۵ - په غوږ کو به ژبه لال شي - ز - یب -

۲۱۶ - علم عقل څنے لاړ شي - ب - و - ی -

۲۱۷ - متن د ون ط ی یب یو مطابق دے - قوت ئے وینے د ځیګر وي - ب ھ - د ا نسخه کښ دا غزل ناسکمل دے ځکه نو دا شعر نه لري -

۲۱۸ - د چشمانو له بارشه - ط - یو -

۲۱۹ - متن د ھ ون ط ی یب یو مطابق دے - ب کښ دا سے قرأت دے : تر عالم فارغ البال شي -

۲۲۰ - په خشکۍ کښ مهے ګوره - ب - ی - یو -

۲۲۱ - متن د ا ب ون مطابق دے - دے نسخو کښ "د کل خلق په دنبال شي" راغلے دے چه "خلقو" او "خلقه" دواړه لوستلے شي - ھ کښ البته صراحتاً "له کل خلقه په دنبال شي" راغلے دے - ا کښ دا قصیده له دے شعره شروع کیږي - د قصیدے دپه دمبی ۱۵ شعرونه لرونکے پاڼه ورکه ده -

۲۲۲ - متن د ھ و ز یب او جزوًا د ط او یو مطابق دے - د ا ب ی قرأت دا دے : "بیا لا ګوره چه الخ" د ط او 'یو' قرأت : بیا لا بویه چه څه حال شي -

۲۲۳ - متن د ھ و او جزوًا د 'یو' ط یب مطابق دے - نور قرأتونه دا دي : چه د زړۀ وینے شي غوټے فورے وینے پر محال شي - ا

چه دَ زړهٔ وینے شی وچے نورے وینے پر محال شی - ب

چه دَ زړهٔ وے شی غوڅے نورے عمر په محال شی - ن

چه دَ زړهٔ وینے شی وچے نورے وینے پر محال شی - ی

چه دَ زړهٔ وینے شی غوڅے نورے وے پر محال شی - یو

۲۲۴- متن دَ اب و ن ط - ی - یب - یو مطابق دے - دَ ه قرأت دا سے دے: "چه تازه نخل د نهال شی" ښکاری چه نسخه نویس دَ 'و' په ځائے په غلطی 'د' لیکلے دے -

۲۲۵- نهادن دَ کبنت اسان دی - ز - دا یاد ساتل پکار دی چه ټولو قلمی نسخو کښے دَ یائے معروف او یائے مجهول دواړو دپاره یائے معروف لیکلے شی - نو "نهادن دَ کبنت" او زمونږ دَ متن دَ رویټلو نه پس "اسان دے" هم لوستل کیدے شی -

۲۲۶- ابادی په ډیر اشکال شی - ط - یب -

۲۲۷- چه پلار ومری بیا لا کوره - ا - چه ئے ځویه باکمال شی - ه - دَ دوئیمے مصرعے متن دَ اب و ن ط ی یب یو مطابق دے -

۲۲۸- څوک خبر دے له دے دوره - ط - دَ دوئیمے مصرعے متن دَ اب ه و ز ط ی یب مطابق دے - دَ یو قرأت غلط دے -

۲۲۹- کوره څه رنگ بر احوال شی - ن -

۲۳۰- خاوشا دَ هر رجال شی - ز ط یب یو - حوادث د هر دیوال شی - ه - (دا دَ خواوشا غلط املا ښکاری)

۲۳۱- اعتبار په اوبو مهٔ کړه - ه -

۲۳۲- دَ کاڼ دَ خرو دلال شی - و - بیا دَ خرو خرکو دلال شی - ن -

۲۳۳- جوهری دے دَ گوهرو - ه - دَ متن مصرع دَ ا و ن ط ی یو مطابق ده - یب کښے دا مصرعه داسے ده - "جوهری وی گوهر پلوری" چاپی نسخو کښے "جوهری وی جوهر پلوری" راغلے ده - (ح) کښے دَ دے شعر دوئیمه مصرعه داسے ده: "خاورے اغزی بیا کلال شی"

۲۳۴- "فروشنده" کښے 'ف' ساکنه ده -

۲۳۵- ب دا شعر نهٔ لری - متن دَ ا و ن ط ی یب مطابق دے - دَ یو قرأت دا دے:

دَ ځوانئ په وخت کښې شیر وی ؛ په پیرئ کښې بیا شغال شي۔

۲۳۶۔ متن دَ ا ب و ن ط ی یب یو مطابق دے۔

۲۳۷۔ متن دَ ا ھ و ی او جزوًا دَ ن ھ مطابق دے۔ نور قرأتونه دادی:

نیکوئی کا نیک افعال وی    بد کرداره بد افعال شي۔ ب

نیکو کاره نیک افعال وی    بد کرداره بد افعال شي۔ ھ

نیکو کار او نیک افعال وی    بد کردار او بد سکال شي۔ ن

نیک کردار او نیک افعال وی۔ ط ۔ یو (دوئمه مصرعه مطابق متن دَه)۔

۲۳۸۔ سرنوشت دَ سړی خپل وی۔ ن۔ ط ۔ یب۔ سرنوشت خپل ورسره وی۔ یو۔

۲۳۹۔ چه بد بخت وی بد افعال شي۔ ن۔

۲۴۰۔ لاس و پښې دَ هغو نشه۔ و۔ لاس په نام او سه هغهٔ ته۔ ن۔ لاس و پښې دَ هغو نشته ۔یو۔ ښائی چه 'نشته' دَ "نشه" تصحیف وی۔

۲۴۱۔ ټولو قلمی نسخو کښې دَ "نومید" په ځائے "ناامید" لیکلے شوے دے۔ هرکله چه "نا امید" وزن ماتوی نو "نومید" ته ترجیح ورکړے شوه۔ نومید دَ ناامید مترادف مستقل لغت دے۔

۲۴۲۔ متن دَ ا ب وی مطابق دے۔ دَ ھ ن ط یب یو قرأت دادے: چه حرام کښې امید وارشه۔ دوئمه مصرعه ا ب یب کښې داسے دَه: "کنه څ دِ په حلال شي"۔

۲۴۳۔ متن دَ ھ و ن ط یب یو مطابق دے۔ دَ ا ب ی قرأت دا دے: "ارزومند دَ یوه خره وی"۔

۲۴۴۔ متن دَ ا ب ن ی مطابق دے۔ دَ "ب" قرأت داسے دے: "چه سیالی ئے وی کذاب وی"۔ دَ ھ و ط ، یب یو او چاپي نسخو قرأت دادے: "چه سیالی ئے کړے نهٔ وی" دَ ا ن ی قرأت دَ معنویت له رویه غوره وګڼلے شو۔

۲۴۵۔ متن دَ ا و ن ی مطابق دے۔ دَ ب ھ، ط یب یو او چاپي نسخو قرأت "په ډیرعمر منفصل وی" دَ معنویت دَ کمی له رویه ترک کړے شو۔

۲۴۶۔ خپل احوال دَ سړی فال شي۔ ب۔ ن

۲۴۷۔ متن مطابق ا ب ھ و یب یو۔ په ادم کښې دَ حیوان خویونه هم شته۔ ن۔ ی۔ ط۔

۲۴۸۔ چه اغوستے ئے جامے وی دَ پاکانو۔ یب۔

۲۴۹- که یوه ذره نمک ئې زیات وکم شي - ا

۲۵۰- دَ خپل یار له لاسه زخم ئې مرهم شي - و، ن - یب - دَ خپل یار له لاسه زهر ئې مرهم شي - ب -

۲۵۱- عاشقانو په شکست کښې برے بیاموند - ن - کرستهو میتهي (متن) - دَ یَ په نسخه کښې دوئمه مصرعه داسې ده: "دلته توان دَ هغهٔ الخ"

۲۵۲- متن مطابق ب ج و ن ی یب، کرستهو میتهي (متن) - زیږے رنګ دَ عاشق هسې مرتبه ده - ط - یو - کرستهو میتهي (حاشیه) - کومو قلمي نسخو کښې چه "مراتب" لیکلې شوے دے، هلته 'دی' ورسره هم شته - چه معروف او مجهول دواړه رنګه لوستې شي - دغه صورت کښې به یو قرأت داهم وی: "زیړے رنګ دَعاشق هسې مراتب دے" 'مراتب' متقدمینو واحد او جمع دواړو صورتونو کښې استعمال کړے دے -

۲۵۳- له بهاره نیک وبد دَ ګل عیان شي - ب - و -

۲۵۴- متن (دَ وړومبی مصرعې) دَ "یب" او 'و' او جزوًا دَ ج، ی مطابق دے - دَ قرأتونو تفصیل دا دے: له یوے نکتې تمام علم حاصلیږی - ج، ی - له یوے نکتې حصلیږی تمام علم - ن - ط - له یوے نکتې حاصلیږی تمام علم - ب، کرستهو میتهي (متن) - له یوے نکتې تمام علم حصلیږی - یب - و - له یوے نکتې حاصل شي تمام علم - یو - دوئمه مصرعه کښې دَ ب، ن، یب او کرستهو میتهي (متن) دَ "مشته" په ځائې "موتي" راوړے دے -

۲۵۵- موافق له حاله یو کلام داستان شي - ب - ط - کرستهو میتهي - یو -

۲۵۶- دَ غفلت بنا الخ - ج - ن -

۲۵۷- ړوند په خپله عصا پریوځي په کوهي کښې - و - ړوند پخپله عصا پریوت وکوهی ته - ج - ن - ړوند پخپله عصا پریوت شي په جنګ کښې - یو - کرستهو میتهي - ړوند پخپله عصا پریوځي په ځمبل کښې - ط - دوئمه مصرعه ج ن ی کرستهو میتهي (متن) کښې داسې ده: خپل دلیل دَ کم دلیل په ځان الخ

۲۵۸- متن دَ ط او دَ نورو قلمي نسخو دَ مشترک قرأت مطابق دے - دَ 'ط' قرأت دا دے: " موم دلان ئې له بخری لمن ژغوری" دَ نورو نسخو مطابق دا مصرعه داسې ده: "موم دلان به ئې له سره لمن ژغوری" هرکله چه "سره"

کښې دَ کوهي تلازمه نشته او که دا "شره" ولوستے شي نو دَ بحري معنی به هم ورکړي او دَ قلمي نسخو دَ تصحیف اصلاح به هم وشي - یب کښې دا مصرعه داسے ده : "موم دلان به ئې له شره ځان ژغوري" په دے صورت دا مصرعه بے وزنه ده - یو' کښې دَ مصرعے صورت دادے : "موم دلان له بد سره یه لمن ژغوري" ؟ ن او دَ کرسټو میتهي متن دَ "لمن ژغوري" په ځائے "لمن نغاړي" راوړے دے -

-۲۵۹ بل پوشاک ئې پکار نهٔ دے بے نمده - کرسټو میتهي (حاشیه)

-۲۶۰ متن دَ ج ط ی یب او کرسټو میتهي مطابق دے - نور قرأتونه دا دي :- "و مجنون ته دیو و دد دواړه حیران شي - و - و مجنون ته دیو دیوار واړه الخ - ن - و مجنون ته لیونی واړه حیران شي - یو -

-۲۶۱ متن دَ و ن ط یب یو کرسټو میتهي مطابق دے - پرے به ورکا بتان دَ لعل دَ غوږو - ب - پرے به ورکا دربتان دَ خپلو غوږو - ج -

-۲۶۲ هومره اور دَ عاشقۍ ئې په زړهٔ بل وي - ن -

-۲۶۳ څهٔ حاجت دے چه ئې زهٔ وچاته وایم - ن -

-۲۶۴ بے مطلوبه ئې هیڅ فهم په چا نهٔ وي - ا و یب یو -

-۲۶۵ هرچه زړهٔ په مهرویانو باندے بائیلو - ب -

-۲۶۶ دَ زړے املا له رویه په تیرے (معروفے) او پښے (مجهولے) ی کښې فرق نهٔ وو ځکه ځنې نسخو کښې "چه په لوح محفوظ کښلي لیوني وي" راغلي دي لیکن هر کله چه و ن کښې وضاحتًا "کښلے لیونے" او نورو نسخو کښې "کښلے لیوني" یا "کښلي لیونے" راغلي دے نو ځکه موږ په دغه واحد شکل کښې غوره وګڼلو -

-۲۶۷ متن دَ هـ و مطابق دے - نور قرأتونه دا دي: دَ خپل پلار په غیږه پروت وي روح ئې واخلي - ا - ی - دَ خپل پلار په غیږ کښې روح دَ ذوزاد واخلي - ن - دَ خپل پلار په غیب کوي ئې روح ددومي - ط - دَ خپل پلار په غیږ کښې پروت وي روح تر واخلي - یب - دَ خپل پلار په غیږ ے روح دَ زوئې کا قبض - یو - ب دا شعر نهٔ لري -

-۲۶۸ متن مطابق دَ و ن ط ی یب یو دے - نور قرأتونه په دا رنګ دي :-

و هغه چه خدائے کمال الخ - ب - ا (او اغلباً ه هم) کښے دا مصرعه داسے ده - دَ هغه چه الخ -

۲٦۹ متن دَ ب، و، ط، ی، یب مطابق دے - دَ 'ن' قرأت دادے: زه هم عمر دغه شان له خدایه غواړم الخ - زهٔ همه عمر له خدایه دغه خواست کړم - ه - ط - زهٔ همه ساعت له خدایه دغه خواست کړم - یو - دا شعر ا کښے نشته چه متعلقه بابته ئے شلیدلے ده -

۲۷۰- دا شعر مطبوعه نسخو کښے نشته - متن کښے دَ و ن ط ی یب یو په سند داخل شو - دَ 'ن' نسخے اوله مصرعه کښے دَ 'هسے' په ځائے "هومره" او دوئمه مصرعه کښے دَ "چه هیڅ فرق ئے" په ځائے "چه هیڅ فرق ے" راوړی دی -

۲۷۱- کلهٔ ئے هرڅو دلبری او دلجوئی کا - یب - دوئمه مصرعه 'ن' کښے داسے ده: "دَ رحمان ناقرار زړهٔ په قرار نهٔ شی" او دَ دے دَ مقطع دوئمه مصرعه دَ غزل ع۳٦ مقطع سره داسے مشترکه ده:

که یار سل ځله وعده دوصال وکړه دَ رحمان په ترکو هیڅ اعتبار نهٔ دے

۲۷۲- متن دَ ا ب ج و ن ط ی یب یو مطابق دے - دوئمه مصرعه : لانجوا تر بل الخ - ط -

۲۷۳- مرده شوئے چه دَ بل مرګ وته هوس کا - ب - بل به پس دَ دهٔ له مرګه الخ - ط - بل به هم پس الخ - ن -

۲۷۴- متن مطابق دَ ب ج ز ط ی ه دے - هم په دا مقدارئے اجر موئے په موئے شی - ا - هم په دا (مقد) ارئے اجر مو په موئے شی - ه -

۲۷۵- متن دَ ا ج و ن ط ی یو مطابق دے - هره ونه چه کږه په یوه لوروی. ب - یب -

۲۷٦- متن دَ ا ب ط او جزوًا دَ و مطابق دے - نور قرأتونه دادی : هومره زیان له خوک له خرسه الخ - و - هومره زیان له خوږه خرسه الخ - ج ن ی - هومره زیان له کرکه خرسه الخ - یب -

۲۷۷- متن دَ ا ب ج و ن ط ی یب مطابق دے -

۲۷۸- دا غزل دَ 'ط' او "یو" نه بغیر یوه نسخه کښې هم نشته - دوا پړه ځایه دا غزل دَ $\frac{۷۳}{۳۵۶}$ (ته ځه ماته ولې چه په چاپاندې شیدا ئې) دَ دویم شعر (ځان که ستا په مینه کښې فاني الخ) نه پس داسې شروع کیږي: "هرچه په حیات صورت له مرګ سره اشنا شي نه خلاص به دَ قیامت له خرخښو په دا دنیا ئې" هرکله چه دَ ط او یو دَ دې دولسو شعرونو ردیف 'یئې' وو نو موږ دَ بیل غزل په صورت کښې د "وي" ردیف سره راوړو -

۲۷۹- دویمه مصرعه دَ 'ط' مطابق ده - 'یو' کښې دا مصرعه داشان ده: "کُل سرانجام وکا له خزانه استغنا وي" دې مصرعه کښې "کُل" کُل هم لوستې شي ولې په موجوده صورت مناسب وکښلې شو -

۲۸۰- متن دَ 'ط' مطابق دې - دَ 'یو' قرأت دا دې: "غم دِ هم کاچه هیڅ غم ورسره نه وي" "غم وهم" کښې واؤ یا خو دَ عطف دې او یا د "وهم" دَ نفس کلمې نه چه پښتانه ئې دَ "ه" په حرکت وائي.

۲۸۱- متن دَ 'ط' مطابق دې - 'یو' کښې دا شعر په دې ډول دې:

"ذره د عاشقانو دَ دښمن له لاسه بې غم دې
لکه شمع دَ مقراض له خصومته په خندا وي"

۲۸۲ تل دِ ستا دَ خواب الوده سترګو خواب وي - ب - دویمه مصرعه کښې 'یو' دَ خوب په ځائې "خواب" راوړې دې - چاپي دیوانونو کښې دَ "صواب" په ځائې ثواب لیکلې شوې دې -

۲۸۳- متن دَ ا ب ج وي یب مطابق دې - ا ب کښې دَ "واسطه" په ځائې "واسته" لیکلې شوې دې - 'یو' کښې د "واسطه" په ځائې لکه دَ چاپي نسخو سبب لیکلې شوې دې -

۲۸۴- متن دَ ا ج وي یب یو مطابق دې - چه څوک نه ژاړي الخ - ب -

۲۸۵- متن دَ ب، ج، ن، ي، یو مطابق دې - که خټلې دَ حباب په سر الخ - ا 'ویب -

۲۸۶- دَ حریص له خپله نقده بهره نه وي - ج - ي -

۲۸۷- متن دَ ب ج وي مطابق دې - لکه پانې دَ خزان الخ - ا یب یو -

۲۸۸- متن دَ ا ب ج وي یب مطابق دې - چاپي نسخو کښې دَ "عجائب" په ځائې "مناسب" دې چه شعر بې معنی کوي -

۲۸۹- دَ هغو خلقو به عمر په عذاب وی - ن -

۲۹۰- هغه ملک چه پکښې سیند او کاریز نهٔ وی - ن - دوئیمه مصرعه: دهقانان ئې همیشه خانه خراب وی - یو -

۲۹۱- دَ اسمان په لور ئې سترګې وی ختلې - ن -

۲۹۲- لکه بنه چه تلاوه شی په ګرهی کښې - ن -

۲۹۳- چه په خپلو زراعاتو به سیراب وی - ن -

۲۹۴- دَ افتاب په څیر به کرم په مهتاب وی - ط - یو -

۲۹۵- لوبنی لړکی مردار په مجلاب وی - ا - زړوکی لوبنی ئې مردار په مجلاب وی - و - یب -

۲۹۶- که اوبهٔ ئې ګکړے وچے په شراب وی - ن - یو -

۲۹۷- دَ اوبو په غلا چه ورشی انصاف پریږدی - و -

۲۹۸- دَ اوبو په ویش چه ورشی نهٔ جاروځی - و - متن - دَ ب ط ی یو مطابق دے -

۲۹۹- که ئې شپه و ورځ په سربانده سحاب وی - ط - یب، یو -

۳۰۰- متن مطابق ا و ی - چاپي نسخو کښې نشته - څنو قلمی نسخو کښې دَ تحرُی په ځائے تنګرُی (ط یو) او څنو کښې تحرُی (ب) هم راغلی دے -

۳۰۱- چه اوبهٔ پکښې نایاب الخ - ا او هو - دَ "ط" یو قرأت دادے: "چه اوبهٔ پکښې نایاکے تو کلاب وی" دَ زړے املا له رویه "کلاب" او "کلاب" (ک، ګ یا ګ) یو شان لیکلے کیدے شو -

۳۰۲- "همیشه ئې څهره زیړه په تراب وی" یب -

۳۰۳- متن دَ ب، و، ن، ی مطابق دے - دَ لا اغلب چه) او چاپي نسخو قرأت دادے: "په ابجه کښې لاهم وی خونه ویرانه"

۳۰۴- متن دَ ب، و، ن، ط، ی، یب او یو مطابق دے - ا کښې دا مصرعه داسے لیکلے شوے ده - "پائی ناب سرے که زویه دَ ارباب وی" دا هم پاتنا وے لوستلے شی -

۳۰۵- متن دَ ا ب و ن ط ی یب یو مطابق دے -

۳۰۶- نهٔ طاقت دَ اوریدو لری نهٔ صبر - و - نهٔ طاقت دَ بد وئیل - ح - چاپي نسخے -

۳۰۷- دوهمه مصرعے کښې استعمال شوے تورے "فتنه" د پښتو "پتنه" دے - ټولو قلمي نسخو کښې "فتنه" وو ځکه ئے تتبع وکړے شوه۔ کیدے شي چه د پښتو او عربۍ د توري ترمنځه څهٔ اشتقاقي رشته وي ولے په دے شکل کښې پښتو کښې دا تورے د دشمنۍ او ضد په معنو کښې استعمالیږي او هم دغو معنو کښې د پښتو محاوره "د اوښ پتنه" کښې پکار شوے دے۔

۳۰۸- چه ئے زیست او روزګار هم له تحمل شي - ن - چه ئے څه زیست و روزګار په تحمل شي - ط - یو۔

۳۰۹- دا شعر په دے حالت کښې صرف په 'ن' کښې وموندلے شو ګوندے چه دا د دے قصیدے هم هغه شعر وي چه نوټ ۳۰۰ کښې پرے بحث شوے دے۔ 'ط' کښې دا شعر داسے دے لکه چه نوټ ۳۰۰ کښې ورته اشاره شوے ده۔ یعنې "چه د نوکے اچولو الخ -

۳۱۰- هغه دم ئے په خپل ځان باندے عتاب وي - ب، ی، یب -

۳۱۱- متن د ا ب ون ی یب مطابق دے۔ " یو هغه سړے تیرے ورباندے وکړي " ا چاپ -

۳۱۲- دوهمه مصرعه ټولو قلمي نسخو کښې هم دغه شان ده۔ د چاپي نسخو قرأتونه دا دي :

همسایه ئے چرګار او پوښتانه شي او په اصل به موچي یا به قصاب وي۔ ح

همسایه ئے چریکار و پښتانه شي او په اصل الخ - کابل۔

همسایه او چلیکار ئے پښتانه شي او په اصل الخ - اکیډیمي۔

دوئمه مصرعه په ب، ی، یب کښې داسے ده : "او په اصل یا موچي وي یا قصاب وي "۔ دے ټولو قرأتونو کښې د اکیډیمۍ قرأت معنی لري۔ صرف د چلیکار په ځائے "چریکار" ګکول غواړي۔ ځکه چه چلیکار د "چریکار" عامیانه تلفظ دے۔ قلمي نسخو ته نژدے معنی دار قرأت داسے هم کیدے شي : "همسایه وي، چریکار ئے پښتانه شي "

۳۱۳- په هیڅ رنګ له دے خویونو نهٔ جار ووځي - ز - یب -

۳۱۴- چه اشراف د حریصو په میان کښیوځي - ا ی - چه اشراف د حریصانو الخ - ب۔ چه اشراف د نالائقو په لاس کښیوځي - ن - چه اشراف د هسے خرسو په

میان کبنیوځی - یو -

۳۱۵- ترډا هسے زمینداره هغه په وی - ا و ی -

۳۱۶- وړومبۍ مصرعه 'و' کښے داسے ده : "دَخشکۍ له غمه قام دَ رحمان خوبن دے"
دَدے مقطع نه پس 'ط' کښے داریاعی ده :

درچشم کسے خار فتد چوں خسپد  آنراکه غم یار بود چوں خسپد
اے دیده گنه میکنی ومی خسپی  آنکس که گناه گار بود چوں خسپد

دَ دے رباعۍ دَ وړومبو دوَه مصرعو او دَ رحمان بابا دَ غزل ($\frac{۲۵}{۲۵}$ع) دَمطلع
مضمون سره یو دے سه

چه په سترګو کښے ئے خار وی څه به خوب کا
چه په زړهٔ ئے غم دَیار وی څه به خوب کا

۳۱۷- ، متن دَ ټولو قلمی نسخو مطابق ده - ح او کابل کښے دَ "وبله" په ځائے
"څبله" او اکیډیمۍ کښے "خپله" دے -

۳۱۸- عاشقی وه ترډا مقام په هورته - ط - دویمه مصرعه کښے دَ "مقام" په
ځائے ط او یب کښے "نظر" دے - دَ 'یو' قرأت دادے : "چه نظر دَچا په
دنځ و په راحت وی "

۳۱۹- دَ وړومبۍ مصرعے متن دَ ا ج و ط ی یب مطابق دے - چاپی نسخو کښے
دا مصرعه داسے ده : "څه دَ اور په لمبو سوے څه دَ عشق - دویمه مصرعه
په ج، ی کښے په دے شکل ده : "وارهٔ عشق دے که هجران که ئے وصلت
وی "

۳۲۰- چه مطلب او مدعا دَ سړی خدائے وی - ب -

۳۲۱- وَفهیم وته بے فهمه بے عزت وی - ط -

۳۲۲- که دا نور عالم غمونه دَ دنیا کا - ط -

۳۲۳- قلمی نسخو کښے "څه رنګ" دَ "څرنګ" په شکل لیکلے شوے دے چه هم
"څه رنګ" لوستلے شی او هم "څرنګه" - دواړه صورته ئے موزون دی -

۳۲۴- پائے بسته وُلړه هرچرته زندان دے - ا ی یب - پائے بسته وُ لړه
هر چرے زندان وی - ب - هغه هرچرته ازار الخ - یب -

۳۲۵- متن دَ ج و ن ی یب مطابق دے - عشق ............ یک رنګ وی - اب -

۳۲٦- متن دَ ب ز یب مطابق دے۔ نور قرأتونه دادی: بیخی و بنیادی دے هغه ده په یاری کښے۔ ا۔ بیخ بنیاد دَ هغو وی په یاری کښے۔ ج۔ ی۔ دَ رښتیا بیخو بنیاد هغه دے په یاری کښے۔ و۔ دَ بنادی نخښه هغه وی په یاری کښے۔ یا۔

۳۲۷- دَ وړومبی مصرعے متن دَ ا و ن ط و مطابق دے۔ "بودنی هغه باله شی په معنیٰ کښے۔ ب او چاپ۔ دَ دویمے مصرعے متن دَ ا ب ج و یب یو مطابق دے۔

۳۲۸- دَ دویمے مصرعے متن دَ ا و ن ی یب یو مطابق دے۔ دَ دے قرأت مطابق به "ترلاندے" "ترے لاندے" وئیل پکار وی۔ دَ ب قرأت دا دے: "که ترلاندے ئے سل ستنے دَ پولاد وی"

۳۲۹- اشنده روند ه کله دَ چا یاد وی۔ ز۔

۳۳۰- دَ مرشد له اشارة په ارشاد وی۔ ب۔ چاپی نسخو کښے دا مصرعه غلطه ده۔

۳۳۱- دَ وړومبی مصرعے متن دَ ا ب ج و مطابق دے۔ دَ ن، ی، یب، یو قرأت دا دے: "وهغو ته چه خدائے پخپله وښو" دویمه مصرعه دَ ا ب ج ز ی مطابق ده۔ څه حاجت ئے په ښودنه دَ استاد وی۔ و

۳۳۲- متن دَ ا ج و ن یب یو مطابق دے۔

۳۳۳- متن دَ ب ج ط ی یب مطابق دے۔

۳۳۴- وړومبی مصرعه: زمانه ئے تر پښو لاندے پائمال کا۔ و۔ دویمه مصرعه: که په قطع ئے تر آسمانه الخ۔ ج۔ ی۔ که په قطع تر اسمان ئے الخ۔ ط۔

۳۳۵- متن دَ ا ب وی یب مطابق دے۔

۳۳٦- هرچه کاندی آزادی په دا دنیا کښے۔ ط۔

۳۳۷- متن مطابق دَ ا ب ج و ط ی یب دے۔

۳۳۸- متن دَ ا ب و ط ی یب مطابق دے۔

۳۳۹- متن مطابق دَ و ط یب دے۔ هزار وارے دیار تر نامه ځار کړم۔ یو هزار وار به ئے دیار تر نامه ځار کړم۔ ا ج ی۔

۳۴۰- څو ئے اوبنے په مخ لارے جوړے نه کا۔ یو۔

۳۴۱- تهٔ چې کل زما دَ یار په مثل غواړې - یب - تهٔ چې کل دَ اشنائۍ له باغه غواړې - ج - ی -

۳۴۲- دَ وړومبي مصرعې متن دَ ا ط یو او جزوًا دَ و، ی مطابق دے : "زهٔ دَ یار په څیر څځ نه وینم په سترګو" یب - زهٔ دَ یار په څیر بل څځ الخ - و - ی - دویمه مصرعه په 'ط' کښې داسې ده : که په هر طرف خوبان الخ -

۳۴۳- متن مطابق دَ 'ط' او 'یو' دے - ا، و کښې دا شعر نشته - دَ ج قرأت دا دے : دَ عاشق نظر په ډیرو په لږ نهٔ دے ٭ که دیدن دَ یار په لږ که په بسیار وی -

۳۴۴- شته هزار خوبان بارې سوګند دے - ط -

۳۴۵- دا شعر دَ 'ط' او "یو" په سند راوړے شو - نورے قلمی نسخے او چاپي دیوانونه دا شعر نهٔ لری - 'یو' کښې دا شعر دَ $\frac{۴۷}{۲۸۰}$ غزل دَ مقطع نه اګاهو راغلے دے -

۳۴٦- مرګ له چاسره وار نه کاندی رحمانه - ط

۳۴۷- دَ هغو سره به څه فکر دیار وی - ا -

۳۴۸- صبوری او قراری دِ په ما زاړ شي - ا ج - صبوری او قراری دِ په ما زار شي - و - صبوری او قراری دِ په ما زهر شي - یو -

۳۴۹- دغه اور وعاشقانو ته ګلزار وی - ط - هغه اور دهم عاشقانو ته الخ - ی - دا شعر چاپي نسخو کښې نشته -

۳۵۰- دا شعر دَ اسلامیه کالج دَ نسخې ج نه بغیر یوه قلمی نسخه کښے هم نشته مګر چاپي نسخو کښې شته - چاپي نسخو کښې دَ "نه وئیلے" په ځائے "مهٔ وئیلے" دے -

۳۵۱- ځائے ئے اور شه چې زنارئے شي په غاړه - ی - ځائے اور شه چې زنار ئے وی په غاړه - یو - دویمه مصرعه 'یو' کښې داسې ده : ولے نه چې ئے دَ ستا زلفے زنار وی -

۳۵۲- چې رحمان غوندے مجنون ئے په دربار وی - ا - و - دَ مقطع نه اګاهو "یو" کښې هغه شعر دے چې ۳۴۵ نوټ کښې ئے ذکر شوے دے -

۳۵۳- ستا دپاره دا اغیار هم ژړیان وی - ا - و -

۳۵۴- متن مطابق ا و ط یب - 'ط' کښې دَ "چه سړی" په ځائې "دسړی" لیکلی دی - هر سړی چه په یو مخ باند الخ - یو -

۳۵۵- متن دَ ا ب ج ی ط یب مطابق دی - 'و' هم دغه قرأت لری ولې دَ "دریانانو" په ځائې "دربانو" لیکلی شوی دی -

۳۵۶- ا ب و ی یب کښې 'مانه' او دَ کابل چاپې نسخه کښې مانه ده - 'یو' کښې "مانې" راغلی دی -

۳۵۷- هر سړی چه دَ سرو سترګو خریدار وی - ا - هر صوفی چه دَ سرو شونډو خریدار وی - ج ی -

۳۵۸- متن مطابق دَ ا ب ج و ط ی یب یو دی - چاپې نسخو کښې "ستاله حُسنه" په ځائې "ستاله مخه دی -

۳۵۹- که مریوان ئې دَ سپوږمۍ دَ نمر مشرق وی - ب -

۳۶۰- دا شعر صرف 'ط' نسخه کښې وموندې شو -

۳۶۱- معشوقه چه غمخواریه دَ عاشق کا - ط - دَ عاشق سترګې دِ و وځې که بې غم وی - ط - یب -

۳۶۲- همدمی دَ دوو همدمو سره بویه - ن - نشانه دَ دوو همدمو اول داده - ط - دوئیمه مصرعه دَ ا ب ج و ن ط ی یب مطابق ده - چاپې نسخو کښې "زندګی" په ځائې "همدمی" راغلې ده -

۳۶۳- کهٔ دَ درست جهان خوبئی وربانده ورشی - ی -

۳۶۴- متن مطابق دَ ا ب ج و ی یب دې - چاپې نسخو کښې مصرع داسې ده: دا قضا ځنهٔ تر قاضی الخ -

۳۶۵- چه خوناب ئې دَ چشمانو مې ناب وی - ب -

۳۶۶- هرچه غواړی نیک طالع له خدایه غواړه - یب - دوئیمه مصرعه 'ط' کښې داسې ده: "بې سلیمانه ئې څوک څهٔ کا کهٔ خاتم وی" دَ "سلیمان" س ساکن دی -

۳۶۷- دا غزل دَ کابل نسخه کښې نشته - دلته مونږ دَ ا ب و ن ط ی یب یو په سند نقل کړو - نورو چاپې نسخو کښې هم شته - وړومبۍ مصرع کښې

دَ "او ستا" په ځلئے 'ط' "دِ تا" او یب "دَیار" راوړے دے ۔ یو کښے
دا مصرعه داسے ده : "همیشه دِ زماسر داستا قدم وی"

۳۶۸- زهٔ بے تا هسے گمان کړم چه تنهایُم ۔ ا ۔ زهٔ په تا پسے گمان کړم چه بےحال یُم ۔ ب ۔ زهٔ بے تا هسے گمان کړم چه سفال دے ۔ یب ۔ ح ۔ زهٔ بے تا هسے گمان کړم چه خهٔ نشته ۔ ن ۔ یقیناً هسے گمان کړه چه خالی دے ۔ یو ۔ متن دَ و ط ی او جزوًا دَ ب مطابق دے ۔

۳۶۹- که مے زهر بددے په زخم الخ ۔ ب ۔ یو ۔

۳۷۰- نور عالم که دَ دنیا کاروند کاندی ۔ ب ۔

۳۷۱- دا ستا غم دِ الخ ۔ ن ۔

۳۷۲- دویُمه مصرعه کښے دَ مطلع دویُمه مصرعه بیا راغلے ده ۔

۳۷۳- که به دا کښے به هیچرے زیات وکم وی ۔ یو ۔

## ے

۱- هرچه شی تکیه په خدائے ۔ ا ب ۔ هرچه شو تکیه په خدائے ۔ یو ۔

۲- هرچه کا هغه به وشی ۔ و ۔ ن ۔ نهٔ بل ځائے لرم نهٔ خدائے ۔ ی ۔

۳- متن دَ ا ب ج ی یب مطابق دے ۔ بے دلبره به ونه کړم ؛ نور دَ هیچا دَ زړهٔ رائے ۔ و ۔ نور هیچا نه دَ زړهٔ رائے ۔ یو ۔

۴- متن دَ ا ب ج و ن یو مطابق دے ۔

۵- تر دے دوؤ چارو په هورته ۔ یو ۔

۶- نهٔ خود کام و خود آرائے ۔ و ۔

۷- که مے مل شی کار فرمائے ۔ یو ۔

۸- متن دَ ا ج و ی یو مطابق دے ۔ 'و' کښے دا غزل دوه ځل لیکلے شوے دے ۔ نور قرأتونه دادی : زهٔ به مړ ومه هجران کښے تاتلے ۔ ب ۔ زهٔ به مړ وم په هجران کښے لرغونے ۔ ط ۔ یب ۔ 'یو' کښے دَ "لرغونے" په ځائے "نرغونے" راغلے دے ۔ دَ چاپی نسخو او دَ و (دویُم) دا قرأت دے : زهٔ به مړ وم ستا په عشق کښے الخ ۔

۹- متن دَ ا ب ج و ط مطابق دے ۔ زړهٔ مے هسے په تورو زلفو باېلوے ۔ و ۔ (دویُم)

۱۰- په يوه ساعت مې رد بيا مې قبول کا. ط - نهٔ پوهيږم چې زهٔ خپل وم که پردے. ا - متن دَ ب ج و ط ی يب يو مطابق دے.

۱۱- که په مرګ دَ عاشقانو دِ رضا وی ؛ خدائے دِ ما کا ترهمه واړو ووژے. ط - که په مرګ دَ عاشقانو دِ رضا ده. و -(دوئم)

۱۲- دا شعر په چاپي نسخو او ب - ط کښې نشته. متن دَ ج مطابق دے. ا او و کښې وړومبۍ مصرعه داسې ده : وَکوم کوم ته به اد راک دَ پاړو ودرشي (وشي). دَ 'و' دوئم غزل کښې دا شعر نشته.

۱۳- څوک دِ غم زما دَ ډيرو اوښيو نهٔ کا. ط - متن دَ ا ب ج و ی يب يو مطابق دے.

۱۴- دَ هجران په توره شپه کښې ځي ويريږم - ب - و - يب. دَ هجران په توره شپه کښې مې دهشت وی - ط - وهجران په توره شپه کښې مې دهشت شي. يو -

۱۵- دَ يار غم لکه مزرے دا باندے راغے. ط -

۱۶- چې پرے غم غلطومه دَ شپې پاځم. و - چې پرغم غلطوم په شپه کښې پاځم. يو - چې ځے غم غلطوم نيمې شپې پاځم. ب - دَ 'و' دوئم قرأت دَ متن مطابق دے.

۱۷- بارے دردے هيڅ رنګ نه کاندی کمے - يب. بارے دردے په هيڅ نهٔ کوی کمے - ط - يو - بارے دردے په هيڅ رنګ نه کاندی کمے. و - (دوئم)

۱۸- همسايه مې واړه ووته له خوبه. ب ج ی و (دوئم) - دوئمه مصرعه دَ 'و' يو قرأت کښې "که په سل کوتهه دننه کړم الخ" او بل قرأت کښې "که په سل کوته دننه کړم الخ" ده. 'يو' کښې "سل کو تهو" دے. ځکه نو دا لفظ "کهتو کوتهو" دواړه لوستلے شي. دوئمه مصرعه کښې استعمال شوے لفظ "زبيرکے" څنو نسخو کښې 'زګيږوے' هم ليکلے شوے دے. 'يب' کښې "زويرکے" دے. داسې ښکاری چې مختلفو نسخه نويسو دَ خپل تلفّظ مطابق دا لفظ بدل کړے دے. ځکه مونږ "زبيرکے" وليکلو چې موجوده لحاظ سره متفق عليه تلفظ دے.

۱۹- خدائے دَ هجر په توره مهٔ وژنه يو سپے. و - خدائے دَ هجر په تيغ مه وژنه

دا سپے - یو -

۲۰- متن دَ ټولو قلمی نسخو مطابق دے - چاپی نسخو کښے دَ "مارہ" په ځائے "راکړه" راغلے دے -

۲۱- متن دَ ا ب ن ی یب یو او جزوًا دَ 'و' مطابق دے - دَ 'و' قرأت دا دے:
"مے دَ خپلو لبو راکړه دَ انګورو"

۲۲- څوک دَ غم په قلیم (شاید اقلیم) نهٔ مومی برے - ا - څوک دَ غم په ورځ په غلیم الخ - و -

۲۳- جام دَ میُو چه غم خور دَ کل جهان شه - ب - ی - جام دَ میُو چه غم خوار دَ درست جهان شه - یو -

۲۴- چه خبر نهٔ یم له حاله الخ - ب - و - یب -

۲۵- بے خودی هسے بناوه الخ - ج - ی - بے خودی هسے بلا ده الخ - ن - میخواری هسے پناه ده الخ - یو -

۲۶- زهٔ هغه سړے تمام کړم په عشق کښے - یو -

۲۷- متن دَ ب د و ن ی مطابق دے - و - ن کښے وضاحتًا بدکرداره او ب ه ی کښے "بدکردار" راغلے دے چه بدکرداره هم لوستلے شی -

۲۸- مختلف قرأتونه دادی:

| | |
|---|---|
| لونبی لړکی همه واړه پرمردار وی | بدکردارخوے لکه سورلنړو وړے سپے - ه |
| لونبی لړکی واړه پر مردار وی | بدکردار لکه سورلنړ وړے سپے - و |
| لړکی لونبی ئے همه واړه مردار وی | بدکرداره زویه پمثل سورلنړ سپے - یو |
| لونبی لړکی همه واړه مردار کا | بدکرداره لکه سولند وړے سپے - ی |

دا شعر ب کښے نشته - دَ متن وړومبی مصرعه دَ چاپی نسخی او جزوًا دَ و ن ه او دویمه مصرعه دَ ی مطابق ده - سولند دَ سخت تړی په معنو کښے استعمال شوے دے - او دلته دَ سورلنړ یا سورلنړی په مقابله کښے ځکه غوره دے چه سورلنړے کورنے ځناور نهٔ دے ځکه دَ لونبو لړکو دَ مرداریدو په ضمن کښے ئے ذکر صحیح نهٔ دے -

۲۹- متن دَ ب، و، ی، یب مطابق دے -

۳۰- متن دَ ب ی مطابق دے - "بے له مرګه چه پړ هک کړے یو کوهے - و - یب -

بے لہ مړګه چې پر ډک کا یو کوهے۔ ن۔ بے له مړګه چې پر ډک کاندی کوهے۔ ھ۔

۳۱۔ حرام خور دَ مخنثو په حساب دے۔ و۔ ن۔ ی۔ که په توره یا په تیغ شی مړے۔ ب۔ ی۔ یب۔

۳۲۔ چې بے وجهے آزار نه کا هیڅ سړے۔ ھ۔

۳۳۔ متن صرف دَ 'یب' مطابق دے۔ نورو قلمی نسخو کښے مصرعه دا سے ده: "هسے فیض ئے وهرچا وته رسیږی"؛ دَ 'یب' قرأت ته ترجیح ځکه ورکړے شوه چې په دے قرأت کښے دَ "فیض" تلفظ دَ رحمان بابا" دعام استعمال مطابق "فَیَضْ" دے۔

۳۴۔ متن دَ ب و ن ی مطابق دے۔

۳۵۔ چه ے نهٔ شی ځائے دننه نهٔ دَ باندے۔ ن۔

۳۶۔ له زبیرکیده ے دوغ خلق په عذاب شه۔ ن۔

۳۷۔ زهٔ دستا په غم کښے ژاړم لکه شمع۔ و۔ ی۔

۳۸۔ ستا په لوری ے زړهٔ هسے اویزان دے۔ ط۔

۳۹۔ دَ وړومبۍ مصرعے متن دَ ا ب ن و ی مطابق دے۔ ما دَ ستا دَ اندیښنو په اور کښے سوی۔ ط۔ یو۔ دوئیمه مصرعه: دَ دنیا اندیښنے نورے لکه سپاندے۔ ا ج و۔

۴۰۔ متن دَ و ن ط ی مطابق دے؛ دا دستور دے چې یو غم په سړی ورشی۔ ا ب۔ دوئیمه مصرعه ط کښے دا سے ده: نور غمونه هم وا ړه تر پښو کاندے۔

۴۱۔ دا مقطع صرف 'ط' او 'یو' کښے وموندے شوه۔

۴۲۔ ځنے قلمی نسخو کښے "ګلرنګ" راغلے دے چې دَ ا په سند 'ګلرنګے' ولوستے شو۔

۴۳۔ متن دَ ا و ن ی یب مطابق دے۔ هرچې اوری ستا خبرے خوږے خبرے۔ ب۔ یو۔

۴۴۔ دا مصرعه دَ "ن" نه بغیر نورو ټولو قلمی نسخو کښے دَ "مرور کاندی عاشق له جمله خلق" په صورت لیکلے شوے ده چې وروستے تورے

ئې "خلقه" او "خلقو" دواړه لوستې شي. "ن" کښې صراحتاً "خلقه" دے نو ځکه دَ دغې نسخې تتبّع وشوه.

۴۵- په ساعت کښې سرے مړسائې ژوندے کا. ن. طائفې دي دَ خوبانو زور اودے. ز.

۴۶- چه مے نوم دستا دَ زلفو په خوله واخست. ن.

۴۷- متن دَ ا ب ج و ن ی ط یو مطابق دے. همیشه زما په وړه دَ زړه منکرے. یو. دوئمه مصرعه کښې "منکرے" دَ "منکرئې" په شکل لوستل دَ قافیې له رویه غلط دی. ځکه نو "منکرے" به ندائیه لوستل پکار وی.

۴۸- دَ رحمان وئیل به وے نادر نهٔ وی. یو. چه ته نا کاندے دستاغوندے نادرے. ب. ا، و، یب کښې دَ مقطع نه اګاهو دا درے شعرونه هم راغلی دی:

| | |
|---|---|
| چه میوه ئې دَ کابل خوړلے نهٔ وی | دَ هغو له فهمه وځکې شي ګرګرے |
| په رند و سترګو حاجت دَ رنجو نهٔ وی | په بد رنګے ناوے څه وائې سندرے |
| که په غرهٔ په سمه ګرځم باک مے نشته | مزری تل ګرځی په لوړے په ژورے |

دا درے واړه شعرونه دَ خوشحال بابا دی. ځکه نو له دے غزله خارج کړے شو.

۴۹- غم خورکی دا هسے چرے شی غمخورے. ب. غم خوری دا هسے چرے وی غمخورے. ج ی یو. چه مادلته جدا ناست لرے ته دورے. ن.

۵۰- دَ وړومبی مصرعے متن دَ ا ب ج ز ط یو مطابق دے. هغه خدائې چه ئې ستا مخ بله لمبه کړه. و. یب. ی. دالمبه ئې کړه زما په زړګی پورے. یب. دالمبه ئې کړه زما په صورت پورے. ط.

۵۱- هم هغه دی زما تور کسی سرهٔ کړی. یو.

۵۲- متن دَ ا ب و ن ط یب مطابق دے.

۵۳- اصیل نهٔ دے چا په بیع پیرودلے. ن. اصیل نه دے چا پیر ودے پیرولوے. ط. یو.

۵۴- دا کوم رنګ دَ اشنائۍ او دَ یارۍ دے. ز. یو. دوئمه مصرعه کښې

"زورے" "خورے" هم لوستلے شی۔

۵۵۔ دا شعر په یوه قلمی نسخه کښے هم نشته۔

۵۶۔ زهٔ وتاوته دَ ستا له لاسه ژاړم۔ ی۔

۵۷۔ متن دَ ا و ی یب مطابق دے۔ که لږ مخ په ائینه کړے ځان ته کورے۔ ب۔ ن۔ که لږ مخ وائینے وته وګورے۔ ط۔ یو۔

۵۸۔ خدایه مهٔ کړے الخ۔ ن۔ یو۔ کرسټو میتهی (متن)۔ دویمه مصرعه دَ و ن ی یب یو کرسټو میتهی (حاشیه) مطابق ده۔ "چه امید ئے دے دستا ولورته کړے۔ ط۔ کرسټو میتهی (متن)

۵۹۔ ستاله رحمه به په څه نا امید کیږم۔ ن۔ ستاله رحمه به زهٔ ولے نا امید یم۔ کرسټو میتهی (متن)۔ دویمه مصرعه دَ ج ی ن کرسټو میتهی (متن) مطابق ده۔ چه دِ نوم دے دَ رحیم په نوم بللے۔ ط۔ چه دِ ځان دے دَ رحیم په نوم نومړے۔ و۔ چه دِ نوم دے دَ رحیم په نوم نومړے۔ یو کرسټو میتهی حاشیه۔

۶۰۔ دَ وړومبی مصرے متن دج ط ی، یب او دَ ن مطابق دے۔"دا ښیم کړے سړے ننګ دخپل نام کا"۔ ب۔ یو۔ کرسټو میتهی (حاشیه)۔ دا هم "ننګه" لوستلے شی۔ دویمه مصرعه په 'ط' یو کښے داسے ده: "ته خو رب ئے چه په هیڅ نهٔ ئے نیمګړے"۔ ته حق خدائے ئے چه په هیڅ نهٔ ئے نیمګړے۔ ب۔

۶۱۔ متن مطابق دَ ج ا و ی' یب او کرسټو میتهی دے۔ هیڅ بنده دِ په بزرګی کښے لیدهٔ نهٔ شی۔ څو تا الخ۔ ب۔

۶۲۔ متن مطابق دَ و ن ط کرسټو میتهی دے۔ دَ شومیت په ځائے 'یب' کښے 'شومی' او ب ج ی کښے شامیت دے۔ کرسټو میتهی (حاشیه) ط یو کښے مصرعه داسے ده: خپل شومیت په ځان بلا شوه د شومانو۔

۶۳۔ چه بے تا ئے په زړهٔ بله مینه کړځی۔ ط۔ یو۔ کرسټو میتهی (حاشیه)۔ دویمه مصرعه د کرسټو میتهی دَ متن او جزوًا دَ 'و' یو مطابق ده۔ نور قرأتونه دادی:

ترمقصوده به ونهٔ رسی څوئے مړے۔ ط

ترمقصوده به ونهٔ رسی زوړے۔ یو

